# ما قال استاذي

پښتو ژباړه او تشریح د

# پنج گنج



ژباړه او تشریح

محمد نبي حقدوست

مدینه کتب خانه، ارگ بازار، کندهار افغانستان

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

مَا شَآءَ اللّٰهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَآءُ لَمْ يَكُنْ

# ما قال استاذي

پښتو ژباړه او تشريح د

# پنج گنج


ژباړه او تشريح

محمد نبي حقدوست



مدينه کتب خانه، ارگ بازار، کندهار افغانستان

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ

اَللّٰهُمَّ صَلِّ وَسَلِّمْ وَبَارِكْ عَلٰى سَيِّدِنَا مُحَمَّدٍ مُّصْطَفٰى صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ

## ما قال استاذي د پنج گنج پښتو ترجمه او تشريح



| | | یادونه |
|---|---|---|
| * مؤلفين | ببلا ببل | د پنج گنج دا کندهاري پښتو ژباړه او تشريح د مدينه کتب خانې له خوا افغاني طلباؤ ته يو کوچنۍ ډالۍ ده. د دې کتاب د چاپ ټول حقوق له همدې کتب خانې سره محفوظ دي، هيڅوک يې د چاپولو او کتابت حق نه لري. البته که څوک کومه غلطي پکښې ويني، نو د مهربانۍ له مخې دي زموږ سره په لاندې شمېره په اړيکه کې سي: (۰۷۰۰۱۸۵۰۸۲) |
| * ژباړه او تشريح | محمد نبي حقدوست | |
| * کمپوټري چاري | قلم د ټايپ او کمپوز اداره | |
| * کمپوز | محمد نبي حقدوست ۰۷۰۷۴۲۸۱۱۶ | |
| * چاپوونکی | مدينه کتب خانه | |
| * د چاپ نېټه | ۱۴۴۱ س / ۲۰۲۰ ل | |
| * د چاپ شمېر | ۱۰۰۰ ټوکه | |
| * د چاپ وار | اول | |
| * د اړيکو شمېره | (۰۷۰۰۱۸۵۰۸۲) | |






د لاسته راوړلو پته:

مدينه کتب خانه، ارگ بازار، کندهار افغانستان

# کریما

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

**د زیات مهربان پوره رحم لرونکي الله په نامه**

د هر نېک او غوره کار پیل باید د الله جل جلاله په نامه سره وسي، څو له برکته ډک او له هر ډول زیان او ستونزي څخه خالي وي؛ رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چي د کوم نېک او ښه کار پیل د الله جل جلاله د نامه له یادولو پرته وسي، هغه بې برکته او له ستونزو ډک وي.

## در حمد باری تعالی

### د الله جل جلاله په ستاینه کي

"حمد" د الله جل جلاله ستاینې او صفت کولو ته ویل کیږي؛ دا چي د هر کتاب په پیل کي لومړی "بسم الله" او وروسته د الله جل جلاله "حمد" ویل کیږي، دا ځکه چي یو خو پر بندگانو باندي په هره شیبه کي د خپل ستر پالونکي حمد ویل واجب دئ او بل دا چي پخوانیو بزرگانو او سپېڅلو کسانو د خپلو ویناؤ، لیکنو او کتابونو په پیل کي لومړی "بسم الله" ورپسې د الله جل جلاله "حمد" او بیا پر رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي درود ویلی او لیکلی دئ، ځکه نو د دې کتاب مؤلف هم په خپلو پخوانیو سپېڅلو کسانو پسې اقتداء کړې ده.

| | |
|---|---|
| کریما به بخشائی بر حال ما | که هستم اسیر کمند هوا |
| اې مهربانه خدایه! رحم وکړه پر حال زما | چې زه یم بندي په دام کې دنفسیاتو |
| نداریم غیر از تو فریادرس | توئی عاصیان را خطا بخش وبس |
| نه لرو پرته ستا څخه فریاد رسېدونکی | ته یې دګناهکارانو دخطاوو بخښونکی اوکافی |
| نګهدار مارا زراه خطا | خطا درګذار وصوابم نما |
| وساته موږ له لارې څخه د خطا ګناه | ترخطا را تېر سه اوحقه لار راته وښیه |

**د لغاتو حل:** کریم (مهربان)؛ بخشائی (بخښنه او مغفرت)؛ بر (پر)؛ حال ما (زما حال)؛ اسیر (بندي)؛ کمند (دام یا جال)؛ هوا (نفساني خواهشات). نداریم (نه لرو)؛ غیر (پرته / ماسېوا)؛ از تو (ستا څخه)؛ فریادرس (هغه څوک چې فریاد ورته کیږي)؛ تو (ته)؛ عاصیان (ګناهکاران)؛ خطا بخش (ګناه بخښونکی)؛ بس (کافي). نګهدار (وساته)؛ ما را (موږ)؛ راه (لار)؛ خطا (غلطه / ناسمه)؛ در ګذار (معافول / بخښل)؛ صواب (حق /برابر)؛ م (ما ته)؛ نما (ښکاره کول).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه له الله جل جاله څخه غوښتنه کوي چې پر سمه او برابره لار یې روان کړي، ګناهونه یې ور وبخښي، د ځان د عاجزۍ څرګندونه کوي او د الله جل جلاله ستاینه کوي او لويي يې بیانوي، وايي:
"اې مهربانه څښتنه! زما پر حال رحم وکړه، زه د شیطان او نفس په دام کې راګیر یم، ستا پرته بل داسې څوک نه سته چې فریاد ورته وکړم، ته د ګناهکارانو بخښونکی یې، ته زموږ لپاره بس او کافي یې، ته مې له غلطې لارې څخه وساته او پر سمه لار مې روان کړه."

# در ثنائی پیغمبر صلی الله علیه وآله وسلم

## د رسول الله ﷺ په ستاینه کي

"ثناء" ستاینې او صفت کولو ته ویل کیږي؛ له "پیغمبر" څخه مراد رسول الله ﷺ دئ.

| | |
|---|---|
| زبان تا بود در دهان جائی گیر | ثنائی محمد ﷺ بود دلپذیر |
| ژبه ترخوچي وي په خوله کي خای پرخای | ستاینه دحضرت محمد ﷺ وي به زړه قبلوونکی |
| حبیب خدا اشرف انبیاء | که عرش مجیدش بود متکا |
| دوست د خدای بهتر دئ تر پیغمبرانو | چي عرش لوی ځای د ده وو دتکیې وهلو |
| سوار جهانگیر یکران براق | که بگذشت از قصر نیلی رواق |
| سپور وو جهان نیوونکی پر تېز رفتاره براق | چي تېرسو ترمانی شین رنګه ترچت |

**د لغاتو حل:** زبان (ژبه)؛جائی گیر (ځای پر ځای / ځای نیونکې)؛ دلپذیر (زړه منونکی)؛ حبیب (دوست / محبوب)؛ اشرف (غوره / بهتر)؛ مجید (لوی / عظیم)؛ متکاء (هغه شی چي تکیه ور ته کیږي)؛ سوار (سپور)؛ جهانگیر (جهان نیوونکی)؛ یکران (تېز سرعته / چټک / ګران بیه)؛ قصر (ماڼۍ)؛ نیلی (شین رنګ / آسماني رنګ)؛ رواق (چت/ بام).

**لنډ مطلب:** تر حمد وروسته مصنف رحمة الله علیه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاینه کوي، لکه څنګه چي د پخوانیو بزرګانو او سپېڅلو شخصیتونو عامه طریقه ده چي د خپلو ویناؤ او لیکنو یا کتابونو په پیل کي تر بسم الله وروسته حمد او بیا درود شریف راوړي. نو د پنج ګنج مصنف رحمة الله علیه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاینه په دې ډول کوي، وایي:

"تر څو چي په خوله کي ژبه موجوده وي، نو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاینه باید وسي او زړه باید د دې ستاینې منونکی واوسي، دا ځکه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله دوست او محبوب دئ او تر ټولو پیغمبرانو افضله او بهتره پیغمبر دئ، آن تر دې چي عرش مبارک د ده صلی الله علیه وسلم د تکیې ځای دئ. دی صلی الله علیه وسلم د معراج په شپه پر براق باندي سپور سو او د آسمان تر

دنگو مانیو تېر سو او تر عرش مبارک پوري ورسېدی. دا چي دی صلی الله علیه وسلم د دومره کمالاتو څښتن دئ، نو ټل يې بايد ستاينه وسي او درود ورباندي وويل سي."

# خطاب بنفس

## ځان ته نصيحت

په دې ځای کي خپل ځان ته نصيحت کوي، لېکن مقصد يې نورو ته نصيحت کول دي.

| مزاج تو از حال طفلی نگشت | چهل سال عمر عزیزت گذشت |
|---|---|
| طبیعت ستا له حال څخه د ماشومتوب وانه وښتې | خلوېښت کاله د عمر عزتمن ستا تېرسول |
| دمی با مصالح نه پرداختی | همه با هوا وهوس ساختی |
| یوګړی له ښوخلګو سره نه سوې مشغوله | ټول عمردي په خواهشاتو او په هوس تېر کړ |
| مباش ایمن از بازی روزگار | مکن تکیه بر عمر ناپائیدار |
| مه اوسه بې غمه له دوکې څخه د زمانې | مه کوه باور پر عمرباندي فاني کېدونکي |

**د لغاتو حل:** چهل (څلوېښت)؛ سال (کال)؛ عزیز (ګران / عزتمن)؛ گذشت (تېرېدل)؛ مزاج (طبیعت)؛ طفلی (ماشومتوب / کوچنيوالی)؛ نگشت (نه وګرځېدل / نه واوښتی).

همه (ټول)؛ هوا (خواهشات)؛ هوس (حرص)؛ ساخت (جوړول)؛ مصالح (ښه خلګ / ښه عملونه)؛ (پرداخت) مشغوله کېدل.

تکیه (باور ږ اعتماد)؛ ناپائیدار (له منځه تلونکی / فاني کېدونکی)؛ مباش (مه اوسه)؛ بازي (دوکه / تېرايستنه / ګردش)؛ رزوګار (زمانه / وخت).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه ځان ته نصيحت کوي، خو مراد يې نورو خلګو ته نصيحت کول دي. د ادب او احترام له مخي د نصيحت يا پر يو چا باندي د اعتراض او انتقاد کولو تر ټولو ښه طريقه دا ده چي خطاب ځان ته وسي او مخاطب ته په نظر دا ورکړي چي تا ته وايم، مثلاً يو څوک زموږ په مخ کي

یو د ادب خلاف کار وکړي؛ لکه یو کس مجلس ته راسي خو سلام ونه وايي، نو هغه ته د سلام ویلو د ښوونې ښه طریقه دا ده چې وویل سي: "موږ چې کله یوه مجلس ته حاضریږو نو باید سلام ووایو، ځکه دا سنت او د یوه مسلمان پر بل مسلمان باندې له پنځو حقونو څخه یو حق دئ". نو دلته هم مصنف رحمه الله همدغه طریقه غوره کړې ده، وايي چې:

"اې انسانه! تا د خپل ارزښتمن او قیمتي عمر څلوېښت (یا زیات و کم) کلونه تېر کړل، لېکن اوس هم د ماشومتوب د دورې غونډي حرکتونه کوې، د ماشومانو په څېر دنیا ته د راتګ اصلي هدف او مقصد ته (چې د الله جل جلاله عبادت دئ) پاملرنه نه کوې، د غفلت په خوب بیده يې. اوس هم وخت لرې، دا د ماشومانو عادت او غفلت پرېږده او بیدار سه، پر خپل تېرېدونکي او ختمېدونکي عمر باندې باور نه کوم چې زه به یو څه وخت نور هم ژوندی یم، وخت او زمانه ډېره چمبازه او دوکه کوونکې ده، له چم او دوکې څخه يې مه بېغمه کېږه، ته به په هیڅ نه يې خبر، خو د مرګ استازی به دې سر ته ودرېږي او له دې قیمتي عمر څخه به دې بې برخې کړي."

# در مدح کرم

## د سخاوت په ستاینه کې

دلا هر که بنهاد خوان کرم | بشد نامدار جهان کرم

اې زړه! هرڅوک چې وغوړي سترخان دسخا | سي به مشهوره په دنیا کې دسخا

کرم نامدار جهانت کند | کرم کامگار امانت کند

سخا مشهوره په جهان کې تا کوي | سخا کامیابه په امن کې تاکوي

ورائی کرم درجهان کار نیست | وزین گرم تر هیچ بازار نیست

بې له سخا په جهان کې (ښه) کار نسته | اوتردې سخا ډېرگرم بل هیڅ بازار نه سته

**د لغاتو حل:** دل (زړه)؛ دلا (اې زړه)؛ بنهاد (چې کښېږدي / هوار کړي) خوان (سترخان)؛ کرم (... بشد (سو / سي به)؛ نامدار (مشهور) . کامګار (کامیاب / بریالی)؛ امان (امن / خلا... (خلاصون تا ته). ورائی (ماسوا / پرته)؛ نیست (نه سته)؛ وزین (او تر دې)؛ ګرم تر (ډېر ګرم...

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د سخاوت ستاینه کوي او وایي چې سخا او سخاوت یو ډېر ښه او غوره صفت دئ او ډېرې ګټې لري، په دې سره خلګ هڅوي چې په ځان کې د سخا دغه غوره صفت راولي؛ وايي چې:

"اې زړه ته راښره انسانه! په دنیا چې څوک د سخاوت سترخان هوار کړي، یعني په ځان کې د سخا صفت راوستلی دئ، نو په نړۍ کې مشهور او نامداره ګرځېدلی دئ، که چیرې ته هم په ځان کې د سخا صفت ته وده ورکړې، دغه سخاوت به دې په نړۍ کې مشهوره کړي او په آخرت کې به خلاصون او نجات در په برخه کړي، ځکه چې په دنیا کې تر سخاوت بل ښه او غوره کار نه سته او تر دغه سخاوت د بل هیڅ شي بازار ډېر ګرم او تود نه دئ.

| | |
|---|---|
| کرم مایۀ شادمانی بود | کرم حاصل زندگانی بود |
| سخـــا سرمایه دخوشحـــالی ده | سخا (لاسته راوړنه) د ژوندانه ده |
| دل عالمی از کرم تازه دار | جهان را از بخشش پر آوازه دار |
| زړه دټول عالَم له سخاځخه تازه ولـره | جهان د بخښني څخه ډک له اوازې ولره |
| همه وقت شو در کرم مستقیم | که هست آفریننده جان کریم |
| هر وخت سه په سخا کي ټینګ(محکم) | (ځکه) چي دئ پیدا کوونکی د روح سـخي |

**د لغاتو حل:** مایه (سرمایه / پانګه)؛ شادمانی (خوښي / خوشحالي)؛ حاصل (لاسته راوړنه)؛ زندګانی (ژوندون).عالمی (ټوله عالم / ټوله مخلوق)؛ تازه (خوښ / تازه)؛ دار (لرل / ولره)؛ بخشش (بخښنه / ورکړه)؛ پُر (ډک)؛ آوازه (خبر).همه وقت (هر وخت / تل)؛ شو (سه)؛ مستقیم (ټینګ / باثباته)؛ آفریننده (پیدا کوونکی)؛ جان (روح / ځان)؛ کریم (سخي / مهربان).

**لنډ مطلب:** سخا د خوښۍ او خوشحالۍ پانګه او سرمایه او د ژوندانه لاسته راوړنه او حاصل دئ، نو ته د ټولې دنیا زړه په سخا سره خوشحاله وساته او په نړۍ کې دا آوازه خپره کړه چې ته سخي او بخښونکی یې، تل او هر وخت په سخا کې باثباته واوسه، ځکه چې روح پیدا کوونکی یعني الله جل جلاله کریم او سخي ذات دئ، نو سخاوت او سخا لرونکي بندګان خوښوي.

# در صفت سخاوت

## په ستاینه کې د سخاوت

دلته دا یادونه ضروري ده چې مخکې د کرم یعنې سخا اړوند یو باب تېر سو، اوس دویم وار بیا د سخاوت په نامه د سخا یو بل باب شروع سو، نو د کرم او سخاوت تر منځ فرق او توپیر څه دئ؟ نو د دې جواب دا دئ چې کرم مهرباني، بخښنې، ځوانمردي، ښه اخلاق لرلو، سخاوت او نورو غوره او ښو صفتونو ته ویل کېږي، نو کرم عام سو او سخاوت خاص او د کرم له افرادو څخه یو فرد دئ. د سخاوت اړوند په حدیثو او نورو سپېڅلو کتابونو ډېر فضائل بیان سوي دي چې مصنف رحمة الله علیه دلته د شعر په ژبه د هغو لنډیز بیانوي.

| | |
|---|---|
| سخاوت کند نیک بخت اختیار | که مرد از سخاوت شود بختیار |
| سخاوت کوي نېک بخته سړی غوره | چې سړی له سخاوت څخه کېږي بختور |
| به لطف و سخاوت جهانگیر باش | در اقلیم لطف و سخا میر باش |
| په مهرباني او سخاوت سره جهان نیوونکی سه | په وطن کې د مهربانۍ او د سخا امیر اوسه |
| سخاوت بود کار صاحبدلان | سخاوت بود پیشهٔ مقبلان |
| سخاوت دئ کار د نېکانو خلگو | سخاوت دئ خوی د سو خلگو |

**د لغاتو حل:** کند (کوي)؛ نیک بخت (نېکمرغه)؛ اختیار (غوره کول)؛ مرد (سړی)؛ شود (کېږي)؛ بختیار (بختور).

لطف (مهرباني)؛ باش (سه / اوسه)؛ اقلیم (سیمه / وطن)؛ میر (امیر)صاحبدل (د زړه څښتن / نېک) صاحبدلان یې جمع ده؛ پیشه (خوی / عادت )؛ مقبل (خوش بخته / منل سوی) مقبلان یې جمع ده.

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د کرم تر ستاینې وروسته د سخاوت ستاینه کوي، وایې چې:

"سخاوت نېکبخته او نېکمرغه خلګ غوره کوي، ځکه چې سړی په سخاوت سره بختور ګرځېږي، نو په سخاوت او مهرباني سره د درست جهان زړونه وګټه او د سخاوت په سیمه او میدان امیر او باچا واوسه، یعني

دومره سخي واوسه چي ستا په څېر بل څوک نه وي او ته د نورو سخيانو د امير او باچا حيثيت ولرې، دا ځکه چي سخاوت د زړونو د څښتنانو يعني هغه خلګو کار دئ چي زړونه يې د الله جل جلاله په ذکر او ياد سره ژوندي وي او سخاوت د منل سوو او ښو خلګو خوی، کسب او کار دئ.

| سخاوت مس عیب را کیمیا است | سخاوت همه دردها را دوا است |
|---|---|
| سخاوت د مسو عيب لره کېميا دئ | سخاوت ټولو دردونو لره دوا دئ |
| مشو تا توان از سخاوت بری | که گوئی بهی از سخاوت بری |
| مه کېږه تر خوځي وس وي له سخاوت څخه بېزاره | چي گين دغوره والي به له سخاوت څخه يوسې |

**د لغاتو حل:** مس (وسپنه)؛ عيب (نيمګړتيا)؛ کېميا (هغه مواد دي چي په ذريعه يې وسپنه په سرو زرو بدليږي)؛ همه (ټول)؛ دردها (دردونه / تکليفونه).

مشو (مه کېږه)؛ تا (تر هغو پوري)؛ توان (وس او طاقت)؛ بری (بېزاره / جلا)؛ گوئی (گين)؛ بهی (غوره والی / بهتري)؛ بری (به ری يعني يو به يې سې / وړې يې).

## در مذمت بخیل گوید

### د بخيل په بدۍ کي وايي

| اگر چرخ گردد بکام بخیل | ور اقبال باشد غلام بخیل |
|---|---|
| که چيري آسمان وګرځي په مقصد سره دبخيل | اوکه چيري بخت سي غلام دبخيل |
| وگر در کفش گنج قارون بود | وگر تابعش ربع مسکون بود |
| اوکه چيري په لاس کي دده خزانه د قارون وي | اوکه چيري تابع دده څلورمه د نړۍ وي |
| نیرزد بخیل آنکه نامش بری | وگر روزگارش کند چاکری |
| نه ارزي بخيل په دې چي نوم دده واخلې | اوکه څه هم زمانه دده کوي نوکري |

**د لغاتو حل:** اگر (که چيري)؛ چرخ (آسمان)؛ کام (مراد / مقصد)؛ اقبال (بخت)؛ غلام (مريی)؛ ور (د اگر مخفف دئ يعني که چيري). کف (ورغوی / لاس)؛ گنج (خزانه / زېرمه)؛ قارون (يو ډېر زيات

شتمن بخیل وو)؛ تابع (پیروي کوونکې / فرمان منونکې)؛ ربع (څلورمه حصه)؛ مسکون (د اوسېدنې ځای، مراد یې نړۍ ده او د نړۍ څلورمه برخه وچه او درې برخې یې اوبه دي، مطلب دا چې توله نړۍ).نیرزد (نه ارزي / نه ښایي)؛ نام (نوم)؛ آنکه (دا چې)؛ بری (واخلې / یاد کړې)؛ روزگار (زمانه)؛ چاکری (نوکري / خدمت).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د بخیل بدوالی بیانوي او مطلب یې دا دئ چې خلګو ته وښیي چې بخل دومره بد او ناوړه صفت دئ چې که په کوم چا کې موجود وي، نو هغه نور که هر څومره ښه صفتونه ولري، خو بیا هم د دغه بخل له امله هغه د دې وړتیا نه لري چې آن څوک یې نوم هم په خوله یاد کړي، مصنف رحمة الله علیه فرمایي:

"که چیرې بخیل دومره د ستر مقام څښتن وي چې آن آسمان یې هم په امر سره پر خوځښت راځي، بخت د هغه غلام وي، له هغه سره د قارون د خزانو په اندازه شتمنۍ او دنیا وي او توله نړۍ د هغه تابع او پیروې وي او همدا ډول که زمانه او وخت د هغه نوکري کوي، بیا هم بخیل په دې نه ارزي چې نوم یې په خوله واخیستل سي."

| | |
|---|---|
| مکن التفاتی بمال بخیل | مبر نام مال ومنال بخیل |
| مـه کوه نظر و مال ته د بخیل | مه اخله نوم د مال اودسامان د بخیل |
| بخیل از بود زاهد بحر وبر | بهشتی نباشد بحکم خبر |
| بخیل که څه هم وي پرهیزگاره دسمندراودوچي | جنـتي نه به وګي په حکم سره دحدیث شریف |
| بخیل ارچه باشد توانگر بمال | بخواری چو مفلس خورد گوشمال |
| بخیل که څه هم سي شتمن په مال سره | په ذلالت سره لکه بېچاره خوري دغوږ پېچل |
| سخیان زاموال بر می خورند | بخیلان غم سیم وزر می خورند |
| سخیـان لـه مالونو څخه میوه خوري | بخیلان غم دسپینو اودسروزرو خوري |

**د لغاتو حل:** مکن (مه کوه)؛ التفاتی (نظر / توجه)؛ مبر (مه اخله / مه یادوه)؛ منال (سامان).

ار (که څه هم)؛ زاهد (پرهېزګاره / بزرګ)؛ بحر (سمندر / دریاب)؛ بر (د ځمکې وچه حصه)؛ بهشت (جنت)؛ نباشد (نه به وي)؛ حکم (پرېکړه / فیصله / امر)؛ خبر (حدیث شریف).

توانگر (شتمن)؛ بخواری (په ذلت سره)؛ مفلس (غریب / اړ)؛ گوشمال (د غوږ پیچل).

اموال (شتمنۍ / مالونه)؛ بر (بنه حصه)؛ می خورند (خوري)؛ سیم (سپین زر)؛ زر (سره زر).

**لنډ مطلب:** "نو اې انسانه! د بخیل شتمنیو او جایدادونو ته مه گوره او مه د هغه د شتمنیو نوم پر خوله راوړه، ځکه له هغه څخه تا ته هیڅ گټه نه در رسیږي. یو بخیل انسان که دومره متقي او پرهېزگاره واوسي چې آن په وچه او سمندرونو کې یې ساری نه وي، خو بیا هم جنت ته نه سي داخلېدلای، ځکه دا خبره په حدیث ثابته ده. بخیل که څه هم ډیري شتمنۍ ولري، خو بیا د یوه غریب او بېچاره انسان په څېر هر ځای د غوږ پیچونه خوري، دا ځکه چې سخیان له خپلو شتمنیو څخه هغه بنه حصه د ځان له پاره په کار اچوي او ځانونو ته دنیوي او اخروي گټې په راجلبوي، خو بخیلان سره او سپین زر ذخیره کوي او یوازې د هغو له خیرو څخه استفاده کوي، نه دنیوي گټه په لاسته کوي او نه اخروي."

# در صفت تواضع

## د عاجزۍ په ستاینه کې

| | |
|---|---|
| دلا گر تواضع کنی اختیار | شود خلق دنیا ترا دوستدار |
| اې زړه! که چیري عاجري کړې مختاره | سي به خلگ دتولي دنیا تا لره دوستـــان |
| تواضع زیادت کند جاه را | که از مهر پرتو بود ماه را |
| عاجزي زیاتوب کوي مرتبې لره | چي له لمر څخه رڼا وي سپوږمۍ ـ لره |
| تواضع بود مایه دوستی | که عالی بود پایه دوستی |
| عاجزي ده سرمایه د دوستۍ | چي لوړه وي مرتبه د دوستۍ |
| تواضع کند مردرا سرفراز | تواضع بود سروران را طراز |
| عاجزي کوي سړی سر لوړی | عاجزي وي سردارانو لره ښایست |

**د لغاتو حل:** تواضع (عاجزي)؛ شود (سي به / کیږي)؛ دوستدار (خوښوونکي / مینه کوونکي). جاه (مرتبه / درجه)؛ مهر (لمر)؛ پرتو (رڼا / روښنایي)؛ ماه (سپوږمۍ). مایه (سرمایه)؛ عالی (لوړه / اوچته)؛ پایه (مرتبه / مقام).مرد (انسان / سړی)؛ سرفراز (سرلوړی)؛ سروران (لویان / سرداران)؛ طراز (ښایست).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د عاجزۍ ستاینه کوي، فرمايي:

"اې انسانه! که چیري عاجزي غوره کړې نو د دنیا ټول خلګ به مینه او محبت در سره ولري. د عاجزۍ په کولو سره ستا مقام او درجه لوړېږي، لکه څنګه چي سپوږمۍ خپله رڼا له لمر څخه ترلاسه کوي. عاجزي د دوستۍ او ګرانښت سرمایه ده او د دوستۍ او میني درجه او مرتبه ډېره لوړه وي. عاجزي انسان سر لوړی کوي او عاجزي د امیرانو او سردارانو ښکلا او ښایست دئ.

| | |
|---|---|
| تواضع کند هر که هست آدمی | نه زیبد ز مردم بجز مردمی |
| عاجزي کوي هرهغه څوک چي وي انسان | نه ښايي له سړي سره ماسېوا له سړيتوبه |
| تواضع کند هوشمند گذین | نهد شاخ پُر میوه سر بر زمین |
| عاجزي کوي هوښیار انسان غوره | ږدي ښاخ ډک له مېوې سر پر مځکه |
| تواضع بود حرمت افزائی تو | کند در بهشت برین جائی تو |
| عاجزي ده عزت زیاتوونکی ستا | کوي په جنت کي چي لوی دئ خای ستا |

**د لغاتو حل:** هر که (هر څوک)؛ آدمی (انسان)؛ نه زیبد (نه ښايي)؛ مردم (خلګ / انسانان)؛ مردمی (سړيتوب / انسانیت)(هست /چي وي)، هوشمند (هوښیار / عاقل)؛ گذین (غوره / اختیار)؛ نهد (ږدي / پرېباسي)؛ پُر (ډک)؛ زمین (مځکه). حرمت (عزت / آبرو)؛ افزائی (زیاتوونکی)؛ تو (ستا)؛ بهشت (جنت)؛ برین (لوړ)؛ جائی (خای).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه زیاتوي: "څوک چي سړی وي او انسانیت او سړيتوب ولري، هغه تل عاجزي کوونکی وي او عاجزي خوښوي، ځکه چي له سړي سره عاجزي او تواضه ښه ښکاري او تل باید عاجزي کوونکی وي. هوښیار او عاقل انسان عاجزي خوښوي، ځکه چي له مېوې څخه ډک ښاخ تل سر د مځکي لوري ته کښته کړی وي. عاجزي به ستا عزت نور هم زیات کړي او همداسي به دي په آخرت کي جنت ته داخل کړي.

| | |
|---|---|
| تواضع کلید در جنت ست | سرافرازی وجاه را زینت ست |
| عاجزي کلي د دروازې د جنت ده | سر لوړي مرتبې لره ښکلا ده |
| کسی راکه گردن کشی در سر ست | تواضع ازو یافتن خوشتر است |
| د چا چي تکبر (مغروري) په سرکي وي | عاجزي له هغه کس موندل ډېر ښه دی |
| کسی راکه عادت تواضع بود | ز جاه و جلالش تمتع بود |
| د چا چي خوی عاجزي وي | له مرتبې اولويي ښخه د ده به گټه وي |

**د لغاتو حل:** کلید (کِلي)؛ در (دروازه)؛ سرافرازي (سر لوړي)؛ جاه (مرتبه)؛ زينت (ښايست). گردن کشي (غاړه اوږدول / سر شک نيول / تکبر)؛ يافتن (ښني صادرېدل / ښني موندل)؛ خوشتر (ډېر ښه). جلال (لويي)؛ جلالش (د ده لويي)؛ تمتع (گټه ترلاسه کېدل).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله عليه فرمايي: "عاجزي د جنت د دروازې کلي ده او همدا رنگه د سرلوړي او مرتبې ښايست او ښکلا ده، د چا په سر کي چي تکبر او غرور ځای نيولی وي، د هغه له پاره عاجزي ډېره غوره ده او د چا چي عاجزي خوی او عادت وي، هغه له خپلي لويي او لوړي مرتبې ښخه گټه او نفعه ترلاسه کولای سي، يعني ځوک چي د عاجزۍ صفت په ځان ونه لري، هغه که څه هم هر ځومره لوړه مرتبه او لوی منصب ولري، خو بيا هم يې هيڅ گټه نه ور رسيږي.

| | |
|---|---|
| تواضع عزیزت کند در جهان | گرامی شوی پیش دلها چو جان |
| عاجزي عزتمن تاکوي په جهان کي | معزز سې به په مخ کې د زړونو لکه روح |
| تواضع مدار از خلائق دریغ | که گردن ازان برکشی همچو تیغ |
| عاجزي مه لره له خلگوښخه منع | چي غاړه له عاجزۍ ښخه لوړه کېږي لکه توره |
| تواضع زگردن فرازان نکو ست | گدا گر تواضع کند خوی اوست |
| عاجزي له سرلوړو خلگوښخه ښه ده | فقير که چيري عاجزي کوي نوعادت دهغه دی |

**د لغاتو حل:** گرامی (عزتمن)؛ پيش (په مخ کي)؛ دلها (زړونه)؛ چو (لکه)؛ جان (روح). مدار (مه لره)؛ خلائق (خلگ)؛ (دريغ (منع)؛ گردن (غاړه)؛ بر (پورته / لوړ)؛ همچو (په مثال سره)؛ تيغ (توره). گردن فرازان (سرلوړي)؛ نکو (ښه)؛ گدا (فقير / غريب)؛ خوی (عادت).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د عاجزي اړوند زیاتوي: "عاجزي دي په توله دنیا کي عزتمن کوي او د خلگو په زړونو کي به د روح غوندي ځان ونیسې، نو ته هیڅکله د خلگو په وړاندي له عاجزۍ څخه لاس مه اخله، تل د هر چا په وړاندي عاجزي کوه، ځکه چي په عاجزۍ سره د توري په څېر سرلوړی کېږې. عاجزي له سر لوړو او لویو او شتمنو خلگو سره ښه ایسي، ځکه فقیران او غریبان که عاجزي کوي، نو دا خو د هغوی خوی او عادت دئ.

# در مذمت تکبر

## د کبر په بدوالي کي

| | |
|---|---|
| تکبر مکن زینهار ای پسر | که روزی زدستش درآئی بسر |
| کبر مه کوه خامخا اې هلکه | چي یوه ورځ به له لاسه دهغه ولوېږې پر سر |
| تکبر ز دانا بود ناپسند | غریب آید این معنی ازهوشمند |
| کبر له پوه انسان څخه وي نا خوښه | ډېرلږ پېښېږي دغه کار له هوښیارانسان څخه |
| تکبر بود عادت جاهلان | تکبر نیاید ز صاحبدلان |
| کبر وي خوی د ناپوهانو | کبر نه راځي له نېکانو خلگوڅخه |
| تکبر عزازیل را خوار کرد | به زندان لعنت گرفتار کرد |
| کبر شیطان ذلیل کړی | په بندیخانه کي د لعنت یې بندي کړی |

**د لغاتو حل:** تکبر (کبر /غرور)؛ مکن (مه کوه؛ زینهار (خامخا)؛ پسر (هلک / زوی)؛ روز (ورځ)؛ دست (لاس)؛ درآئی (وبه لوېږې). دانا (پوه)؛ ناپسند (ناخوښه)؛ غریب (لږ پېښېدونکی / نادره)؛ این معنی (دغه کار / دغه شی)؛ هوشمند (هوښیار). جاهلان (ناپوهان)؛ نیاید (نه راځي / نه پېښېږي)؛ صاحبدلان (نېکان / عاقلان). عزازیل (د شیطان نوم دئ)؛ خوار (ذلیل)؛ گرفتار (بندي).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د تکبر او غرور بدوالی بیانوي، تر څو خلګ ځانونه ځني وساتي، فرمايي: "اې انسانه! تکبر هیڅکله مه کوه، څکه که چیرې تکبر وکړې، نو یوه ورځ به د همدې تکبر له لاسه پر سر ولوېږې، یعني پرمخې به غوځار سې، مطلب دغه تکبر به دې هلاک کړي. له هوښیار او پوه انسان سره تکبر هیڅ مناسب نه وي، ډېر لږ داسې پېښ سوي دي چې یو هوښیار انسان دي تکبر کړی وي، ځکه چې تکبر او مغروري د ناپوهانو کار دئ، زړور او سپېڅلي کسان هیڅکله تکبر نه کوي. تکبر هغه ناوړه او بد صفت دئ چې شیطان یې ذلیل او د لعنت په بندیخانه کې یې بندي کړ او د تل له پاره یې له الهي رحمت څخه بې برخې کړ.

| کسی را که خصلت تکبر بود | سرش پر غرور از تصور بود |
|---|---|
| د چا چې خوی کبر وي | دهغه سر ډک له غرور او خیاله څخه وي |
| تکبر بود مایه مدبری | تکبر بود اصل بد گوهری |
| کبر دئ سرمایه د بدبختی | کبر دئ اصل (بېخ) د بد ذاتی |
| چو دانی تکبر چرا میکنی | خطا میکنی وخطا میکنی |
| چې ته پوهېږې (نو بیا) تکبر ولې کوې؟ | خطا کوې او خطا کوې |

**د لغاتو حل:** خصلت (خوی / عادت)؛ غرور (تکبر / تېروتنه)؛ تصور (خیال / فکر). مایه (سرمایه)؛ مدبري (بدمرغي / شقاوت)؛ اصل (بنیاد / بنسټ / بېخ)؛ بدگوهری (بد ذاتي). دانی (پوهېږې)؛ چرا (ولې)؛ میکنی (کوې)؛ خطا (تېروتنه / غلطي).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د تکبر په بدوالي کې زیاتوي: "د چا چې تکبر خوی او عادت وي، د هغه سر له غلطو خیالونو او غلطیو څخه ډک وي او مغروره وي. تکبر د بدبختی او بد مرغی سرمایه ده او د بد ذاتی بېخ او بنیاد دئ، نو دا چې ته په دې هر څه پوهېږې، نو بیا ولې تکبر کوې، دا کار دي ډېره ویه تېروتنه، ګناه او غلطي ده.

# در فضیلت علم

## د علم په غوراوي کې

| | |
|---|---|
| بنی آدم از علم یابد کمال | نه از حشمت وجاه ومال ومنال |
| انسان له علم څخه پیدا کوي کمال | نه له دبدبې مرتبې شتمنیو اواسبابو څخه |
| چو شمع از پی علم باید گداخت | که بی علم نه توان خدارا شناخت |
| لکه شمع له پاره د علم باید چې ویلي سې | چې بې له علمه نه کیږي د خدای پېژندل |
| خردمند باشد طلبگار علم | که گرم است پیوسته بازار علم |
| هوښیار انسان وي طلب کوونکی د علم | (ځکه) چې گرم دئ همېشه بازار د علم |
| کسی راکه شد در ازل بختیار | طلب کردن علم کرد اختیار |
| د چا چي سي په ازل کي بخت ملگری | طلب کول د علم کړي غوره |

**د لغاتو حل:** بنی آدم (د ادم زوی / انسان)؛ یابد (ترلاسه کوي / پیدا کوي)؛ حشمت (دبدبه)؛ منال (سامان / اسباب). چو (لکه)؛ از پی (له پاره) باید (ښایي)؛ گداخت (ویلي کېدل)؛ نه توان (نه سي کېدای)؛ شناخت (پېژندل). خردمند (عاقل / هوښیار)؛ پیوسته (پر له پسې / همېشه).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کي د علم فضیلت او ښه والی بیانوي، لکه چي فرمایي: "انسان په منصب، مرتبې، شتمنیو او جایدادونو سره کمال ته نه سي رسېدای، بلکي یوازي په علم سره کمال ته رسیږي، نو د علم له پاره د شمعي په څېر ځان ویلي کول په کار دي، دا ځکه چي که څوک علم ونه لري، هغه الله جل جلاله نه سي پېژندلای. هوښیار انسان تل د علم په لټه کي وي، ځکه چي د علم بازار تل گرم وي، د چا چي په ازل کي بخت ملگری وي، نو د علم په طلب او لټه کي سي."

| | |
|---|---|
| طلب کردن علم شد بر تو فرض | دگر واجب است از پیش قطع ارض |
| طلب کول د علم سو پر تا باندي فرض | بل واجب دئ له مخه طی کول د مځکي |

| | |
|---|---|
| برو دامن علم گیر استوار | که علمت رساند بدار القرار |
| ځه! لمن د علم ونیسه ټینګه | چي علم تا رسوي و دار القرار (جنت) ته |
| میاموز جز علم گر عاقلی | که بی علم بودن بود غافلی |
| مه زده کوه ما سوا له علمه که هوښیار یې | چي بې له علمه (پاته) کېدل دئ غفلت |
| ترا علم در دین ودنیا تمام | که کار تو از علم گیرد نظام |
| تا لره علم په دین کي په دنیا کي کافي دئ | چي کار ستا له علم څخه نیسي انتظام |

**د لغاتو حل:** بر تو (پر تا باندي)؛ دگر (بل)؛ قطع (پرې کول / طی کول / تر پښو ایستل)؛ ارض (مځکه). برو (ځه / ولاړ سه)؛ دامن (لمن)؛ گیر (ونیسه)؛ استوار (ټینګه / محکمه)؛ دار (کور)؛ قرار (آرامي). میاموز (مه زده کوه)؛ جز (ما سوا)؛ عاقل (هوښیار). تمام (بس / کافي)؛ گیرد (نیسي)؛ نظام (برابروالی / نظم/ انتظام) (گر /که چیري).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د علم په ستاینه کي خپل بیان ته داسي دوام ورکوي: "لاس په کار سه او د دیني علم زدکړي ته ملا وتړه او هیڅکله له دې کار څخه لاس مه اخله، ځکه هغه څه چي تا جنت ته رسولای سي، همدغه علم دئ. نو که هوښیار او عاقل یې، نو له دیني علم پرته د بل پر زده کولو وخت مه ضایع کوه، ځکه چي څوک چي دیني علم نه لري، هغه غافل او له هر څه ناخبره وي. همدغه دیني علم ستا له پاره په دین، دنیا او آخیرت کي بس او کافي دئ، ستا ټول کارونه په همدې دیني علم سره پر نظم باندي برابرېږي، نو نورو شیانو ته هیڅ ضرورت نه سته."

# در امتناع از صحبت جاهلان

## د ناپوهانو له مجلس څخه په منع کولو کي

| | |
|---|---|
| دلا گر خردمندی وهوشیار | مکن صحبت جاهلان اختیار |
| اې زړه! که چیري عقلمند او هوښیار یې | (نو) مه کوه مجلس د ناپوهانو غوره |
| زجاهل گریزنده چون تیر باش | نیامیخته چون شکر شیر باش |
| له ناپوه څخه تښتېدونکی لکه غشی اوسه | نه ورسره ګډېدونکی لکه د بوري دشیدوسره اوسه |

| ترا اژدها گر بود یار غار | ازان به که جاهل بود غمگسار |
|---|---|
| تا لره ښامار که چیري وي ملګری د یوه غار | تر دې ښه دئ چي ناپوه وي (ستا) غمخور |

**د لغاتو حل:** خردمند (هوښيار / عاقل)؛ مکن (مه کوه)؛ صحبت (مجلس / باندار/ ناسته ولاړه. جاهل (ناپوه / بې علمه)؛ گريزنده (تښتېدونکی)؛ تير (غشی)؛ باش (اوسه / سه)؛ نياميخته (نه گډېدونکی / نه يو ځای کېدونکی)؛ شکر (بوره)؛ شير (شيدې). اژدها (ښامار)؛ يار (دوست / ملګری)؛ بِه (ښه / بهتر)؛ غمگسار (غمخور / غم شريک).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله عليه دلته له جاهلانو او ناپوهانو خلګو سره د ناستي ولاړي او مجلس کولو بد والی بيانوي، تر څو خلګ له دې کار څخه ځانونه وژغوري؛ فرمايي: "اې انسانه! که ته لږ څه هم عقل او هوښ لرې، نو هيڅکله له ناپوهانو سره مجلسونه او باندارونه مه کوه، بلکي له هغوی څخه داسي تښته لکه غشی چي له کمان څخه ووزي او په ډېري چټکۍ سره په مخ ځي او بيرته هيڅکله نه ورته راګرځي، له ناپوهانو سره داسي مه يوځای کېږه او ګډېږه لکه بوره چي له شيدو سره ګډه سي او پکښې ورکه سي. له ناپوهانو سره ناسته ولاړه دومره زيان لري چي که چيري ستا سره په يوه غار يا کوټه کي يو ډېر لوی ښامار ملګری وي، دا تر دې ښه دئ چي ناپوه انسان دي ملګری او خواخوږی وي.

| اگر خصم جان تو عاقل بود | به از دوستداری که جاهل بود |
|---|---|
| که چيري دښمن د ځان ستا هوښيار (پوه) وي | ښه دئ تر هغه ملګري چي نــاپوه وي |
| چو جاهل کسی درجهان خوار نیست | که نادان تر از جاهلی کار نیست |
| په مثال دناپوه هيڅوک په دنياکي ذليل نه سته | چي ډېراحمق تر ناپوهی بل کار نه سته |
| ز جاهل نیاید جز افعال بد | وزو نشنود کس جز اقوال بد |
| له ناپوه څخه نه راځي ماسېوا کارونه دبدو | له ده څخه نه اوري هيڅوک ماسېوا له خبرو بدو |

**د لغاتو حل:** خصم (دښمن)؛ جان (ځان / روح)؛ دوستدار (ملګری). چو (لکه / په مثال)؛ کسی (يو څوک / هيڅوک)؛ نادان (احمق / بې عقل)؛ جاهلی (ناپوهي). نيايد (نه راځي)؛ جز (ماسېوا)؛ نشنود (نه اوري)؛ اقوال (خبري / ويناوي).

**لنډ مطلب:** "مثل دئ

هوښیار وي دا تر دې ښه دئ چې يو ناپوه دې ملګری وي. په دنیا کې تر ناپوه او جاهل انسان بل خوار او ذلیل څوک نه سته او نه هم په دنیا کې تر ناپوهی او احمقتوب بل ناوړه او تیټ کار نه سته، ځکه چې له ناپوه څخه له بدو او غلطو کارونو او ناوړو او پوچو خبرو پرته بل هیڅ نه ترلاسه کیږي.

| | |
|---|---|
| سر انجام جاهل جهنم بود | که جاهل نکو عاقبت کم بود |
| انجام او عاقبت د ناپوه به جهنم وي | ځکه چې ناپوه ښه انجامی (نیک عاقبته) ډېر لږ وي |
| سر جاهلان بر سر دار به | که جاهل بخواری گرفتار به |
| سر د ناپوهانو پر سر د دار ښه دئ | چې ناپوه په خوارۍ کې بندي ښه دئ |
| ز جاهل حذر کردن اولیٰ بود | کزو ننگ دنیا و عقبیٰ بود |
| له ناپوه څخه ځان ګوښه کول ښه دي | له ده څخه شرم د دنیا او داخرت وي |

**د لغاتو حل:** سر انجام (وروستی انجام / عاقبت)؛ جهنم (دوزخ)؛ نکو عاقبت (ښه عاقبت)؛ کم (ډېر لږ / هیڅ). دار (پانسی)؛ حذر کردن (پرهېز کول )؛ اولی (غوره)؛ ننگ (عار / شرم)؛ عقبی (آخیرت).

**لنډ مطلب:** "د ناپوه عاقبت تل دوزخ وي، ځکه چې دا ډېر لږ یا هیڅ نه پېښیږي چې يو ناپوه او جاهل دې ښه عاقبت او انجام ولري. د ناپوهانو سر يوازې د دار پر سر ښه ایسي او ناپوهان تل باید په سختیو او ستونزو کې بند پاته وي، که نه نو نورو خلګوته ستونزې او مشکلات پیدا کوي. له ناپوه څخه باید ځان ګوښه کړل سي، ځکه څوک چې له ناپوه سره ناسته ولاړه کوي، هغه به په دنیا او آخیرت کې شرمینده وي.

# در صفت عدل

## د عدل په ستاینه کې

| | |
|---|---|
| چو ایزد ترا این همه کام داد | چرا برنیاری سر انجام داد |
| دا چې خدای تا له دغه ټول مقاصد درکړي دي | نو ولې نه پوره کوې اخرکار د عدل |
| چو عدلست پیرایه خسروی | چرا عدل را دل نداری قوی |
| دا چې عدل دئ ښاست د پاچاهی | نو ولې عدل له زړه نه لرې خواکمن |

ترا مملکت پائداری کند | اگر معدلت دستیاری کند

تا لره باچاهي همېشه (پیدا) کوي | که چیري عدل ملتیا درسره وکړي

**د لغاتو حل:** ایزد (خدای ج)؛ کام (موخه / مقصد)؛ داد (ورکول / درکړي دي) بر نیاری (نه راوړې / نه پوره کوې)؛ داد (ورکړه / عدل / سخا). پیرایه (ښکلا /ښایست)؛ خسروی (باچاهي)؛ نه داری (نه لرې)؛ قوي (ځواکمن / محکم).

**لنډ مطلب:** مصنف رح دلته د عدل او انصاف ستاینه کوي، خو تر هغه مخکې واکمنانو او چارواکو ته په خطاب کې فرمايي: "دا چې الله جل جلاله ستا ټول مقصدونه او موخې در پوره کړي دي او ته یې شتمن او واکمن گرځولی یې، نو ولې د هغه جل جلاله له بندگانو سره د عدل او انصاف چلن او رویه نه کوې؟ دا چې عدل او انصاف ستا باچاهۍ ته ښکلا وربخښي، نو ولې د هغه له پاره زړه نا زړه یې؟ زړه دې قوي کړه او عدل، انصاف سخاوت ته مخه کړه، په دې سره ستا واکمني او باچاهي نور هم دوام پیدا کړي. او ستا باچاهي هغه وخت دوامداره کېدای سي چې تل او همېشه له عدل او انصاف سره کار واخلې.

چو نوشیروان عدل کرد اختیار | کنون نام نیک ست ازو یادگار

لکه د نوشیروان باچا عدل کړه غوره | چې تراوسه نوم ښه دئ له هغه څخه پاته

زتاثیر عدلست آرام ملک | که از عدل حاصل شود کام ملک

له تاثیرڅخه د عدل ده آرامي د وطن | چې له عدل څخه ترلاسه کېږي مقصد د وطن

جهان را با انصاف آباد دار | دل اهل انصاف را شاد دار

جهان لره په انصاف سره ودان ولره | زړه د خاوندانو دانصاف خوښ ولره

**د لغاتو حل:** نوشیروان (د یوه پخواني باچا نوم دئ چې ډېر عادل وو)؛ کنون (چې تر اوسه). تاثیر (اغېز)؛ آرام (سوکالي / آرامي)؛ ملک (وطن / هیواد)؛ شود (کېږي). آباد (ودان / جوړ)؛ اهل انصاف (مراد یې هغه خلګ دي چې عدل او انصاف غواړي)؛ شاد (خوښ / خوشحاله)؛ دار (ولره).

**لنډ مطلب:** "نو ته د نوشیروان عادل په څېر عدل او انصاف غوره کړه، نوشیروان دومره عادل وو چې تر اوسه یې نوم د خلګو په زړونو او خولو کې یاد ساتل سوی دئ. د وطن او هیواد آرامي په عدل او انصاف سره رامنځ کېږي، څکه په عدل سره د وطن موخې او مقاصد پوره کېږي. نو ته دې په خپل عدل او انصاف

سره دنیا ودانه او د انصاف غوښتونکو زړونه خوشحاله کړه."

جهان را به از عدل معمار نیست | که بالا تر از معدلت کار نیست

جهان لره ښه ترعدل بل ودانوونکی نسته | چي ډېر لوړ(غوره) له عدل څخه بل کار نسته

ترا زین به آخر چه حاصل بود | که نامت شهنشاه عادل بود

تا لره به تردې ښه آخر څه حاصل وي | چي نوم ستا باچا انصاف داره وي

اگر خواهی از نیک بختی نشان | درِ ظلم بندی بر اهل جهان

که چیري غواړې له نېکمرغۍ څخه نښه | (نو) دروازه د ظلم وتړه پر خښتنانو د جهان

رعایت دریغ از رعیت مدار | مراد دل داد خواهان بر آر

عدل منع له خلګوڅخه مه لره | مقصد د زړه د انصاف غوښتونکو پوره کړه

**د لغاتو حل:** معمار (جوړوونکی / ودانوونکی)؛ بالا تر (ډېر لوړ / ډېر ښه)؛ معدلت (عدل). زین (تر دې / له دغه څخه)؛ چه (څه)؛ نامت (نوم ستا)؛ شهنشاه (باچا). اگر (که چیري)؛ خواهی (غواړې)؛ نشان (نښان / علامه)؛ در (دروازه)؛ بندی (وتړه). رعایت (عدل / انصاف)؛ دریغ (منع)؛ رعیت (خلګ)؛ مدار (مه لره)؛ مراد (مقصد)؛ داد خواهان (عدل غوښتونکي)؛ بر آر (پوره کړه).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه زیاتوي: "عدل د دنیا تر ټولو ښه ودانوونکی دئ او تر عدل بل لوړ او ښه کار نه سته، آخر به تا ته تر دې کوم ښه شی په لاس درسي چي ته دي په عادل باچا سره مشهور سې؟ که چیري غواړې چي په نېکمرغۍ کي یو مثال پاته سې، نو د خلګو پر مخ د ظلم او تېري دروازه وتړه، له خپل رعیت څخه عدل او انصاف مه منعه کوي، د عدل غوښتونکو د زړه غوښتنه او مقصد ور پوره کړه."

## در مذمت ظلم

### د ظلم په بدوالي کي

خرابی ز بیداد بیند جهان | چو بُستان خرم زباد خزان

خرابوالی له ظلم څخه ویني جهان | لکه باغ تازه له باد څخه د مني

| | |
|---|---|
| مده رخصت ظلم در هیچ حال | که خورشید ملکت نیابد زوال |
| مه ورکوه رخصت ظلم ته په هیڅ حال کي | چي لمر د وطن پيدا نه کړي زوال |
| کسی کاتش ظلم زد درجهان | بر آورد از اهل عالم فغان |
| څوک چي اور د ظلم بل کړي په جهان کي | را به وړي له ښېښتانو څخه د عالَم فریاد |
| ستمکش گر آهی برآرد زدل | زند سوز او شعله درآب وگل |
| مظلوم که چيري آه راوباسي له زړه څخه | وبه وهي فریاد دهغه لمبه په اوبو او ختو کي |

**د لغاتو حل:** خرابی (خرابي / ویراني / ویجاړي)؛ بیداد (ظلم)؛ بیند (ویني)؛ بستان (باغ)؛ خُرم (تازه). مده (مه ده: مه ورکوه)؛ رخصت (اجازه)؛ خورشید (لمر)؛ زوال (له منځه تلل). آتش (اور)؛ فغان (فریاد / چيغې او ناري). ستمکش (مظلوم)؛ آهی (آه / اُف / اُه)؛ زند (سوځي / وهي)؛ سوز (گرمي)؛ شعله (لمبه)؛ آب (اوبه)؛ گِل (ختې).

**لنډ مطلب:** مؤلف رحمة الله عليه دلته د ظلم بدي بيانوي، فرمايي: "په ظلم سره جهان داسي خرابيږي او ويرانيږي، لکه پر يوه تازه باغ چي د خزان باد راسي او وچ يې کړي، نو په خپله سيمه کي هيڅکله او په هيڅ حال کي ظلم ته اجازه مه ورکوه، تر څو د ملک او وطن لمر دي ونه لوېږي، ځکه څوک چي د ظلم اور بل کړي، نو د ټول عالَم خلگ به چيغې او فرياد پيل کړي او دا په حديث شريف ثابته خبره ده چي که مظلوم يو آه له زړه څخه راوباسي، نو د دغه آه گرمي او لمبه له دومره ځواکمنه وي چي آن د اوبو او ختو په منځ کي به هم بله سي، مطلب دا چي په دې سره د ظالم دنيا او آخيرت دواړه تباه او برباد سي."

| | |
|---|---|
| مکن بر ضعیفان بیچاره زور | بیندیش آخر زتنگی گور |
| مه کوه پر کمزورو بېچاره گانو ظلم | وېېرېږه آخر له تنگوالي څخه د قبر |
| بآزار مظلوم مائل مباش | زدود دل خلق غافل مباش |
| و آزارولو ته د مظلوم لېواله مه کېږه | له فرياد څخه د زړه د خلگو غافله مه کېږه |
| مکن مردم آزاری ای تندرای | که ناگه رسد برتو قهر خدای |
| مه کوه خلگ زهېرونه اې بد خويه | چي ناڅاپه به راورسېږي پرتاباندي غضب د خدای |

| که ظالم بدوزخ رود بی سخن | ستم بر ضعیفان مسکین مکن |
|---|---|
| ځکه چي ظالم و دوږخ ته ځي بې پوښتني | ظلم پر کمزورو پرمسکینانو مه کوه |

**د لغاتو حل:** زور (ظلم)؛ بیندیش (وبېرېږه)؛ گور (قبر). آزار (زهیرول)؛ مائل (لېواله). مردم آزاری (د خلگو زهیرول / ظلم وربانديِ کول)؛ تندرای (بد خویه / بد چلنده)؛ ناگه (ناڅاپه)؛ قهر (غضب).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د ظلم د بدیو بیانولو ته دوام ورکوي، فرمايي: "پر کمزورو او بېچاره ؤ خلگو باندي ظلم مه کول، آخر به ته هم قبر ته ځې، نو د خپل قبر له تنگوالي څخه وبېرېږه او ظلم پرېږده. پر مظلومانو باندي ظلم کولو ته زړه مه ښه کوه، د هغوی د زړه له سوز او فریاد څخه مه غافله کېږه، د هغوی په یوه آه سره ستا دنیا او آخیرت دواړه تباه کېږي. خلگ مه زهیروه او دا بدخویي دي پرېږده، که نه نو ناڅاپه به د الله جل جلاله قهر او غضب درباندي وسي. پر بېچاره گانو او کمزورو خلگو باندي ظلم مه کوه، ځکه چي ظالم له کومي خبري او شک پرته دوږخ ته ځي.

# در صفت قناعت

## د قناعت په ستاینه کي

| در اقلیم راحت کنی سروری | دلا گر قناعت بدست آوری |
|---|---|
| په وطن کي د سوکالۍ به وکړې سرداري | اې زړه! که چیري قناعت په لاس راوړې |
| که پیش خردمند هیچست مال | اگر تنگدستی زسختی منال |
| چي مخ کي د هوښیار هیڅ دئ مال | که چیري تنگلاسی یې له سختیو مه ژاړه |
| که باشد نبی را از فقر افتخار | ندارد خردمند از فقر عار |
| چي وو نبي ص لره له فقر څخه ویاړ | نه لري هوښیار انسان له فقر څخه شرم |
| ولیکن فقیر اندر آسائش ست | غنی را زر و سیم آرائش ست |
| مگر فقیر په هوسایي کي دئ | شتمن لره سره او سپین زر ښایست دئ |

**د لغاتو حل:** بدست آوری (لاس ته راوړې)؛ اقلیم (سیمه / وطن)؛ راحت (آرامي / هوسايي)؛ سروری (سرداري / واکمنی). تنگدستی (تنگلاسی / څه نه لرل)؛ منال (مه نال: مه ژاړه / فریاد مه کوه). عار (شرم)؛

افتخار (فخر / ویاړ)؛ زر وسیم (سره او سپین زر)؛ اندر آسائش (په هوساینه کې).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د قناعت ښه والی او ګټې بیانوي، لکه چې فرمایي: "اې انسانه! که چیرې پر خپلو شته ؤ قناعت وکړې، نو ډېر راحت او هوسا ژوند به ولرې. که چیرې په لاس کې څه نه لرې، نو له دې غریبۍ او نېستۍ څخه شکایت او فریاد مه کوه، ځکه چې هوښیاران شتمنیو ته ارزښت نه ورکوي، هوښیار انسان له نېستۍ او غریبۍ څخه هیڅ شرم نه لري، ځکه چې زموږ خوږ پیغمبر حضرت محمد صلی الله علیه وسلم به په خپل فقر او نېستۍ ویاړ کوی. که شتمن په خپلو شتمنیو نازېږي او ویاړ په کوي، نو فقیران خو به آرام او هوسا ژوند لري، چې شتمن دا شی بېخي پېژني هم نه.

| | |
|---|---|
| غنی گر نباشی مکن اضطراب | که سلطان نخواهد خراج از خراب |
| شتمن که نه یې مه کوه اندېښنه | چې باچا نه غواړي مالیه له خرابي مځکې |
| قناعت بهر حال اولی تر ست | قناعت کند هر که نیک اختر ست |
| قناعت پر هر حال ډېر غوره دئ | قناعت کوي هرڅوک چې نېک بخته وي |
| ز نور قناعت برافروز جان | اگر داری از نیک بختی نشان |
| له نور څخه د قناعت روښانه کړه روح | که چیرې لرې له نېک بختۍ څخه علامه |

**د لغاتو حل:** غنی (شتمن)؛ اضطراب (اندېښنه / پرېشاني)؛ سلطان (باچا)؛ نخواهد (نه غواړي)؛ خراج (د مځکې زکاة)؛ خراب (خرابه مځکه)؛ اولی تر (ډېر غوره)؛ نیک اختر (نېک بخته)؛ برافروز (روښانه کړه).

**لنډ مطلب:** "که شتمن او پیسه دار نه یې، نو دا کومه د اندېښنې او خواشینۍ خبره نه ده، ځکه د سیمې واکمن یوازې له هغه مځکې څخه مالیه اخلي چې سمه او کښت ورباندې کېږي، مطلب دا چې که شتمن نه یې، په آخیرت کې به له حساب او کتاب څخه خلاص یې. قناعت په هر حال کې ډېر ښه دئ، قناعت هغه څوک کوي چې بختور وي. نو ته هم د قناعت په روښنايي سره خپل روح / زړه روښانه کړه، که چیرې کومه د نېکمرغۍ نښه او علامه لرې."

# در مذمت حرص

## د حرص په بدوالي کي

| | |
|---|---|
| ایا مبتلا گشته در دام حرص | شده مست ولایعقل از جام حرص |
| اې بندي گرڅېدلې یې په دام کي د حرص | سوی یې مست بې عقل له جام څخه د حرص |
| مکن عمر ضائع به تحصیل مال | که هم نرخ گوهر نباشد سُفال |
| مه کوه عمر بې ځایه په ترلاسه کولو دشتمنیو | برابر قیمت د ملغلري نه وي له کودرکو سره |
| هر آنکسي که در بند حرص اوفتاد | دهد خرمن زندگاني بباد |
| هر هغه څوک چي په بندکي د حرص ولوېږي | ورکوي درمند د ژوندانه و باد ته |
| گرفتم که اموال قارون تراست | همه نعمت ربع مسکون تراست |
| فرض مي کړه چي شتمنۍ د قارون ستا دي | ټوله نعمتونه څلورمه د دنیـا ستا ده |

**د لغاتو حل:** ایا (اې)؛ مبتلا (بندي / اخته)؛ گشته (سوی / گرځېدلی)؛ دام (بند / جال)؛ لا یعقل (بې عقل)؛ حرص (سرابښتوب). ضائع (بې ځایه / عبث)؛ تحصیل (لاسته راوړل)؛ هم نرخ (یو قیمته / برابر قیمته)؛ گوهر (غمی / ملغلره)؛ سفال (کودرکی / خاورین لوښی). اوفتاد (ولوېږي)؛ خرمن (درمند یا دغنموکوټه)؛ گرفتم (ما فرض کړه / ومي گڼله)؛ همه (ټول)؛ ربع (څلورم)؛ مسکون (د استوگني ځای / دنیا).

**لنډ مطلب:** له دې ځای څخه مصنف رحمة الله علیه د حرص او سرابښتوب بدي بیانوي: "اې د حرص په دام کي اخته سوې انسانه! ته د حرص په جام سره دومره مست او نشه سوی یې چي بېخي دي عقل له لاسه ورکړی دئ. خپل قیمتي عمر دي د شتمنیو په ترلاسه کولو بې ځایه مه تېروه، ځکه شتمنۍ د خاورین لوښي د توتې یعني کودرکي او د الله جل جلاله طاعت او عبادت د گران بیه ملغلرو په څېر دئ، نو د ملغلرو او کوردکو قیمت کله سره یو کېدای سي. هر څوک چي یو ځل د حرص په ناوړه صفت عادت سي، هغه بیا ځان نه سي ځني خلاصولای، نو داسې سي لکه د ژوندانه درمند چي په بادونو یوسي. زه به داسي فرض کړم چي دقارون په څېر شتمن او هستمن یې او دا ټوله نړۍ ستا ده..."

بخواهی شد آخر گرفتار خاک
(مگر) سې به آخر بندي د خاورو (قبر)
چو بیچارگان بادل دردناک
لکه بېچارگان له زړه دردناک سره

چرا میگدازی ز سودائی زر
ولي ویلېږې له اندېښنې د سرو زرو
چرا می کشی بار محنت چو خر
ولي کشوې بار د خوارۍ لکه خر

چرا می کشی محنت ازبهر مال
ولي زغمې خوارۍ له پاره د شتمنۍ
که خواهد شدن ناگهان پائمال
چي سي به (دا شتمنۍ) ناڅاپه برباد

چنان داده دل بنقش درم
داسي دي ورکړی دئ زړه پر نقش د پیسو
که هستی ز ذوقش ندیم ندم
چي ته یې له خوند د هغه ملګری پښېمانه

**د لغاتو حل:** چرا (ولي)؛ میگدازی (ویلېږې)؛ سودائی (اندېښنه / فکر)؛ می کشی (کشوې)؛ محنت (خواري / تکلیف)؛ از بهر (له پاره)؛ خواهد (د "به" په معنی دئ)؛ ناګهان (نابېره)؛ پائمال (برباد). چنان (داسي / دا ډول)؛ دا ده (ور کړی)؛ هستی (ته یې)؛ ذوقش (لذت د هغه)؛ ندیم (ملګری)؛ ندم (پښېماني).

**لنډ مطلب:** "خو آخر به ته هم د بې چارګانو په څېر له دردناک زړه سره د خاورو بندیوان سې. ولي د زرو او شتمنیو په سودا او فکر کي ویلېږې او ولي د خره په څېر د خوارۍ او تکلیفونو بارونه وړې؟ ولي د هغه شتمنیو له پاره خوارۍ او سختۍ زغمې، چي یوه ورځ به ټولي له منځه ولاړي سي؟ زړه دي پر پیسو باندي داسي بایللی دئ چي په لذت او خوند کي یې ببخي د پښېمانۍ ملګری سوی یې، تل پښېمانه او پښېمان یې، خو هیڅ دي لاس ته نه درځي."

چنان عاشق روئی زر گشتهٔ
داسي مین پر صورت د زرو ګرځېدلی یې
که شوریده احوال وسرگشتهٔ
چي پرېشان حاله او سرګردانه سوی یې

چنان گشتهٔ صید بهر شکار
داسي سوی یې لکه ښکاري له پاره دښکار
که یادت نیاید زروز شمار
چي په یادکي ستا نه راځي یوه ورځ دحساب

مبادا دل آن فرومایه شاد
نه دي وي زړه د هغه بد بخته سړي خوشحاله
که ازبهر دنیا دهد دین بباد
چي له پاره د دنیا ورکوي دین و باد ته

**د لغاتو حل:** روئی (مخ / صورت)؛ شوریده (پریشان / اندېښمن)؛ سرگشته (سرگردانه / حیران). صید (ښکار ته وايي، خو دلته ځني مراد ښکاري دی)؛ شکار (ښکار)؛ روز شمار (ورځ د حساب / قیامت). مبادا (نه دي وي)؛ فرومایه (بد ذاته او رزیل انسان)؛ شاد (خوښ / خوشحاله).

**لنډ مطلب:** "ته خو پر پیسو او شتمنیو داسې مین سوی یې چي ښځي سربداله او سرگردانه یې، داسي سوی یې لکه د ښکاري له پاره ښکار، د حساب ورځ خو دي ښځي یاد ته نه راځي. د هغه بد انسان زړه دي هیڅ نه وي خوشحاله چي د دنیا له پاره تر دین تېرېږي."

# در صفت طاعت و عبادت

## د طاعت او عبادت په ستاینه کي

| | |
|---|---|
| کسی را که اقبال باشد غلام | بود میل خاطر بطاعت مدام |
| چا لره چي بخت وي غلام | وي میلان د زړه یې و طاعت ته همېشه |
| نشاید سر از بندگی تافتن | که دولت بطاعت توان یافتن |
| نه ښايي سر (غاړه) له بندګۍ څخه پېچل | څکه چي دولت په طاعت سره طاقت کېږي |
| سعادت زطاعت میسر شود | دل از نور طاعت منور شود |
| نېکبختي له عبادت څخه ترلاسه کېږي | زړه له نور څخه د طاعت روښانه کېږي |
| اگر بندی از بهر طاعت میان | کشاید در دولت جاودان |
| که چیري وتړې له پاره د طاعت ملا | خلاصه به سي دروازه د دولت همېشني |

**د لغاتو حل:** اقبال (بخت)؛ میل (لېوالتیا / رغبت)؛ خاطر (زړه)؛ مدام (تل / همېشه). نَشاید (نه ښايي)؛ تافتن (پېچل / غړول)؛ توان یافتن (پیدا کېږي). سعادت (نېکمرغي)؛ میسر (ترلاسه کېدل / آسانه کېدل)؛ منور (روښانه). بندی (وتړې)؛ میان (ملا)؛ کشاید (خلاصېږي / خلاصه به سي)؛ جاودان (همېشني / تل پاتی).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د الله جل جلاله د طاعت او عبادت په اړه فرمایي: "د چا چي بخت غلام وي، د هغه زړه میلان او لېوالتیا تل د الله جل جلاله طاعت ته وي. بنده ته مناسبه نه ده چي د الله جل جلاله له بندګۍ څخه سرغړونه وکړي، څکه همدا طاعت دی چي بنده ته اصلي دولت په لاس ورکوي. نېکمرغي

له طاعت او عبادت څخه ترلاسه کیږي او په همدې طاعت سره منور کیږي. نو که چیري ته خپله ملا طاعت او عبادت ته وتړې، نو پر مخ به دي د همېشني او تل پاتي دولت دروازه پرانیستل سي."

| | |
|---|---|
| زطاعت نه پیچد خردمند سر | که بالا زطاعت نباشد هنر |
| له طاعت څخه نه پیچي هوښیار انسان سر | څکه چي لوړ له طاعت څخه نه سته بل کمال |
| زبهر عبادت وضو تازه دار | که فردا زآتش شوی رستگار |
| له پاره د عبادت اودس تازه ولره | چي سبا ورځ له اور څخه سې خلاص |
| نماز ازسر صدق برپائی دار | که حاصل کنی دولت پائدار |
| لمونځ په پوره رښتینولی سره قائم ولره | چي ترلاسه کړې دولت همېشنی |

**د لغاتو حل:** نه پیچد (نه پیچي)؛ بالا (بهتر / ښه)؛ هنر (کار). ز بهر (له پاره)؛ وضو (اودس)؛ فردا (سبا)؛ آتش اور. رستگار (خلاص / خوندي). نماز (لمونځ)؛ صدق (رښتینولي)؛ برپائی (قائم)؛ پائدار (دوام لرونکی).

**لنډ مطلب:** "هوښیار انسان هیڅکله له طاعت او عبادت څخه مخ نه اړوي، ځکه په دنیا کي تر طاعت او عبادت بل ښه کار نه سته. نو د عبادت له پاره تل په اوداسه اوسه، تر څو د قیامت په ورځ له اور څخه خلاصون پیدا کړې، لمونځ د زړه له اخلاصه او په پوره رښتینولی سره کوه، چي په دې سره به تل پاتی دولت ترلاسه کړې."

| | |
|---|---|
| زطاعت بود روشنائی جان | که روشن زخورشید باشد جهان |
| له پیروي څخه وي روښنایي د روح | لکه روښانه چي له لمر څخه وي جهان |
| پرستنده آفریننده باش | در ایوان طاعت نشیننده باش |
| عبادت کوونکی د پیداکوونکي (خدای) اوسه | په مانۍ کي د طاعت ناست اوسه |
| اگر حق پرستی کنی اختیار | در اقلیم دولت شوی شهریار |
| که چیري حق پرستي کړې غوره | په وطن کي د هوسایني به سې باچا |

**د لغاتو حل:** روشنائي (رڼا)؛ جان (روح)؛ روشن (روښانه)؛ خورشید (لمر). پرستنده (عبادت کوونکی)؛ آفریننده (پیدا کوونکی / خالق)؛ ایوان (مانۍ)؛ نشیننده (ناست). حق پرستی (د حق لمانځل / خدای جني)؛ راحت (هوساینه)؛ شهریار (باچا).

**لنډ مطلب:** روح او زړه په طاعت او عبادت سره داسې روښانه کېږي، لکه مخکه چي په لمر سره روښانه وي، نو ته د خپل خالق او پیدا کوونکي عبادت کوونکی واوسه او د طاعت او فرمان منني په مانۍ ناست اوسه. که چېري ته د الله جل جلاله طاعت او عبادت اختیار کړې، نو د هوساینې او سوکالۍ په فضا کې بې تاجه باچا یې.

| که جنت بود جائی پرهیزگار | سر ازجیب پرهیزگاری بر آر |
|---|---|
| څکه چي جنت دئ خای د پرهېزګاره | سر له ګرېوان څخه د پرهېزګارۍ را وباسه |
| که چون نیک بختان شوی نیک روز | زتقوی چراغ روان بر فروز |
| چي لکه د نېک بختانو سې نېک بخته | له تقوا څخه څراغ د روح روښانه ولره |
| نترسد ز آسیب روز شمار | کسی را که از شرع باشد شعار |
| نه بېرېږي له زیان څخه د ورځي د حساب | چا لره چي له شریعت څخه وي لباس |

**د لغاتو حل:** جیب (ګرېوان)؛ پرهېزګارۍ (تقوا)؛ بر آر (راوباسه)؛ جائی (ځای). تقوی (ځان ساتنه)؛ نیک روز (نېکمرغه). شرع (شریعت)؛ شِعار (جامه / لباس)؛ نترسد (نه بېرېږي)؛ آسیب (زیان / ضرر)؛ روز شمار (قیامت / د حساب ورځ).

**لنډ مطلب:** "تقوی او پرهېزګاري غوره کړه، څکه چي جنت د پرهېزګاران او متقیانو ځای دئ، روح او زړه دې د تقوا په څراغ سره روښانه وساته، تر څو د نېکمرغانو په څېر ته هم نېکمرغه سې. د چا چي د شریعت جامه په تن وي؟ یعني ژوند او چاري یې ټولي پر شریعت برابري وي، هغه د قیامت ورځي له خطرونو او عذابونو څخه نه بېرېږي."

# در مذمت شیطان

## د شیطان لعین په بدوالي کي

| شب و روز در بند عصیان بود | دلا هر که محکوم شیطان بود |
|---|---|
| (نو) شپه او ورځ په قید کي د ګناه وي | اې زړه! هر څوک چي تابع د شیطان وي |

| | |
|---|---|
| کسی را که شیطان بود پیشوا | کجا باز گردد براه خدا |
| چا لره چي شیطان وي رهنما | (هغه) کله بیرته راگرځي و لاري ته د خدای |
| کسی را که شیطان بود یار غار | نباشد مقامش بدار القرار |
| چا لره چي شیطان وي ملگری د غار | نه وي ځای د هغه په دار القرار (جنت) کي |
| دلا عزم عصیان مکن زینهار | که رحمت کند برتو پروردگار |
| اې زړه! قصد د گناه مه کوه هڅکله | چي رحمت به وکړي پر تا باندي الله تعالی |

**د لغاتو حل:** محکوم (تابع)؛ شب و روز (شپه او ورځ)؛ بند (دلته مراد ځني فکر دئ)؛ عصیان (گناه). پیشوا (رهنما / لارښوونکی)؛ کجا (چیري / کله)؛ باز (بیرته / بیا)؛ گردد (راگرځي)؛ براه (لاري ته).

**لنډ مطلب:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د شیطان او د هغه د تابعداری بدوالی بانوي، فرمایي: "اې انسانه! څوک چي د شیطان لعین تابع او محکوم وي، هغه شپه او ورځ د گناه او نافرمانۍ په فکر کي وي، نو کوښښ وکړه چي د شیطان له تابعدارۍ څخه ځان وژغورې او د هغه هیڅ خبره او ښوونه عملي نه کړې، ځکه د چا چي شیطان رهنما او لارښود سي، هغه بیرته د الله جل جلاله حقي لاري ته نه سي راگرځېدلای. د چا چي شیطان ملگری وي، هغه په جنت کي ځای نه لري. نو اې انسانه! هیڅکله د گناه قصد او اراده مه کوه، تر څو الله جل جلاله رحمت در باندي ولوروي."

| | |
|---|---|
| زعصیان کند هوشمند احتراز | که از آب باشد شکررا گداز |
| له گناه څخه کوي هوښیار انسان پرهیز | ځکه چي په اوبو سره وي د بورې ویلي کېدل |
| کند نیک بخت ازگنه اجتناب | که پنهان شود نور مهر از سحاب |
| کوي نېک بخته انسان له گناه څخه پرهیز | ځکه چي پټېږي رڼا د لمر له وریځي څخه |
| مکن نفس اماره را پیروی | که ناگه گرفتار دوزخ شوی |
| مه کوه نفس اماره لره تابعداري | ځکه چي ناڅاپه به گرفتار د دوږخ سې |

**د لغاتو حل:** عصیان (نافرماني / گناه)؛ هوشمند (هوښیار / عاقل)؛ احتراز (ځان ساتنه)؛ شکر (بوره)؛ گداز (ویلي کېدل). گنه (گناه)؛ اجتناب (پرهېز / ډډه کول)؛ پنهان (پټ)؛ نور (رڼا)؛ مهر (لمر)؛ سحاب (وریځ). نفس اماره (په بدیو امر کوونکی نفس)؛ پیروی (تابعداري)؛ ناگه (ناڅاپه).

**لنډ مطلب:** "هوښیار انسان له ګناه او نافرمانۍ څخه ځان ساتي، ځکه هغه ته معلومه وي چې په ګناه سره نېکۍ داسې له منځه ځي او ختمیږي لکه په اوبو سره چې بوره له منځه ځي او ختمیږي. نېک بخته انسانان تل له ګناه څخه ډډه کوي، ځکه چې ګناه د ورځې او زړه د لمر په څېر دئ، نو کله چې ورځ پر لمر باندې راسي، لمر پټوي، همدغه ډول ګناه هم زړه تاریک او خړ پړ کوي او د ایمان نور یې له منځه وړي. نو ته د نفس اماره پیروي او تابعداري مه کوه، که نه نو ناڅاپه به مرګ درباندې راسي او دوږخ به دې ځای سي."

| بود اسفل السافلین منزلت | اگر برنتابد زعصیان دلت |
|---|---|
| وي به اسفل السافلین ځای ستا | که چیرې ونه ګرځي له ګناه څخه زړه ستا |
| بسیلاب فعل بد وناصواب | مکن خانهٔ زندگانی خراب |
| په سیلاب سره د کار بد او ناحقه | مه کوه کور د ژوندانه خراب |
| نه باشی زگلزار فردوس دور | اگر دور باشی زفسق وفجور |
| نه به اوسې له ګلزار څخه د جنت فردوس لیرې | که چیرې لیرې اوسې له فسق او بد کاریو څخه |

**د لغاتو حل:** نتابد (ونه ګرځي)؛ دلت (زړه ستا)؛ اسفل السافلین (د دوږخ تر ټولو ټیټه او لاندنۍ برخه)؛ منزلت (ځای ستا). خانه (کور)؛ زندګانی (ژوند)؛ سیلاب (د اوبو سیل)؛ فعل (کار)؛ بد (ناوړه)؛ ناصواب (ناحقه / هغه چې د حق خلاف وي). دور (لیرې)؛ فسق وفجور (غلط او ناوړه کارونه)؛ ګلزار (ګلبڼ / د ګلونو باغ)؛ فردوس (د تر ټولو ښه جنت نوم دئ).

**لنډ مطلب:** "که چیرې ته خپل زړه له ګناه څخه صبر او راونه ګرځوې، نو په دوږخ کې به تر ټولو په لاندینۍ برخه کې ستا ځای وي. د خپل ژوندانه کور دې په ناوړو او غلطو کارونو مه بربادوه. که چیرې ته له ناوړه او غلطو کارونو څخه لیرې واوسې، نو په جنت کې به تر ټولو په غوره ځای کې واوسې."

## در بیان شراب محبت وعشق

### د محبت او عشق د شرابو په بیان کې

| که مستی کند اهل دل التماس | بده ساقیا آب آتش لباس |
|---|---|
| چې مستي کړي خاوندان د زړه طلب | راکړه اې ساقي اوبه سور رنګي |

| | |
|---|---|
| مئی لعل در ساغر زرنگار | بود روح پرور چو لعل نگار |
| شراب سره په پیاله کي نقشداره | وي روح پالونکي لکه شونډي د معشوق |
| خوشا آتش شوق ارباب عشق | خوشا لذت درد اصحاب عشق |
| ښه دئ اور د شوق د خاوندانو د عشق | ښه دئ خوند د درد د څښتنانو د عشق |
| خوش آن دل که شیداست بر روئی دوست | خوش آنکس که در بند سودائی اوست |
| ښه دئ هغه زړه چي عاشق دئ پرمخ د دوست | ښه دئ هغه څوک چي بند په فکرکي دهغه دئ |

**د لغاتو حل:** بده (را کړه)؛ ساقیا (اې ساقي)؛ ساقي (هغه چي خلګو ته ډک جامونه ورکوي)؛ آب (اوبه)؛ آتش لباس (سور رنګي / چي د اور غوندي رنګ یې وي)؛ اهل دل (لویان / بزرګان)؛ التماس (طلب / لټه). مئی (شراب)؛ لعل (سره)؛ ساغر (پیاله / جام) زرنګار (په زرو نقاشي سوی)؛ روح پرور (روح پالونکی)؛ لعل نګار (د معشوق شونډي). خوش (ښه)؛ خوشا (ډېر ښه)؛ آتش (اور)؛ ارباب (خاوندان)؛ اصحاب (څښتنان)؛ لذت (خوند). شیدا (عاشق)؛ روئی (مخ).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د حقیقي عشق او محبت اړوند څه بیان کوي، حقیقي عشق له الله جل جلاله، رسول الله صلی الله علیه وسلم او دین سره وي، نو مصنف رحمة الله علیه فرمایي: "اې ساقي! ما ته داسي شراب راکړه چي رنګ یې د اور په څېر سور وي، چي د حق غوښتونکي د مستۍ ارزو وکړي او په مستۍ کي ستا په طلب او غوښتلو بوخت سي او دومره مست سي چي دنیا او هر څه یې له یاده ووزي. د الهي محبت په شرابو سره الهي محبینو ته روحاني ژوند په برخه کیږي او روح یې وریاندي تازه کیږي. ربښتیني الهي محبین په درد او سوز کي هم یو ډول خوند او لذت ترلاسه کوي، دا داسي لذت دئ چي بیان یې نه سي کېدلای. نو ښه هغه څوک دئ چي پر خپل دوست (الله جل جلاله) باندي عاشق وي او د هغه په فکر او سوچ کي دومره غرق او ترک وي چي هر څه یې تر شا پرېښي وي."

| | |
|---|---|
| بیار آن شراب چون آب حیات | که یابد از بوئش دل از غم نجات |
| راوړه هغه شراب په مثال دآب حیات دي | چي پیداکړي له بوی څه د هغو زړه له غم څخه نجات |
| خوش آن دل که دارد تمنائی دوست | خوش آن کس که شد منزلش کوئی دوست |
| ښه دئ هغه زړه چي لري ارزو د دوست | ښه دئ هغه څوک چي وي ځای دده کوڅه ددوست |

| | |
|---|---|
| شرابی چو لعل روان بخش یار | شرابی مصفا چو روئی نگار |
| شراب چي لکه د شونډو روح بخښونکي وي د يار | داسي شراب چي صفا وي لکه مخ د نګار |
| خوشا می پرستی ز صاحبدلان | خوشا ذوق مستی ز دلدادگان |
| ډېره ښه ده شراب پرستي له الهي عاشقانو څخه | ډېر ښه دئ خوند د مستۍ دزړودخاوندانوڅخه |

**د لغاتو حل:** بيار (راوړه)؛ آب حيات (د ژوندانه اوبه / هغه چي د تل پاتي ژوند سبب ګرځي)؛ نجات (خلاصون). تمنائی (هيله / ارزو)؛ منزل (د تم کېدو ځای)؛ کوئی (کوڅه). لعل (مراد يې د معشوق ښونډي دي)؛ روان (روح)؛ بخش (بخښونکی)؛ يار (دوست / ملګری)؛ مصفا (پاک او صفا)؛ نګار (معشوق / محبوب). می پرستی (شراب پرستي)؛ صاحبدلان (مراد يې الهي محبين دي)؛ دلدادګان (له دې څخه مراد الهي محبين دي) ذوق(خوند) .

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله عليه د عشق او محبت اړوندي زياتوي: "اې ساقي! د الهي محبت هغه شراب راوړه چي د آب حيات په څېر د تل پاتي ژوندانه سبب ګرځي او په بوی سره يې زړه آرامي او له غم څخه نجات پيدا کوي. هغه زړه ډېر ښه دئ چي د دوست په اميد شپې سبا کوي او هغه انسان ډېر ښه دئ چي د تم کېدو او اوسېدلو ځای يې د يار کوڅه ده. نو هغه شراب راوړه چي د يار د شونډو غونډي روح بخښونکي او د هغه د مخ غونډي صفا وي. د الهي محبينو له پاره د الهي محبت د شرابو چيښل ډېر ښه دي چي له هغو څخه هغه نېک عملونه زيږي."

# در صفت وفا

## د وفا په ستاينه کي

| | |
|---|---|
| دلا در وفا باش ثابت قدم | که بی سکه رائج نباشد درم |
| اې زړه! په وفا کي اوسه ثابت قدمه (محکم) | ځکه چي بې له سکې رواج نه وي درهم |
| ز راه وفا گر نه پیچی عنان | شوی دوست اندر دل دشمنان |
| له لاري څخه دوفا که چيري ونه پېچې غاره | سې به دوست په زړه کي د دښمنانو |

| مگردان زکوئی وفا روئی دل | که در روئی جانان نباشی خجل |
|---|---|
| مه گرځوه له کوڅې څخه د وفا مـخ د زړه | چې په مخ کې د دوست نه سې شرمینده. |

**د لغاتو حل:** وفا (وعده خلافي نه کول / له چا سره چم او فرېب نه کول / له ژمني سره سم عمل کول)؛ ثابت قدم (محکم)؛ سکه (د وخت رواجي وسپنیزه پیسه؛ لکه: زموږ وسپنیزه پنجي، دویي، افغانی)؛ عنان (غاړه)؛ مگردان (مه گرځوه)؛ کوئی (کوڅه)؛ خجل (شرمینده).درم (پیسې)

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د وفا ستاینه کوي، فرمایي: "اې انسانه! په وفادارۍ کې باثباته او محکم اوسه، له هیچا سره بې وفایي مه کوه، له وفا پرته دوستي او خپلولي هیڅ اعتبار نه لري، داسې لکه له رواجي سکې پرته چې درهم کوم ارزښت او اعتبار نه لري. که چیرې بې وفایي ونه کړې او تل وفادار واوسې، نو د دښمنانو په زړونو کې به هم درنښت او ارزښت پیدا کړې. نو هیڅکله له خپلو دوستانو او ملگرو سره بې وفائي مه کوه، که نو د هغوی په وړاندې به خړمخی او شرمینده سې."

| منه پائی بیرون زکوئی وفا | که از دوستان می نیرزد جفا |
|---|---|
| مه ږده پښه دباندې له کوڅې څخه د وفا | ځکه چې له دوستانو څخه نه ښایي جفا |
| جدائی زاحباب کردن خطاست | بریدن زیاران خلاف وفاست |
| جلا والی له دوستانو څخه کول خطا ده | پرې کول (د اړیکو) له ملگروڅخه مخالفت د وفا دئ |
| بود بی وفائی سرشت زنان | میاموز کردار زشت زنان |
| دئ بې وفائي خـوی د ښځو | مه زده کوه کـار بې کاره د ښځو |

**د لغاتو حل:** منه (مه ږده)؛ پائی (پښه / قدم)؛ بیرون (بهر / دباندې)؛ مي نیرزد (نه ښایي)؛ جفا (بې وفایي). جدائی (جلا والی / بېلتون)؛ احباب (دوستان)؛ بریدن (پرې کول / قطع کول). سرشت (خوی / خصلت)؛ زنان (مفرد یې زن دئ یعني ښځه)؛ کردار (کار)؛ زشت (بې کاره / ناکاره).

**لنډ مطلب:** د وفا په ستاینه کې زیاتوي: "هیڅکله له دوستانو سره بې وفایي مه کوه، ځکه له هغوی سره بې وفایي او جفا هیڅ مناسبه نه ده. له خپلو دوستانو او خپلوانو سره د خپلوۍ اړیکې مه پرې کوه، ځکه دا لویه غلطي ده او له ملگرو سره د اړیکو له منځه وړل د وفا خلاف عمل دئ. بې وفایي د ښځو خوی او خصلت دئ، نو ته د ښځو دغه ناوړه کار هیڅکله مه کوه."

# در فضیلت شکر

## د شکر په غوراوي کي

| | |
|---|---|
| کسی راکه باشد دل حق شناس | نشاید که بندد زبان سپاس |
| جا لره چي وي زړه خدای پېژندونکی | نه ښايي چي وتړي ژبه له شکر ایستلو څخه |
| نفس جز به شکر خدا برمیار | که واجب بود شکر پروردگار |
| نفس ماسوا له شکر څخه دخدای مه راباسه | څکه چي واجب دئ شکر د الله تعالی |
| ترا مال ونعمت فزاید زشکر | ترا فتح ازدر در آید شکر |
| تا لره شتمني او نعمت زیاتیږي له شکر | تا لره بریا له دروازې څخه راځي د شکر |

**د لغاتو حل:** حق شناس (خدای پېژندونکی)؛ نشاید (نه ښايي)؛ بندد (وتړي / بنده کړي)؛ سپاس (شکر). نفس (ساه)؛ بر میار (مه را باسه)؛ پروردگار (پالونکی / خدای ج). فزاید (زیاتیږي)؛ فتح (بریا / کامیابي)؛ در آید (په لاس راځي).

**لنډ مطلب:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د شکر فضیلت بیانوي، فرمايي: "څوک چي الله جل جلاله پېژني، د هغه پر ژبه تل باید د الله جل جلاله شکر جاري وي. هیڅ یوه ساه د الله جل جلاله د شکر بغیر مه راباسه، یعني له هري ساه سره د الله جل جلاله شکر اداء کوه، ځکه ته چي هره ساه راباسې، همدا ستر الهي نعمت دئ. د شکر په ایستلو سره الله جل جلاله ستا په شتمنیو او جایدادونو او نورو نعمتونو کي برکت اچوي او زیاتوي يې او همدا ډول د بریا او کامیابۍ دروازې درباندي راخلاصوي."

| | |
|---|---|
| اگر شکر حق تا بروز شمار | گزاری نباشد یکی از هزار |
| که چیري شکر د خدای ج تر ورځي پوري دحساب | اداء کړې (بیا به هم) نه وي یوه حصه له زرو څخه |
| ولی گفتن شکر اولی ترست | که اسلام را شکر او زیورست |
| لېکن ویل د شکر ډېر غوره دي | څکه چي اسلام لره شکر د ده گانه (سینګار) دئ |
| گر از شکر ایزد نه بندی زبان | بدست آوری دولت جاودان |
| که چیري له شکر څخه د خدای ونه تړې ژبه | په لاس به راوړې دولت همېشني |

**د لغاتو حل:** گزاری (اداء کړي)؛ یکی (یو)؛ هزار (زر / ۱۰۰۰). ولی (لېکن)؛ گفتن (ویل)؛ اولی تر (ډېر غوره)؛ زیور (ښایست / گانه). ایزد (خدای ج)؛ زبان (ژبه)؛ بدست آوری (په لاس راوړې)؛ جاودان (همېشنی).نه بندي(ونه تړي) دولت(جاه /مال/مرتبه/دارایي)

**لنډ مطلب:** "د الله جل جلاله حق شکر اداء کول د بنده تر توان او وس وتلې خبره ده، که چیري ته د قیامت تر ورځي پوري د الله جل جلاله شکر اداء کړې، بیا به دي هم زرمه حصه شکر نه وي اداء کړی. خو بیا هم د الله جل جلاله شکر اداء کول ډېر غوره او ښه کار دئ، ځکه په دې سره اسلام نور ښکلی او ښایسته کیږي. که چیري د الله جل جلاله له شکر څخه خپله ژبه ونه دروې، نو تل پاتی او همېشنی دولت به ترلاسه کړې."

# در بیان صبر

## د صبر په بیان کي

| | |
|---|---|
| ترا گر صبوری بود دستیار | بدست آوری دولت پائیدار |
| تا لره که چیري صبر وي مددگار | په لاس به راوړې دولت دوام لرونکی |
| صبوری بود کار پیغمبران | نه پیچند زین روئی دین پروان |
| صبر دی کار د پیغمبرانو | نه پیچي له دې څخه مخ دینداره خلگ |
| صبوری بود کشاید در کام جان | که جز صابری نیست مفتاح آن |
| صبر دئ خلاصوي دروازه د مقصد د روح | چي ماسوا له صبر کولو څخه نسته (بله) کیلي د هغه |
| صبوری کلید در آرزو ست | کشاینده کشور آرزو ست |
| صبر کیلي د دروازې د هیلو ده | (چي) خلاصوونکې د وطن د ارزو ده |

**د لغاتو حل:** صبوری (صبر کول)؛ دستیار (ملگری / مددگار). دین پروان (دینداره / دین پاله). کشاید (خلاصوي)؛ در (دروازه)؛ کام (مقصد / مقصود)؛ مفتاح (کیلي / خلاصوونکې). ارزو (هیله / امید)؛ کشاینده (خلاصوونکی)؛ کشور (وطن / ملک).صبر(حوصله/زغم) گر (که چیري)

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله د صبر او د هغه د ګټو په اړه بیان کوي، فرمایي: "اې انسانه! که دي چیرې صبر ملګرى او مددګار وي، نو د ټل پاتې دولت خاوند به سې، ځکه صبر د پیغمبرانو علیهم السلام کار وو، نو دینداره خلګ هیڅکله بې صبرې نه کوي. صبر ستا د روح مقصد پوره کوي چې دغه مقصد له صبر پرته بل هیڅ شی نه سي پوره کولاى. صبر ستا د هیلو او امیدونو د دروازې کیلي ده چې په دې سره ستا د هیلو او امیدونو ملک خلاصیږي او پوره کیږي."

| | |
|---|---|
| صبوری بر آرد مراد دلت | که از عالمان حل شود مشکلت |
| صبر کول پوره کوي مراد د زړه ستا | چې له عالمانو څخه حل کیږي مشکل ستا |
| صبوری بهر حال اولی بود | که در ضمن آن چند معنی بود |
| صبر کول په هر حالت کې غوره دئ | چې په څنګ کې د هغه څو معناوې دي |
| صبوری ترا کامگاری دهد | ز رنج وبلا رستگاری دهد |
| صبر کول تا لره کامیابي در کوي | له رنځ او تکالفو څخه خلاصون درکوي |
| صبوری کنی گر ترا دین بود | که تعجیل کار شیاطین بود |
| صبر کوه که چیرې تا لره دینداري وي | ځکه چې تلوار کار د شیطانانو دئ |

**د لغاتو حل:** مراد (موخه / مقصد)؛ مشکلت (ستونزه ستا)؛ در ضمن (په ضمن کې / په څنګ کې)؛ چند (څو)؛ کامگاری (مقصد پوره کېدنه / کامیابي)؛ دهد (درکوي / ورکوي)؛ رنج (رنځ / ناروغي)؛ ز رنج (له رنځ څخه)؛ رستگاری (خلاصون / نجات)؛ تعجیل (بېړه / تلوار)؛ شیاطین (شیطانان).

**لنډ مطلب:** "په صبر کولو سره ستا د زړه مراد او مقصد پوره کیږي، که دي باور نه کیږي، نو له عالمانو څخه وپوښته، هغوى به دي دا مشکل در حل کړي. صبر کول په هر حالت کې غوره کار دئ، ځکه چې د صبر کولو په ضمن یا څنګ کې څو ګټور شیان نغښتي دي؛ مثلاً: د الله جل جلاله امر پر ځاى کېدل، الله جل جلاله له صبر کوونکو سره محبت لري، د صبر مېوه خوږه وي تلواردشیطان کاردی او..."

# در صفت راستی

## د رښتیا ویلو په ستاینه کي

دلا گر راستی کنی اختیار | شود دولت همدم و بختیار

اې زړه! که چیري رښتیا ویل کړې اختیار | سي به دولت ستا ملگری او بختور به سي

نه پیچد سر ازراستی هوشمند | که از راستی نام گردد بلند

نه پیچي سر له رښتیا ویلو څخه هوښیار انسان | ځکه چي له رښتیا ویلو نوم گرځي لوړ

مزن دم بجز راستی زینهار | که دارد فضیلت یمین بر یسار

مه وهه ساه ماسېوا له رښتیا ویلو خامخا | ځکه چي لري غوره والی راسته پر چپه

دم ازراستی گر زنی صبح وار | ز تاریکی جهل گیری کنار

ساه له رښتیا څخه که چیري وهې د سهار غوندي | له تاریکی څخه د ناپوهۍ به ونیسې څنگ

به ازراستی درجهان کار نیست | که در گلبن راستی خار نیست

ښه له رښتیا ویلو په دنیان کي (بل) کار نسته | ځکه دگلاب په ونه کي د رښتیا زوزان نه سته

**د لغاتو حل:** راستی (رښتیا ویل)؛ همدم (ملگری / دوست)؛ بختیار (بختور)؛ بخت یار (بخت ملگری). نام (نوم)؛ گردد (گرځي / کیږي)؛ بلند (لوړ). مزن (مه وهه / مه راباسه)؛ دم (ساه / نَفَس)؛ بجز (ماسېوا) زینهار (حتمًا / خامخا)؛ فضیلت (بهتري / غوراوی)؛ یمین (راسته)؛ یسار (چپه). زنی (وهې / راباسې)؛ صبح وار (د سهار غوندي)؛ گیری (نیسې)؛ کنار (څنگ / گوښه). گلبن (د گلانو ونه / درخته)؛ خار (زوز / ازغی / اغزی).

**لنډ مطلب:** دلته مصنف رحمة الله علیه د رښتیا ویلو ښه والی او گټي بیانوي، فرمایي: "اې دوسته! که چیري تل رښتیا ویونکی او صادق واوسې، نو د بخت او دولت به دواړه درسره ملگري وي. یو هوښیار انسان هیڅکله له رښتیا ویلو او صداقت څخه مخ نه اړوي، ځکه چي په دې سره د ښه نوم خاوند کیږي او په ښه والي سره مشهوره کیږي. نو ته هم هیڅ وخت درواغ او خلاف مه وایه او تل رښتینی اوسه، لکه څنگه چي راسته اړخ پر چپه اړه برتري او بهتري لري، نو همدغسي رښتیا هم پر درواغو ډېر زیات فضیلت

لري. که چیرې ته تل رښتیني او صادق واوسې، نو د ناپوهۍ او جهل له تاریکیو څخه به لیرې او ګوښه بې. په دنیا کې تر رښتینولۍ بل غوره کار نه سته او د رښتیا په ونه یا درخته کې ازغې یا زوزان نه وي."

# در مذمت کذب

## د درواغو په بدوالي کې

کسی را که ناراستی گشت کار | کجا روز محشر شود رستگار

د چـا چي درواغ ویل وګرځي کار (عادت) | کله به په ورځ د محشر سي خلاص

کسی راکه گردد زبان دروغ | چراغ دلش را نباشد فروغ

د چا چي وګرځي ژبه درواغ | څراغ د زړه د ده لره به نه وي روښنایي

دروغ آدمی را کند شرمسار | دروغ آدمی را کند بی وقار

درواغ انسـان کوي شرمینده | درواغ انسان کوي بې عزته

**د لغاتو حل:** ناراستی (درواغ)؛ گشت (وګرځي / سي)؛ کجا (کله / چیرې)؛ روز محشر (قیامت)؛ رستگار (خلاص). گردد (وګرځي)؛ زبان (ژبه)؛ دروغ (درواغ)؛ نباشد (نه وي)؛ فروغ (رڼا). آدمی (انسان)؛ شرمسار (شرمینده)؛ بی وقار (بې عزته).

**لنډ مطلب:** مخکې مصنف رحمة الله علیه د رښتیا ښه والی او ګټې بیان کړې، اوس د درواغو بد والی او زیانونه بیانوي، فرمایي: "د چا چي درواغ عادت جوړ سوي وي، هغه د قیامت په ورځ له عذابونو څخه خلاصون او نجات نه سي پیدا کولای، څکه چي د چا چي ژبه په درواغو عادت وي، د هغه د زړه څراغ مړ وي او رڼا نه کوي. درواغ ویل انسان شرمینده کوي او باور او عزت یې له منځه وړي."

زکذاب گیرد خردمند عار | که او را نیارد کسی در شمار

له درواغجن څخه نیسي هوښیار انسان شرم | څکه چي هغه نه راوړي هیڅوک په شمار کي

دروغ ای برادر مگو زینهار | که کاذب بود خوار و بی اعتبار

درواغ اې وروره مه وایه خامخا | چي درواغجن وي ذلیل او بې باوره

زنا راستی نیست کاری بتر | کزو گم شود نام نیک ای پسر

له دروغجنۍ څخه نه سته (بل) کار ډېر بد | چي له هغه ورک کيږي نوم نېک اي هلکه

**د لغاتو حل:** كذاب (ستر دروغجن)؛ گیرد (نیسي)؛ عار (شرم)؛ نیارد (نه راوړي)؛ کسی (یو څوک / هیڅوک)؛ در شمار (په حساب کي). برادر (ورور)؛ مگو (مه وایه)؛ کاذب (دروغجن)؛ خوار (ذلیل)؛ بی اعتبار (بې باوره). بتر (بد تر: ډېر بد)؛ کزو (که زو / که از: له ده څخه)؛ گم (ورک)؛ نام نیک (ښه نوم)؛ پسر (هلک / زوی).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه زیاتوي: "هوښیار خلګ تل له دروغجن انسان څخه لیري ګرځي او له هغه سره یو ځای اوسېدل ورته دِ شرم خبره وي، ځکه چي دروغجن هیڅوک په انسانانو کي نه شمېري. نو اې وروره! ته هیڅکله دروغ مه وایه، ځکه چي دروغجن انسان تل ذلیله او بې باوره وي او هېڅوک په درنه سترګه نه ورته ګوري، ځکه چي په دنیا کي تر دروغو بل ډېر غلط کار نه سته، ځکه په دروغ ویلو سره انسان خپل ښه نوم له لاسه ورکوي."

# در بیان صفت حق تعالی

## د الله ﷻ د ستايني په بيان کي

نگه کن بدین گنبد زرنگار | که سقفش بود بی ستون استوار

نظر وکړه پر دې گمبتي زرنقشه باندي | چي بام يې دئ بې ستني کلک ولاړ

سرا پردهٔ چرخ گردنده بین | درو شمعهائی فروزنده بین

(دا) خېمه د آسمان گرځېدونکي ووينه | په ده کي څراغونه ځلېدونکي ووينه

یکی پاسبان یکی بادشاه | یکی داد خوا ویکی باج خوا

يو چوکيدار دئ يو باچا دئ | يو انصاف غوښتونکی او يو ججه غوښتونکی دئ

یکی شادمان ویکی دردمند | یکی کامران ویکی مستمند

يو خوشحال دئ او يو دردمند دئ | يو کامياب دئ او يو غمجن دئ

**د لغاتو حل:** نگه (نظر / کتل)؛ کن (وکړه)؛ بدین (پر دغه)؛ گنبد(گنبده / گمبته)؛ زرنگار (زر نقشه)؛

سقف (بام / چت)؛ بی ستون (بې ستني / بې میله / بې پایې)؛ استوار (محکم / مضبوط). سرا پرده (خېمه)؛ چرخ (آسمان)؛ گردنده (گرځېدونکی)؛ ببین (به بین: ووینه)؛ شمعهائی (ځراغونه)؛ فروزنده (بلېدونکي / روښانه). یکی (یو)؛ پاسبان (چوکیدار / پیره دار)؛ داد خوا (انصاف غوښتونکی)؛ باج (مالیه / محصول / ججه). شادمان (خوښ / خوشحاله)؛ دردمند (درد لرونکی)؛ کامران (بریالی / کامیاب)؛ مستمند (خواشینی / غمجن).

**لنډ مطلب:** په دې باب کې محترم مصنف رحمة الله علیه د الله جل جلاله بې شانه صفات او قدرتونه بیانوي، فرمایي: "اې بنده! ته دې ستري بې ستني او بې پایې گمبتي ته وگوره چې څومره په کمال او قدرت سره زرنقشه سوې ده، د گرځېدونکي آسمان دې خېمې ته وگوره چې ځل وبل ځراغونه پکښې مدام بلیږي، دا هر څه د ستر خالق او مالک الله جل جلاله د کامل قدرت نښې دي، ته د الله جل جلاله د قدرت کمال ته ځیر سه او د هغه جل جلاله بندگانو ته وگوره چې په څومره دقیق انداز سره یې هر یوه ته د هغه له استعداد او سویې سره سم کارونه او نعمتونه ورکړي دي، ځیني انسانان باچاهان وي او له هر ډول نعمتونو څخه برخمن وي او له خلگو څخه او رعیت څخه محصولات او مالیې اخلي، خو ځیني بیا چوکیداران او کسب کاران وي او د ځان او کورنۍ د روزۍ له پاره شپه او ورځ خواري کاږي او د عدل او انصاف غوښتونکي وي، ځیني خلگ خوښ او خوشحاله ژوند لري، خو ځیني بیا ډېر غمجن او خواشیني وي، ځیني کسان په خپلو چارو کي بریالي او کامیاب وي خو ځیني نور بیا کي تل ناکام او له ستونزو ډک ژوند لري. دا د الله جل جلاله له حکمته ډک او پر عدل ولاړ تقسیم دئ چې هر بنده ته یې خپله - خپله برخه ورکړې ده."

یکی باج دار ویکی تاج دار | یکی سرفراز ویکی خاکسار

یو ججه ورکوونکی دئ او یو تاج لرونکی دئ | یو سر لوړی دئ او یو عاجز دئ

یکی بر حصیر ویکی بر سریر | یکی در پلاس ویکی در حریر

یو پر چتایي دئ او یو پر پالنگ دئ | یو په ټاټ کي دئ او یو په وریښمو کي دئ

یکی در غنا ویکی در عنا | یکی را بقا ویکی را فنا

یو په شتمن دئ او یو په ستونزو کي دئ | یوه لره بقا ده او یوه لره فنا د.

یکی بینوا ویکی مال دار | یکی نامراد ویکی کامگار

یو بې سامانه دئ او یو مال لرونکی دئ | یو ناکامه دئ او یو کامیابه دئ

**د لغاتو حل:** باج دار (ججه ورکونکی / مالیه ورکوونکی)؛ تاج دار (باچا)؛ سرفراز (سربلنده)؛ خاکسار (عاجز). حصیر (بوریا / چټایي / د خورما له پاڼو یا له لوخو څخه یو ډول جوړ سوی فرش)؛ سریر (تخت / پالنګ)؛ پلاس (یو ډول څیرې او کلک کالي دي، لکه ټاټ)؛ حریر (له ورېښمو څخه جوړ سوي نرم کالي). غنا (شتمنتوب / مالداري)؛ عَنا (تکلیف / ستونزه)؛ بقا (شتون / ژوند)؛ فنا (نېستي / مرګ). بینوا (بی نوا: بې سامانه / بې هست ونېسته)؛ مال دار (شتمن)؛ نامراد (ناکام)؛ کامګار (کامیاب / بریالی).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه وینا ته دوام ورکوي: "ځیني خلګ مالیه ورکوونکي دي او ځیني بیا باچاهان او مالیه اخیستونکي دي، ځیني سرلوړي او غټ خلګ دي او ځیني بیا نېستمن او عاجزه دي، ځیني ان پر پستو او نرمو تختونو او پلنګونو بیدېږي او ځیني بیا له غریبی څخه پر څیره چټایي او بوریا بیدېږي، ان ورېښمین او نرم کالي اغوندي او ځیني خواران بیا د ټاټ غوندي څیرې او کلکي جامې هم نه ان په عیش او عشرت کي ژوند کوي او له هر ډول سهولتونه څخه برخمن دي او ځیني بیا او ډول - ډول ستونزو سره لاس او ګرېوان دي. ځیني کسان هر څه لري، خو ځیني توکي او سامان آلات هم نه لري، ځیني کسان د ژوندپه چارو کي کامیاب او ناکامه او نامراده وي."

اتوان | یکی سال خورد ویکی نوجوان

دئ | یو عمر خوړلی دئ او یو نوی خوان دئ

یکی در دعا ویکی در دغا

یو په دعاء کي دئ او یو په چمبازۍ کي دئ

در بحر فسق وفساد

باب کي د فسق او فساد

یکی جنگجوئی

جنګ غوښتونکی

**د لغاتو حل:** تندرست (روغ رمټ / جوړ)؛ ناتوان (بې وسه / ناروغ)؛ سال خورد (عمر خوړلی / سپین ږیری / بوډا)؛ نوجوان (نوی ځوان / تنکی ځوان). دغا (فرېب کاري / چمبازي). نیک کردار (نېک عمله)؛ نیک اعتقاد (ښه عقیده لرونکی / خوش باوره)؛ غرق (ډوب)؛ بحر (دریاب / سمندر)؛ فسق (بد کاري)؛ فساد (خراب کاري). نیک خلق (اخلاقمن)؛ تند خوئی (بدخویه)؛ بردبار (حلم لرونکی / زغم لرونکی)؛ جنگجوئی (جنگ غوښتونکی / جنجالي / لانجه من).

**لنډ مطلب:** "ځیني روغ او جوړ وي او ځیني بیا ناروغان وي او هیڅ یې له لاسه نه کیږي، ځیني زاړه بوډاگان وي او ځیني بیا نوي ځوانان وي، ځیني پر حق او سمه لار روان وي او ځیني بیا پر غلطه او د شیطان پر لار روان وي، ځیني نورو کسانوته گټه رسوي او دعاوي کوي، خو ځیني بیا له نورو خلگو سره په چم او دوکه کې وي او زیان ورته رسوي، ځیني کسان نېک عمله، سپېڅلي او د ښې عقیدې خاوندان وي او ځیني بیا د بدیو او بد کاریو په سمندر کې غرق وي، ځیني کسان ښه اخلاق لري او ښه رویه کوي او ځیني بیا بداخلاقه او رذیل وي، ځیني ډېر حلم لرونکي وي او د خلگو تېروتني برداشتوي، خو ځیني بیا پر مازې خبره جنگ او جنجال کوي. دا د الله جل جلاله تقسیم دئ او هغه جل جلاله د خپل حکمت او قدرت له مخې تاکلی دئ، هیڅوک نیوکه او اعتراض نه سي ورباندې کولای او نه دا حق لري."

| | |
|---|---|
| یکی در تنعم یکی در عذاب | یکی در مشقت یکی کامیاب |
| یو په نعمتونو کې دئ یو په عذاب کې دئ | یو په سختیو کې دئ یو کامیابه دئ |
| یکی در جهان جلالت امیر | یکی در کمند حوادث اسیر |
| یو په جهان کې د لویي امیر دئ | یو په دام کې د پېښو بندي دئ |
| یکی در گلستان راحت مقیم | یکی با غم ورنج ومحنت ندیم |
| یو په باغ کې د هوساینې اوسېږي | یو له غم تکلیف او خوارۍ سره ملگری دئ |
| یکی را برون رفت زاندازه مال | یکی در غم نان ورچ عیال |
| یوه لره دباندې وتلې له اندازې څخه شتمني | یو په غم کې د ډوډۍ او د مصرف دعیال دئ |

**د لغاتو حل:** تنعم (نعمتونه)؛ عذاب (ستونزه / کړاو)؛ مشقت (سختي)؛ جلالت (لویي / لوړوالی)؛ امیر (مشر / واکمن / باچا)؛ کمند (دام / جال)؛ حوادث (پېښې / مصیبتونه / ستونزې)؛ اسیر (بندي). گلستان

(باغ)؛ راحت (هوساینه)؛ مقیم (ځاي پرځاي)؛ ندیم (ملګری). برون رفت (دباندي تللی/ترانداز ي زیات)؛ نان (ډوډۍ)؛ خرج (مصرف / لګښت)؛ عیال (کورنۍ / اولادونه).

**لنډ مطلب:** ځیني په نعمتونو کي پټ وي او ځیني په ستونزو کي راګیر وي، ځیني د لوږې په جهان کي باچا وي او ځیني بیا د ژوندانه د پېښو او ستونزو بندیوان وي. ځیني د هوساینې په باغونو کي منظرې کوي او د ځینو پر سر د غمونو، تکلیفونو او خواریو باران وي. د ځینو شتمنۍ بېخي تر اندازې او حد وتلي وي، خو ځیني بیا د خپلو اولادونو خوارک او ډوډۍ پسي حیران وي..."

| | |
|---|---|
| یکی چون گل از خرمی خنده زن | یکی را دل آزرده خاطر حزن |
| یو لکه گل له خوشحالۍ خخه خندېدونکی وي | د یوه زړه آزار سوی طبیعت یې غمجن وي |
| یکی بسته از بهر طاعت کمر | یکی در گنه برده عمری بسر |
| یوه تړلې وي له پاره د طاعت ملا | یوه په ګناه کي رسولی وي عمر پای ته |
| یکی را شب و روز مصحف بدست | یکی خفته در کنج میخانه مست |
| یوه لره شپه او ورځ قرآن شریف په لاس کي وي | یو بیده وي په کونج کي د شرابخوني نشه |
| یکی بر در شرع مسمار وار | یکی در ره کفر زنار دار |
| یو پر دروازې د شریعت د مېخ غوندي وي | یو په لاره کي د کفر طوق لرونکی وي |

**د لغاتو حل:** خرمی(خوشحالي)؛ خنده (خندا)؛ خنده زن (خندېدونکی)؛ آزرده (زهیر سوی)؛ خاطر (طبیعت)؛ حزن (غم). بسته (تړلی)؛ کمر (ملا / شا)؛ گنه (ګناه)؛ برده (وړی / رسولی)؛ بسر (سر ته / پای ته)؛ مصحف (قرآن شریف)؛ خفته (بیده)؛ کنج (کونج / څنګ)؛ میخانه (شرابخانه)؛ مست (نشه). شرع (شریعت)؛ مسمار (مېخ)؛ مسمار وار (د مېخ غوندي)؛ زنار (طوق دغاړي).

**لنډ مطلب:** "ځیني د ګل غوندي له خوشحالۍ په خندا وي او ځیني بیا زهیر زړه او خراب طبیعت ګرځي، ځینو د الله جل جلاله طاعت او عبادت ته ملا تړلې وي او ځینو بیا خپل قیمتي عمر په ګناهونو کي برباد کړی وي، ځیني کسان شپه او ورځ د قرآن کریم تلاوت کوي او ځیني کسانو شراب چیښلي او د شرابخانې په یوه کونج کي نشه پراته وي، ځیني کسان پر شریعت باندي دومره برابر او محکم ولاړ وي، لکه مېخ، خو ځینو بیا د کفر زنار او طوق په غاړه کړی وي..."

یکی مقبل وعالم وهوشیار | یکی مدبر وجاهل وشرمسار

یو بختور او عالم او هوښیار وي | یو بدبخته او ناپوه او شرمینده وي

یکی غازی وچابک وپهلوان | یکی بزدل وسست وترسنده جان

یو غازي او چټک او غښتلی وي | یو بې غیرت او سست او ېېرندوکی دروح

یکی کاتب اهل دیانت ضمیر | یکی وزد باطن که نامش دبیر

یو لیکوال خاوند د دیانت زړه لرونکی وي | یو غل وي پټ چي نوم یې منشي دی؛

**د لغاتو حل:** مقبل (بختور)؛ مدبر (بدبخته)؛ شرمسار (شرمینده). غازی (مجاهد / جهاد کوونکی)؛ پهلوان (غښتلی / زورور)؛ بزدل (بې زړه / بې غیرته)؛ سست (لټ / کهاله)؛ ترسنده (ېېرندوکی). کاتب (لیکوال)؛ اهل دیانت (دیانت داره)؛ ضمیر (زړه / وجدان)؛ دزد (غل)؛ باطن (پټ).

**لنډ مطلب:** "ځیني کسان بختور وي، پوهان وي او عقلمند وي، خو ځیني کسان بدبخته وي، ناپوهان وي او شرمینده وي. ځیني تکړه، ځواکمن او د الله جل جلاله په لار کي جهاد کوونکي وي، خو ځیني نور بیا بې غیرته، سست او ېېرندوکي وي. ځیني کسان لیکوالان وي او په پوره دیانت سره خپلي لیکني کوي، حقیقت لیکي او تر خلکو پوري یې رسوي خو ځیني نور بیا پټ غله وي، د نورو لیکني او کتابونه ځان ته منسوبوي، قلم فروش وي، حقیقت پټوي او د خلکو په سترګو کي خاوري وراچوي."

# در منع امید از مخلوقات

## له مخلوقاتو څخه د امید په منعه کي

ازین پس مکن تکیه بر روزگار | که ناگه زجانت برآرد دمار

تردې وروسته مه کوه تکیه پر زماني | چي ناڅاپه له روح څخه ستا راوړي هلاکت

مکن تکیه بر لشکر بی عدد | که شاید ز نصرت نیابی مدد

مه کومه تکیه پر لښکر بې شماره | چي ښایي له نصرت الهي څخه ونه مومې مدد

| که پیش از تو بودست وبعد از تو هم | مکن تکیه برملک وجاه و حشم |
|---|---|
| چي مخکي له تا څخه وه وروسته له تا به هم وي | مه کوه تکیه پر ملک او مرتبې او دبدبې |
| نمی روید از تخم بد بار نیک | مکن بد که بد بینی ازیار نیک |
| نه ترلاسه کیږي له تخم بد څخه مېوه ښه | مه کوه بد چي بد به ووینې له ملګري نېک څخه |

**د لغاتو حل:** پس (وروسته)؛ تکیه (اعتماد / باور)؛ روزګار (زمانه / عمر)؛ دمار (هلاکت). مدد (مرسته)؛ جاه (مرتبه)؛ حشم (دبدبه/شان/اوشوکت مرادځني نوکردي). بار (مېوه / حاصل).

**لنډ مطلب:**: دلته امام سعدي رحمة الله علیه وروستی نصیحت یا پیغام وړاندي کوي او انسانانو مخلوقاتو ته له امید لرلو څخه منعه کوي، فرمايي: "له الله جل جلاله پرته بل پر هیچا باید اعتماد او باور ونه لرل سي او تکیه وربانديي ونه سي، زمانه ختمېدونکی او له منځه تلونکې ده، ستا عمر یوه ورځ پای ته رسیږي او هغه ورځ او وخت تا ته هیڅ نه دئ معلوم، کېدای سي همدا اوس یا کېدای سي څه وخت وروسته دي ژوند پای ته ورسیږي، نو پر خپل عمر باندي هیڅ تکیه مه کوه. همدا ډول پر بې شمېره لښکرونو او پوځونو او نورو تجهیزاتو او سامان آلاتو باندي ډاډمن مه اوسه، ځکه که د الله جل جلاله نصرت نه وي، نو دا هر څه هیڅ دي. په خپلي باچاهۍ، لوړ مقام او شتمنیو او نوکرانو مه نازېږه او ډاډمن مه اوسه، ځکه چي دا هر څه مخکي تر هغه هم وه چي ته دې دنیا ته نه وې راغلی او ستا تر تګ وروسته به هم وي، خو تا ته يې هیڅ ګټه نه رسیږي. نو بد مه کوه، که نه نو له خپلو نیږدې ملګرو څخه به دي هم بد ووینې، ځکه دا هیڅ امکان نه لري چي بې کاره تخم وکرې او ښه حاصل ځني ترلاسه کړې....."

| بسا پهلوانان کشورستان | بسا بادشاهان سلطان نشان |
|---|---|
| ډېر غښتلي ملک نیوونکي | ډېر باچاهان د برلاسي نښه لرونکي |
| بسا شیر مردان شمشیرزن | بسا تندګردان لشکر شکن |
| ډېر بهادره خلګ توره وهونکي | ډېر ستر پهلوانان لښکر ماتوونکي |
| بسا نازنینان خورشید خد | بسا ماهرویان شمشاد قد |
| ډېر نازولي لمر مخي | ډېر سپوږمۍ مخي شمشاد قده |

**بسا دلربایان نوخاسته | بسا نوعروسان آراسته**

ډېر زړه وړونکي نوي ځوانان | ډېري نوي ناوياني سينګار سوي

**د لغاتو حل:** بسا (ډېر)؛ کشور (ملک / وطن)؛ کشورستان (ملک لاندي کوونکی). تند گردان (ستر پهلوانان)؛ شکن (ماتوونکی)؛ شیرمردان (غښتلي / زړور خلګ)؛ شمشير (توره)؛ شمشير زن (توره وهونکي). ماهرويان (ښايسته / چي مخونه يې د سپوږمۍ غوندي وي)؛ شمشاد (يو ډول جګه او لوړه ونه ده)؛ نازنينان (نازولي)؛ خورشيد خد (لمر مخي / چي مخونه يې د لمر غوندي ځليږي)؛ خد (بارخو / اننګی). دلربايان (معشوقان / زړه وړونکي)؛ نو خاسته (نوي ځوانان سوي)؛ نو (نوي)؛ عروسان (ناوياني)؛ عروس (ناوې)؛ آراسته (سينګار سوي / چمتو سوي).

**لنډ مطلب:** "ډېر ستر - ستر باچاهان، ډېر د هيوادونو نيوونکي او لاندي کوونکي جنګياليان، ډېر ستر لښکر ماتوونکي پهلوانان، ډېر غيرتمن او زړور خلګ، ډېر پی مخي او لوړ قدي، نازولي او ښايسته، زړه وړونکي ځوانان او ډېري سينګار سوي ناوياني وي..."

**بسا نامدار وبسا کامگار | بسا سروقدر وبسا گلعذار**

ډېر مشهوره او ډېر بريالي | ډېر سرو قدر او ډېر ګل مخي

**که کردند پیراهن عمر چاک | کشیدند سر در گریبان خاک**

چي کړه يې جامه د عمر څيري | کش يې کړ سر په ګرېوان کي د خاورو

**چنان خرمن عمرشان شد بباد | که هرگز کسی زان نشانی نداد**

داسي درمند د عمرددوی سو برباد | چي هيڅکله يو چا د هغو يوه نښه ورنه کړه

**منه دل برین منزل جانستان | که دروی نه بینی دلی شادمان**

(نو) مه ږده زړه پر دې دنيا چي ياني ده | خکه چي په دې کي به ونه وينې يوزړه خوشحاله

**د لغاتو حل:** نامدار (نوم لرونکي / مشهور)؛ کامګار (کامياب)؛ سرو (يو ډول لوړه تنه لرونکې ونه ده)؛ ګلعذار (ګل مخي)؛ پيراهن (جامه)؛ چاک (څيري)؛ ګريبان (ګرېوان)؛ خاک (خاوري). خرمن (درمند/دغنموکوټه)؛ هرګز (هيڅکله)؛ منه (مه ږده / مه تکيه کوه)؛ منزل (دنيا)؛ جانستان (روح اخيستونکی)؛ دلی (يو زړه)؛ شادمان (خوشحاله).

**لنډ مطلب:** "ډېر مشهور او نوموتي خلگ او ډېر بريالي او کامياب خلگ، ډېر گل مخي او لوړ قدي خلگ او داسي ډېرو نورو... خپل د عمل جامه څيري کړه او سرونه يې د خاورو په گرېوان ننه ايستل، د هغو د عمر درمند داسي باد يووړی چي هيڅکله يې بيا چا نوم يا يوه نښه هم نه ده ياده کړې، ته به چيري د تل له پاره ژوندی پاته سې، څکه نو په دې روح اخيستونکي دنيا باندي زړه مه تړه، څکه چي په دې کي يو کس هم خوشحاله نه دئ..."

| منه دل برين كاخ خرم هوا | كه مى بارد از آسمانش بلا |
|---|---|
| مه بړده زړه پر دې مانۍ تازه هوا لرونکي | چي وريږي له آسمان څخه ددې بلاوي |
| ثباتى ندارد جهان اى پسر | بغفلت مبر عمر در وى بسر |
| دوام نه لري جهان اې هلکه | په غفلت سره مه وړه عمر په دې کي سر ته |
| مكن تكيه بر ملك وفرمان دهى | كه ناگه چو فرمان رسد جاندهى |
| مه کوه تکيه پر ملک او فرمان ورکولو | چي ناڅاپه کله فرمان ورسيږي روح ورکوې |
| منه دل برين دير ناپائيدار | ز سعدى همين يک سخن يادوار |
| مه بړده زړه پردې بت خانه له منځه تلونکي | له سعدي څخه همدغه يوه خبره ياد ولره |

**د لغاتو حل:** کاخ (مانۍ)؛ خرم (تازه)؛ مى بارد (وريږي)؛ ثباتى ( دوام)؛ مبر (مه وړه / مه تېروه)؛ (فرمان دهى (فرمان ورکول / حکومت)؛ فرمان (حکم)؛ جان (روح) دهى (ورکوې). دَير (بت خانه)؛ سعدى (د مؤلف يا شاعر نوم دئ)؛ همين (همدغه)؛ يک (يو / يوه)؛ سخن (خبره).

**لنډ مطلب:** "نو اې دوسته! په دې تازه هوا لرونکي مانۍ (غولوونکي دنيا) باندي زړه مه ښه کوه، څکه د دې مانۍ له آسمان څخه بلاوي را وريږي، دا دنيا هيڅ دوام او ثبات نه لري، نو خپل عمر دي په غفلت سره پای ته مه رسوه. اې واکمنه او حاکمه! ته پر دې خپل ملک او حکومت باندي هيڅ تکيه او اعتماد مه کوه، څکه چي ناڅاپه او ناخبره به پر تا باندي الهي حکم او فرمان جاري سي او ته به د تل له پاره خپل ژوند له لاسه ورکړې. نو په پای کي د سعدي همدغه يوه خبره هيڅکله له ياده مه باسه چي دا دنيا د يوې له منځه تلونکي او نړېدونکي بت خانې په څېر ده، نو هيڅکله زړه مه ورباندي ښه کوه."

# ما قال استاذي

## پښتو شرح

## د پنــج گــنج

د پنج گنج دوهم کتاب

# نــام حق

مصنف: امام شرف رحمة الله علیه

# نام حق

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

د زيات مهربان پوره رحم لرونكي الله په نامه

## در توحيد باری تعالی

### د الله جل جلاله د توحيد په بيان كي

"توحيد" يعني يووالى يا يو گنل، د الله جل جلاله د توحيد معنى دا ده چي هغه جل جلاله يو وگنل سي او پر دې پوره ايمان او باور ودرلودل سي چي له الله جل جلاله څخه پرته بل خدای نه سته او همدا ډول هغه جل جلاله نه په خپل ذات كي، نه په صفاتو كي او نه په افعالو كي كوم شريک يا سيال لري، هغه جل جلاله يوازنى، بې نيازه او پر هر څه قادر ذات دئ.

نام حق بر زبان همی رانیم | که بجان ودلش همی خوانیم

نوم د خدای پر ژبه داسي چلوم | لكه چي په روح او زړه يې داسي وايم

ملک وصانع وقدیم وحکیم | خالق ورازق ورؤف ورحیم

هغه باچا جوړوونكى پخوانى اوحكمت لرونكى دئ | پيدا كوونكى رزق وركوونكى مهربان او رحم لرونكى دئ

هرچه هست ازبلندی وپستی | همه زو یافت صورت هستی

هرڅه چي دي له لوړي او له كښتي څخه | تولو له ده څخه پيدا كړى دئ صورت د هستى

طاعت اوست فرض عین شده | بر همه خلق همچو دین شده

طاعت د هغه دئ فرض عين سوى | پر تولو خلگو لكه پور سوى.

**د لغاتو حل:** نام (نوم)؛ حق (خدای تعالی)؛ زبان (ژبه)؛ رانیم (زه چلوم)؛ خوانیم (زه وایم). بلندی (لوړوالی / پورته والی)؛ پستی (ټیټ والی / کښته والی). دَین (پور).

**لنډ مطلب:** د نام حق مصنف رحمة الله علیه د خپل کتاب په پیل کي د الله تعالی حمد او ستاینه کوي؛ لکه دا چي د سلف صالحیو طریقه ده، نوموړی فرمایي: "د الله تعالی نوم پر ژبه باندي داسي روان ساتم لکه څنگه چي یې په زړه او روح کي ذکر کوم.

| داد مارا کتاب تا خوانیم | کرد مارا خطاب تا دانیم |
|---|---|
| راکړی یې دئ موږ لره کتاب ترڅو وې وایو | کړی یې دئ موږ ته خطاب ترڅو پوه سو |
| هرچه اوگفت آن کنیم همه | طاعت او بجان کنیم همه |
| هر څه چي هغه ويلي دي هغه کوو موږ ټول | طاعت د هغه په روح سره کوو موږ ټول |
| آنچه اوگفت غیرآن کردن | نیست سودی بجز زیان کردن |
| هغه چي هغه ويلي دي ماسېوا له هغه څخه کول | نه ده گټه ماسېوا له زيان کولو څخه |
| روزوشب طالب قبول وی ایم | پیرو امت رسول وی ایم |
| ورځ او شپه دطلب کوونکي د قبولیت د ده یو | پیروان امت د رسول د ده یو |

**د لغاتو حل:** خوانیم (موږ یې وایو)؛ دانیم (په پوهیږو). وی (هغه)؛ ایم (موږ یو)؛ پیرو (پیروان).

**د لغاتو حل:** مصنف رحمة الله علیه دوام ورکوي: "الله جل جلاله موږ ته کتاب راکړب دئ تر څو ويې لولو او لارښووني يې عملي کړو او په همدې کتاب کي یې موږ ته مستقيمًا خطاب کړی دئ، تر څو ښه ور باندي پوه سو. څه چي هغه جل جلاله ويلي دي، موږ هغه کوو او په روح او زړه سره د هغه جل جلاله طاعت او عبادت کوو، ځکه چي د هغه جل جلاله له اوامرو څخه مخالفت کول ستر زيان او تاوان دئ. موږ شپه او ورځ د دې غوښتونکي یو چي هغه جل جلاله زموږ نیمگړي او ناچیز عبادتونه را څخه قبول کړي او موږ د هغه جل جلاله د استازي حضرت محمد مصطفی صلی الله علیه وسلم امتیان او پیروان یو".

# در نعت سید المرسلین

## د رسولانو د سردار په ستاینه کي

| شکر | حق را | که پیشوا | داریم | پیشوائی | چو | مصطفی | داریم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| شکر | د خدای دئ | چي پېشوا | لرو | پېشوا | په شان | د مصطفی | لرو |

| مهتر | و بهتر | و گزین | همه | سرور | و خاتم | و نگین | همه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| چي ښه | او بهتره | او غوره | تر تولو دئ | سردار | او خاتم | او خلاصه | د تولو دئ |

| او | شریعت | بیان | کند | ما را | او | طریقت | عیان | کند | ما را |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه | شریعت | بیان | کی | موږ ته | هغه | طریقت | ښکاره | کی | موږ ته |

| صلوات | خدا | بروی | باد | تا بروز | جزا | پیاپی | باد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| رحمتونه | د خدای دي | پر ده | وي | تر ورځي پوري | د قیامت دي | پرله پسې | وي |

**د لغاتو حل:** پیشوا (رهنما / لارښود)؛ مهتر (ستر سردار)؛ گزین (غوره / ښه)؛ خاتم (د نبوت پای ته رسوونکی)؛ نگین (غمی). شریعت (د ایمان او اسلام ظاهري صورت)؛ طریقت (نفس د تزکیې تگلاره).

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه تر حمد وروسته درود او د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاینه کوي، فرمايي: د الله تعالی شکر دئ چي موږ ته یې د مصطفی صلی الله علیه وسلم په څېر پېشوا او لارښوونکی راکړی دئ، هغه صلی الله علیه وسلم ډېر غوره او تر تولو ښه انسان دئ، د تولو سردار دئ، هغه صلی الله علیه وسلم موږ شریعت بیان کړ او طریقت یې را ته څرگند کړ، پر ده مبارک صلی الله علیه وسلم دي د قیامت تر ورځي پوري د الله تعالی رحمتونه وي.

| امت | او | و دوستدارِ | وی | ایم | دوستدار | چهار | یار | وی | ایم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| امت | د ده | او محبت لرونکي | د ده | یو | او محبت لرونکي | د څلورو | ملگرو | د ده | یو |

| | |
|---|---|
| چو ابو بکر هم عمر عثمان | مرتضی دان علیهم الرضوان |
| لکه ابو بکر هم عمر (او) عثمان | علي وبوله، پر دوی دي رضامندي وي |
| رحمت حق نثار یارانش | باد و بر جمله دوستارانش |
| رحمت دخدای دي وورېدنکی پر ملګرو د ده | وي او پر ټولو محبینو د ده |

**د لغاتو حل:** دوستدار (خوښوونکي / مینه کوونکي)؛ وی (د هغه)؛ ایم (یو) چو (په مثال / لکه)؛ دان (وګڼه / وبوله). باد (وي دي)؛ جمله (ټول).نثار(اورېدونکی)

**لنډ مطلب:** مصنف رحمة الله علیه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ستاینه کي زیاتوي: موږ ټول د هغه صلی الله علیه وسلم امتیان یو او د هغه صلی الله علیه وسلم له څلورو ملګرو سره مینه او محبت کوونکي یو، د هغه صلی الله علیه وسلم څلور ملګري حضرت ابو بکر صدیق، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان ذي النورین او حضرت علي مرتضی رضي الله عنهم اجمعین وه. د الله تعالی رحمتونه دي تل او همېشه پر دوی او د دوی پر محبینو فیضان وي.

## آغاز کتاب مستطاب واعتذار از جانب مصنف کتاب رحمه الله

### د سپېڅلي کتاب پیل او د کتاب د مصنف له لوري عذر وړاندي کول

| | |
|---|---|
| ای مصلی بیا طهارت کن | خانهٔ دین خُود عمارت کن |
| اي لمونځ کوونکيه! راسه پاکي وکړه | کور د دین خپل ودان کړه |
| چون بیاری طهارت ظاهر | باطنت نیز حق کند طاهر |
| کله چي راوړې پاکوالی د ظاهري بدن | باطن ستا همداسي خدای کوي پاک |
| آن طهارت که قسم جسم آمد | ظاهرت را همه سه قسم آمد |
| هغه پاکوالی چي له ډول څخه د بدن راغلی | ظاهر ستا ټوله درې ډوله راغلی |
| تن بغسل ووضو چو پاک کنی | آب گرنیست قصد خاک کنی |
| بدن په غسل او اوداسه چي پاک کړې | اوبه که نه وې اراده د خاورو وکړه |

**د لغاتو حل:** مصلی (لمونځ کوونکی)؛ طهارت (پاکي / اودس)؛ خانه (کور)؛ عمارت (جوړ / ودان). بیاری (راوړې)؛ ظاهر (ښکاره)؛ باطنت (باطن ستا/دننه)؛ نیز (همداسي)؛ طاهر (پاک). جسم (بدن)؛ آمد (راغلی)؛ آب (اوبه)؛ قصد (اراده)؛ خاک (خاوره). تن (بدن)؛ غسل (حمام / د ټول بدن پرېولل)؛ وضو (اودس)؛ سه (درې).چوپاک (نظیف /صفا)

**لنډ مطلب:** کله چې مصنف رحمة الله علیه د الله تعالی د حمد او ستاینې او پر رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې د درود شریف له ویلو څخه فارغ سو، نو بیې د کتاب په اصلي موضوع پیل وکړ، دا چې د کتاب اصلي موضوع د شرعي امورو یعني اوداسه، غسل، تیمم، لمانځه او نورو... بیان دئ، نو وېې وفرمایل: کله چې ته ظاهري او ښکاره بدن پاکوې، نو همداسي خپل باطن هم باید پاک او سپېڅلی واړې. هغه پاکوالی چې له ظاهري بدن سره اړه لري پر درې ډول دئ: ۱- اودس؛ ۲- غسل؛ ۳ تیمم. یاني که چیرې پاکې او پاکوونکې اوبه موجود وې، نو په همدې اوبو سره اودس یا غسل وکړه او که اوبه نه وې، نو بیا پر پاکه خاوره باندې تیمم ووهه.

| زان که چوگان شرع راگوئیم | شرح این هرسه نوع راگویم |
|---|---|
| څکه چې د هاکې د شریعت وایم (گین یمه زه) | تشریح د دغو درو سرو ډولو زه وایم |
| برتو خوانیم روان وبی منت | در طهارت فریضه وسنت |
| تا ته وایم بې تکلیفه او بې احسانه | په پاکوالي کي فرض او سنت |
| توشهٔ عمر پنج روزه کنم | پس بیان نماز وروزه کنم |
| توښه د عمر پنځه ورځي کوم | وروسته بیان د لمانځه او د روژې کوم |
| دل مقام نیاز باید کرد | آبدست ونماز باید کرد |
| زړه مقام دعاجزۍ باید وکړل سي | اودس او لمونځ باید وکړل سي |

**د لغاتو حل:** شرح (بیان / تشریح / تفصیل)؛ نوع (قِسم / ډول)؛ چوگان (یو ډول لوبه چې هاکي ورته وایي) گوئی (گین). خوانیم (زه یې وایم)؛ روان (پر له پسې)؛ بی منت (بې له احسان اچولو). آبدست (اودس)؛ نماز (لمونځ)؛ باید (ښایي / په کار دي)؛ دل (زړه)؛ مقام (ځای)؛ نیاز (عاجزي).

**لنډيز:** مصنف رحمة الله عليه خپل بيان ته ادامه ورکوي او فرمايي: اوس د دې درې ډوله پاکوالي تفصيلي بيان درته کوم، څکه چي ما څان داسي فرض کړئ لکه د شريعت د هاکې ګين، هاکي يو ډول لوبه ده چي د يوه لرګي په وسيله يو ګين وهل کيږي، نو څه ډول چي ګين د لرګي تابع وي او هري خوا ته يې چي وهي هماغه خوا ته څي، زه هم همداسي د شريعت تابع يم هري خوا ته چي مي بيايي او هر څه چي راته فرمايي هماغه کوم. په پاکوالي کي فرضونه او سنتونه سته چي اوس يې درته په تفصيل سره بيانوم، تر هغه وروسته د لمانځه او د روژې بيان درته کوم، تر څو دا زما له پاره يوه اخروي توښه او ذخيره وګرځي. نو اودس او لمونځ خامخا بايد وکړل سي او زړه د عاجزۍ مقام وګرځول سي.

| | |
|---|---|
| روز محشر کہ جان گداز بود | اولین پرسش نماز بود |
| روځ د محشر چي روح ويلي کوونکې دی | اوله پوښتنه به د لمانځه وي |
| پس مکن در نمازها تقصیر | تا در آن روز باشدت توقیر |
| نو مه کوه په لمنځونو کي لټي | ترڅو په هغه ورځ کي وي ستا عزت |
| خودسنائی چی بس نکو گفت است | دُرِ معنی نگر کہ چون سفت است |
| خپله حکيم سنايي څه کافي ښه ويلي دي | ملغلري دحقيقت ګوره چي څونه ښه يې پېيلي دي |
| غم دین خور کہ غم غم دین ست | همہ غمها فروتر ازین ست |
| غم د دين وخوره چي غم، غم د دين دئ | (نور) ټول غمونه ډېر کم تر دې دي |

**د لغاتو حل:** روز (ورځ)؛ محشر (قيامت / د راټولېدلو ځای)؛ اولين (لومړنی)؛ پرسش (پوښتنه). مکن (مه کوه ) تقصير (لټي / سستي / کوتاهي)؛ توقير (وقار / عزت). خود (خپله)؛ سنائي (حکيم سنائي، د يوه شاعر نوم دئ چي د غزني يو مشهور حکيم وو)؛ بس (کافي)؛ نکو (ښه)؛ گفت (ويلي دي)؛ دُر (ملغلري) سفت (پېيلي). فروتر (ټيټ / کښته).

**لنډيز:** مصنف رحمة الله عليه د شرعي امورو بيان د نظم په ژبه کوي، فرمايي: د قيامت په ورځ به لومړنی پوښتنه د لمانځه وي، نو له همدې امله په لمونځونو کي لټي او سستي مه کوئ، تر څو په هماغه خوفناکه ورځ عزتمن او سرلوړي اوسئ. حکيم سنائي څومره ښه ويلي دي او د حقيقت ملغلري يې په ډېر دقيق

انداز سره پیبلي دي. غم د دین وخوره ځکه چي غم یوازي همدا د دین غم دئ، نور ټول دنیوي غمونه تر دې غم ډېر ټیټ ناچیزه دي.

غم دنیا مخور که بیهود است | هیچکس در جهان نیاسود است
غم د دنیا مه خوره چي بې ګټې دئ | هیڅوک په جهان کي نه دئ ګټمن سوی

من بعجز وقصور معترفم | نی چو نادان واحمق وخرفم
زه پر خپلي عاجزۍ او نیمګړتیا اقرارکوونکی یم | نه لکه د ناپوه اواحمق اوبې عقل بوډا یم

پیش ازین گفته اند اهل سلف | عذر مَن صنف قد استهدف
مخکي تر دې ویلي دي پخوانیو | عذردهغه چاچي تصنیف یي وکړي هغه علامه جوړسو

لیک برقدر خویش کوشیدن | به ز بیکاری وخموشیدن
لېکن پراندازه د خپل وس کوشش کول | ښه دئ له بې کارۍ او پټه خوله پاتېدلو څخه

**د لغاتو حل:** مخور (مه خوره)؛ بیهود (بې فائدې)؛ سود (ګټه). من (زه)؛ قصور (نیمګړتیا / عاجزي)؛ معترفم (اقرار کوونکی یم)؛ نی (نه)؛ نادان (ناپوه)؛ احمق (بې عقل)؛ خرفم (جاهل سپین ږیری). پیش (مخکي)؛ اهل سلف (پخواني ښه خلګ)؛ مَن (هغه څوک). لیک (لېکن)؛ قدر (اندازه)؛ خویش (خپل)؛ کوشیدن (کوښښ کول)؛ خموشیدن (پټه خوله اوسېدل).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه زیاتوي: د دنیا په غم کي مه اوسه، هیڅ ګټه نه لري، ځکه چي هیڅوک هم په دنیا کي نه دئ ګټمن سوی. زه پر دې اقرار کوم چي عاجز او نیمګړتیا لرونکی یم، مګر نه دا چي د ناپوه او بې عقل سپین ږیري غوندي یم. مخکي هم پخوانیو خلګو ویلي دي چي څوک چي عذر وړاندي کړي، هغه علامه جوړېږي. لېکن د خپل وس او توان په اندازه کوښښ کول تر بې کارۍ پټه خوله پاتېدلو ډېر ښه دي.

من بقدر مجال کوشیدم | فقه را بُردِ نظم پوشیدم
ما په اندازه د خپل وس کوښښ وکړ | فقهي لره مي ښادر د نظم ور واغوست

نکنی عیب گر تو بتوانی
ونه کړې نیمگړتیا که چیرې ته وکولای سې

که در وحلهٔ بپوشانی
چې دا (فقهه) په ښو جامو وپوښې

اسپ تازی گرچه به تازد
آس عربي که څه هم تېز څغلي

لاشهٔ خر خویشتن نیندازد
مگرکمزوری خر هم خپل خان نه غورځوي

صد و هفتاد بیت وده باب ست
سل او اویا بیتونه او لس بابه دي

لائق روزگار اصحاب ست
مناسب د زمانې د خاوندانو دي

**د لغاتو حل:** مجال (وس او توان)؛ کوشیدم (کوښښ مي وکړ)؛ فقه (د شرعي امورو پوهه)؛ پوشیدم (ور وامي غوستل). وحله (ډیري ښې جامې)؛ بپوشانی (ته وپوښې). اسپ (آس)؛ تازی (ځغستونکی)؛ گرچه (که څه هم)؛ تازد (ځغلي)؛ لاشه (کمزوری)؛ نیندازد (نه غورځوي). صد (سل)؛ هفتاد (اویا)؛ ده (لس)؛ لائق (مناسب / وړ).

**لنډیز:** -نو ما هم د خپل توان او طاقت په اندازه کوښښ وکړ او د شرعي امورو، لکه لمانځه او روژې... زدکړې ته مي د نظم جامه ور واغوستله. که چیري وکولای سې چې تر دې یې ښه بیان کړې او تر دې غوره جامه ور واغوندې، نو زما په دې نظم کي عیب او نیمگړتیا مه لټوه او نیوکي او اعتراضونه مه ورباندې کوه، ځکه تېز عربی آس که څه هم ډېر چټک ځغلي، لېکن یو کمزوری حیوان هم خپل ځان د لاري په منځ کي نه پرېږدي، بلکي د خپل وس په اندازه هڅه کوي او تر منزله ځان رسوي. نو دا کتاب پر لسو بابونو مشتمل دئ او تقریبًا یو سل او اویا بیتونه لري چې د دې زمانې خلګو ته ډېر مناسب دئ.

موجز و دلپذیر افتاد است
لنډ او زړه منونکی واقع سوی دئ

لاجرم بی نظیر افتاد است
خامخا بې مثاله واقع سوی دئ

این ترا یادگار از شرف است
دغه تا ته یادگار له شرف څخه دئ

نام او در جهان بهر طرف ست
نوم دده په جهان کي پر هر طرف دئ

از بخارا ست مولد و نسبش
له بخارا څخه دئ خای د زېږېدني اونسب دده

وز خراسان علوم مکتسبش
له خراسان څخه دئ د علومو تحصیل د ده

| یا الهی | بده | تو | توفیقم | راه | بنما | بسُوئی | تحقیقم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې خدایه | راکړې | ته | توفیق ما ته | لاره | وښیې | طرف ته | دتحقیق ما ته |

**د لغاتو حل:** موجز (لنډ)؛ دلپذیر (زړه منونکی)؛ افتاد (لوېدلی / واقع)؛ لا جرم (حتمًا / خامخا)؛ بی نظیر (بې ساري / بې مثله). مولد (د زېږېدني ځای)؛ مکتسب (کسب / لاسته راوړنه). بده (راکړه)؛ توفیقم (توفیق ما ته)؛ راهِ (لاره)؛ بنما (وښیه)؛ سوئ (لوری / طرف)؛

**لنډيز:** -خلص او لنډ کتاب دئ خو په زړپوري دئ چي ساری یې نه لیدل کیږي، دا کتاب تا ته د شرف (مصنف) له خوا یو یادگار دئ، چي نوم په جهان کي هر خوا مشهوره دئ، په بخارا کي زېږېدلی دئ او په خراسان کي یې علوم حاصل کړي دي. نو اې مهربانه خدایه! ما ته توفیق راکړې او سمه او د حقیقت لاره را ته وښیه.

# باب اول در بیان وضو

## واین مشتمل است برچهار فصل: فصل اول در فرائض وضو

### لومړی باب د اوداسه په بیان کي

### او دا باب پر څلورو فصلونو مشتمل دئ: لومړی فصل د اوداسه فرضونه

| درصباح | ورواح | ولیل | ونهار | در وضو | نیست | جُز | فریضه | چهار |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| په سهار | په مابنام | په شپه | او په ورځ کي | په اوداسه کي | نه سته | ماسېوا | له فرضو | څلورو |
| شستن | روئی | ودست | ومسح سرست | شستن | پائی | نیز | معتبر | ست |
| پرېولل | د مخ | او لاسو | او مسح د سر ده | پرېولل | د پښو | همداسي | معتبر | دي |
| رُبع | سر | مسح | فرض | باید دید | لازمش | همچو | قرض | باید دید |
| څلورمه | د سر | مسح | فرض ده | باید ولیدل سي | لزوم د دې | له | پور دئ | باید ولیدل سي |

**د لغاتو حل:** صباح (سهار)؛ رواح (مابنام)؛ لیل (شپه)؛ نهار (ورځ)؛ جز (ماسېوا). شستن (پرېولل)؛

روی (مخ)؛ دست (لاس)؛ پای (پښه)؛ معتبر (د اعتبار وړ). ربع (څلورمه حصه)؛ دید (لیدل)؛ همچو (په مثال)؛ قرض (پور).

**لنډیز:** دلته مصنف رحمة الله علیه د اوداسه په بیان پیل وکړ او ویې فرمایل: لومړی باب د اوداسه په بیان کې دئ او دا باب پر څلورو فصلونو مشتمل دئ چې لومړی فصل یې د اوداسه د فرضونو بیان دئ، د اوداسه فرضونه څلور دي: ۱- د مخ پرېولل؛ ۲- د لاسونو پرېولل؛ ۳- د سر د څلورمې برخې مسحه کول؛ ۴- د پښو پرېولل. دا څلور شیان په اوداسه کې داسې فرض او لازمي دي لکه پور.

# فصل دوم در سنتهائی وضو

## دویم فصل د اوداسه سنتونه

| | |
|---|---|
| سنت آبدست ده باشد | هر که دانست مرد ره باشد |
| سنت د اوداسه لس دي | هرڅوک چې پوه سو سړی د لاري دئ |
| شستن دست پیش ومسواک ست | نام حق گفتن ازدل پاک ست |
| پرېولل د لاس مخکې او مسواک دئ | نوم د خدای ویل له زړه څخه چې پاک دئ |
| مضمضه مسح گوش واستنجا | بسه کرات شستن اعضا |
| د خولې پرېولل او مسح د غوږ او استنجاء | په درې واره پرېولل د اندامونو |

**د لغاتو حل:** ده (لس)؛ دانست (پوه سوی)؛ مرد ره (سړی د لاري، مطلب ښه انسان). نام (نوم) مضمضه (د خولې پرېولل / په خوله کې اوبه اچول)؛ گوش (غوږ)؛ استنجا (د شرمځای پرېولل)؛ بسه کرات (درې واره)؛ شستن (پرېولل) اعضا (اندامونه / د بدن غړي، لکه لاس، پښه...).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه د اوداسه تر فرضو وروسته د هغه سنتونه بیانوي، فرمایي: په اوداسه کې لس شیان سنت دي، څوک چې دا شیان زده کړي هغه به ښه انسان وي: ۱- د لاسونو پرېولل (تر بندونو پورې)؛ ۲- مسواک وهل؛ ۳- بسم الله ویل؛ ۴- د خولې پرېولل؛ ۵- د غوږونو مسح کول؛ ٦- استنجاء وهل (البته استنجاء په خپل ځان کې څو ډوله ده چې یو ډول یې سنت ده او دلته مراد همدا سنت استنجاء

ده)؛ ۷- د هر اندام درې - درې واره پرېولل...

| | |
|---|---|
| نیز انگشت پای را تخلیل | سنت آمد ز مصطفی بی قیل |
| همداسي گوتي د پښو لره خلالول | سنت راغلي دي له مصطفی څخه بې اختلافه |
| باز تخلیل لحیه استنشاق | گفتم این جمله را علی الاطلاق |
| بیا خلالول د ږیرې اود پزې پرېولل | ومې ویل دا ټوله په مطلق ډول |
| عضو گر ترکنی روا نبود | راندن آب جز دوا نبود |
| اندام که چیرې لوند کړې روا نه دئ | له بېولو څخه د اوبو ماسوا دوا نه دئ |

**د لغاتو حل:** نیز (همداسي)؛ انگشت (گوتي)؛ تخلیل (خلالول / په منځ کي یې گوتي تېرول)؛ بی قیل (بې له اختلافه). باز (بیا)؛ لحیه (ږیره)؛ اسنشاق (د پزي پرېولل / په پزه کي اوبه اچول)؛ گفتم (ما وویل)؛ جمله (ټوله)؛ علی الاطلاق (مطلقًا / په مطلق ډول). عضو (اندام)؛ گر (که چیرې)؛ تر (لوند)؛ راندن (بېېول / تویېول).

**لنډیز:** ... ۸- د پښو د گوتو خلالول؛ دا رسول الله صلی الله علیه وسلم سنت دئ او هیڅ اختلاف پکښې نه سته؛ ۹- د ږیرې خلالول؛ ۱۰- د پزې پرېولل. دا مې ټوله در ته په مطلق ډول وویل. که چیرې څوک یو اندام یوازې لوند کړې، دا نه روا کیږي، بلکې خامخا به اوبه ورباندې بېېوي.

# فصل سوم در مستحبات وضو

## دریېم فصل د اوداسه مستحبات

| | |
|---|---|
| در وضو شش ز مستحبات ست | نیت وزان سپس موالات ست |
| په اوداسه کي شپږ له مستحباتو څخه دي | نیت او تر دې وروسته پر له پسې والی دئ |
| همه سر مسح وانگهی ترتیب | بمیامن بدایت از تادیب |
| د ټوله سر مسح او ور پسې ترتیب | په راسته طرف شروع کول له ادب څخه |

| | |
|---|---|
| گر تو مسح ازسر عمل گیری | مسح گردن ازین قبل گیری |
| که چیري ته مسح د سر عمل ونیسې | مسح د غاړي هم له همدې قبیل څخه ونیسه |

**د لغاتو حل:** شش (شپږ)؛ نیت (قصد / اراده)؛ سپس (په پسې / ور پسې)؛ موالات (پر له پسې والی). همه (ټوله)؛ وانگهی (یو اضافي جمله ده چي د ورپسې په معنی راځي). میامن (راسته طرف)؛ بدایت (شروع کول)؛ تادیب (ادب). گیری (ونیسه)؛ گردن (غاړه). قبل (مخکي)

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه د اوداسه تر سنتو وروسته د اوداسه د مستحباتو بیان پیل کړ، ویې فرمایل: په اوداسه کي شپږ شیان مستحب دي: ١- نیت؛ ٢- پر له پسې والی (د یوه اندام تر پرېولو وروسته سمدستي بل اندام پرېولل)؛ ٣- د ټوله سر مسحه کول؛ ۴- ترتیب، یعني لومړی مخ، بیا لاسونه، بیا د سر مسحه او بیا پښې پرېولل؛ ۵- د ادب له مخي په راسته اندام سره شروع کول، یاني لومړی راسته لاس پرېولل... ٦- د غاړي مسحه، څنگه چي د ټوله سر مسحه وکړې، د غاړي مسحه هم همداسي وگنه. یعني لکه څنگه د ټوله سر مسحه مستحب ده، د غاړي مسحه هم مستحب ده.

# فصل چهارم در مکروهات وضو

## څلورم فصل د اوداسه مکروهات

| | |
|---|---|
| آب اندر دهان ودر بینی | بکف چپ کراهیت بینی |
| اوبه په خوله کي اچول او په پزه کي | په لاس چپه سره په مکروهیت ووینې |
| آب بر روی سخ تر کردن | عورت خویش را نظر کردن |
| اوبه پر مخ په سختۍ سره لوندول | عورت خپله ته نظر کول |
| خوی در آب هشتن از عمدا | سخن اندر مقام استنجا |
| ناړي په اوبو کي توکل په قصد سره | خبري په ځای کي د استنجاء |

**د لغاتو حل:** دهان (خوله)؛ بینی (پزه)؛ کف (ورغوی / لاس)؛ چپ (چپه / کیڼ)؛ بینی (دا دویم بینی د لیدلو په معنی دئ یعني ووینې). تر کردن (پاشل / اچول)؛ عورت (ستر)؛ نظر کردن (کتل). خوی (ناړې)؛

هشتن (تُوکل / تُو کول)؛ عمدًا (په قصده)؛ سخن (خبري)؛ اندر مقام (په ځای کي).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه د اوداسه تر سنتو وروسته د اوداسه مکروهات بیانوي، فرمایي: خولې او پزې ته په چپه لاس سره اوبه اچول مکروه دي، پر مخ باندي په سختۍ سره اوبه اچول، د استنجاء په وخت کي خپل عورت یا شرمځای ته کتل، په اوبو کي ناړې تُوکل او د استنجاء په ځای کي خبري کول دا ټول شیان یا کارونه په اوداسه کي مکروه دي...

| ور | تو | بینی | براست | افشانی | در | میان | کراهیت | مانی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| که چیري | ته | پزه | په راسته لاس | سوغ کوې | په | منځ کي | د مکروه والي | پاته کېږې |
| هرکه | این | شش | کراهیت | داند | دائم | اندر | رفاهیت | ماند |
| هر څوک چي | دغه | شپږ | مکروهات | وپېژني | تل | په | فایده کي | پاته کیږي |

**د لغاتو حل:** افشانی (سوغ کوې)؛ در میان (په منځ کي)؛ مانی (پاته کیږې). کراهیت (مکروه والی / مکروهات)؛ داند (وپېژني)؛ دائم (همېشه)؛ رفاهیت (هوساینه / آسودګي)؛ ماند (پاته کیږي).

**لنډیز:** ... همدا ډول که ته په راسته لاس سره پزه سوغ کوې، نو تل به په کراهیت کي پاته یې. هر څوک چي دا شپږ مکروهات وپېژني او ځان ځني وساتي، نو تل به هوسا او آرام وي.

# باب دوم در بیان شکننده هائی وضو

## دویم باب د اوداسه د ماتوونکو په بیان کي

| آنچه | ازپیش | وپس | عیان گردد | آبدست | ترا | زیان | گردد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه چي | ترمخه دي | او وروسته | ښکاره کیږي | اودس | ستا لره | نقصان | ګرځي |
| مگر | آن باد | کان | زپیش | بود | که وضو | هم بجای | خویش | بود |
| مگر | هغه باد | چي | د مخ له خوا | وي | چي اودس | هم پر ځای | خپل | وي |
| ریم | وخون | گروان | همی | باشد | قی کنی | پُر دهان | همی | باشد |
| نو او وینه | که چیري جاري | همداسي | وي | قی وکړې | په ډکه | خوله | همداسي | وي |

**د لغاتو حل:** شکننده (ماتوونکی)؛ آنچه (هغه څه)؛ از پیش (دُ مخ له خوا څخه)؛ پس (او د شا خوا)؛ عیان (ښکاره)؛ گردد (وگرځي)؛ زیان (نقصان / تاوان). ریم (نَوونه/زړي اوبه دتپ)؛ خون (وینه)؛ روان (جاري / بېېدلې)؛ قی (خوا گرځېدل)؛ پُر (ډک)؛ دهان (خوله).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه دلته د اوداسه د ماتوونکو بیان شروع کړ او ویې فرمایل: کوم څه چي د انسان د مخ یا شا له خوا راووزي اودس ماتوي، البته هغه باد چي د مخ له خوا څخه راوزي، هغه اودس نه ماتوي. همداسي نَو اوويني چي راووزي او وبهېږي او همدا رنگه په ډکه خوله قی وهل هم اودس ماتوي...

| | |
|---|---|
| خواب تکیه زوه وضو شکند | تکیه بر خواب هیچکس نکند |
| خوب تکیه وهلی اودس ماتوي | تکیه پر خوب هیڅوک نه کوي |
| قهقه درنماز وبیهوشی | باز دیوانگی ومدهوشی |
| په زوره خندل په لمانځه کي او بې هوښي | بیا لېونتوب او نشه کېدل |
| هرکه را شد مباشرت فاحش | فرج درفرج وایر دربالش |
| هر چا لره چي سي مباشرت فاحش | شرمخای په شرمخای کي او ذکر په انتشار کي |

**د لغاتو حل:** خواب (خوب)؛ شکند (ماتوي)؛ قهقهه (په لوړ آواز خندا)؛ بیهوشی (بې هوښي / بې سده کېدل)؛ دیوانگی (لېونتوب)؛ مدهوشي (نشه کېدل / مستېدل). مباشرت (شهواني لوبي)؛ فاحش (بدي)؛ فرج (شرمخای)؛ ایر (ذکر / د سړي جنسي غړی)؛ بالش (حرکت / خوځښت / انتشار).

**لنډیز:** ... همدا ډول هغه خوب اودس ماتوي چي پر ځان یا پر یوه شي یې تکیه کړې وي، دا ښه نه دئ چي څوک پر خوب باندي تکیه کوي، هوښیاران پر خوب تکیه او اعتماد نه کوي. همدا رنگه په لمانځه کي په لوړ آواز خندل، بې هوښه کېدل، لېونی کېدل او نشه کېدل هم اودس ماتوي، همدا ډول څوک چي د شهوت په حال کي له مېرمني سره لوبي وکړي، یا جماع وکړي او یا یې ذکر انتشار وکړي. دا ټوله شیان اودس ماتوي.

# باب سوم در بیان غسل

## وآن مشتمل ست بر سه فصل: فصل اول در بیان فرائض غسل

### درېیم باب د غسل په بیان کي

### اودا باب پر درو فصلونو مشتمل دئ: لومړی فصل د غسل د فرضون بیان

| هرکه | بادانش | وتميز | بود | فرض | در غسل | او | سه چيز | بود |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هر څوک | چي عاقل | او بالغ | وي | فرض | په غسل کي | د هغه | درې شیان | دي |
| آب | دربيني | ودهان | کردن | برهمه | عضو | خود | روان کردن | |
| اوبه | په پزه کي | او په خوله کي | اچول | (اواوبه)پرټولو | اندامونو | خپلو | بهبول (توبول) | |

**د لغاتو حل:** دانش (پوهه / علم)؛ تميز (عقل / هوښ)؛ سه (درې)؛ چيز (شی).

**لنډيز:** اوس درېیم باب شروع سو او دا باب د غسل په بیان کي دئ چي پر درو فصلونو مشتمل دئ او لومړی فصل یې د اوداسه فرضونو په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه وایي چي څوک چي عاقل او بالغ وي، د هغه په غسل کي درې شیان فرض دي: ۱- د خولې پرېولل؛ ۲- د پزي پرېولل؛ ۳- پر ټول بدن باندي اوبه توبول یعني د ټول بدن پرېولل.

# فصل دوم در بیان سنتهائی غسل

### دويم فصل د غسل د سنتونو په بيان کي

| سنت | غسل | جملگی | پنج | ست | ياد | گيرش | كه بهتر | از گنج | ست |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سنت | د غسل | ټوله | پنځه | دي | ياد يې | ونیسه | چي بهتر | تر خزانې | دي |
| شستن | دست | وفرج | بايد | پيش | دور | کردن | نجاست | ازتن | خويش |
| پرېولل | د لاس | او شرمځای | ښايي | مخکي | ليري | کول | د مرداری | له بدن څخه | خپل |

| پس | وضو | ساختن | زبهر | خدا | شستن | تن | سه بار | سرتا پا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وروسته | اودس | تازه کول | له پاره | د خدای | پرېولل | د بدن | درې واره | له سره تر پښو |

**د لغاتو حل:** جملگی (توله / له یوه مخي)؛ پنج (پنځه)؛ گیر (ونیسه)؛ بهتر (ډېر ښه)؛ گنج (خزانه). نجاست (مرداري)؛ تن (بدن)؛ خویش (خپل). ساختن (جوړول / تازه کول)؛ ز بهر (له پاره)؛ سه بار (درې واره)؛ سر تا پا (سر تر پایه / سر تر پښو).

**لنډیز:** دویم فصل د غسل د سنتونو په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه وایي چي د غسل تول سنتونه پنځه دي، یاد یې وساته چي خزانې هم غوره دي: ۱- د لاسونو پرېول؛ ۲- د شرمځای پرېولل یعني استنجاء وهل؛ ۳- له بدن څخه د مرداریو لیري کول؛ ۴- اودس تازه کول؛ ۵- توله بدن له سره تر پښو پوري درې واره پرېولل. یعني یو وار پرېولل یې فرض دي، درې واره پرېولل یې سنت دي.

| آن | زنانی | که موئی را | بافند | شاید | آن موئی | را نه | بشگافند |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هغه | ښځي | چي ورېښتان یې | ودلي وي | شاید | هغه ورېښتان | نه کړي | خلاص |

| درتگ | مو | چو آب را رانند | بافته | خشک | همچنان | مانند |
|---|---|---|---|---|---|---|
| په بېخونوکي | د ورېښتانو | چي کله اوبه ورسوي | وودل سوي دي | وچ | همدغسي | پاته وي |

**د لغاتو حل:** زنانی (د ښځو جمعه ده، زن یعني ښځه، زنانی هغه ښځي)؛ موئ (ورېښتان)؛ بافند (ودلي / کوڅې کړي)؛ بشگافند (خلاصول / ایله کول). تگ (بېخ)؛ مو (ورېښتان)؛ رانند (رسول / رسېدل)؛ بافته (وودل سوی)؛ همچنان (همداسي)؛ مانند (پاته کېدل).

**لنډیز:** ... هغه ښځي چي ورېښتان یې کوڅې کړي وي، که چیري د هغوی د ورېښتانو بېخونو ته اوبه رسېدلې، نو د کوڅیو خلاصولو ته اړتیا نه سته، هغه که همداسي وچي پاته سي پروا نه لري.

# فصل سوم در بیان مقدار آب وضو و غسل

## درېیم فصل د اوداسه او غسل د اوبو د اندازې په بیان کي

| مکن | اسراف | ماء | مجانی | چون | وَلَا تُسْرِفُوا | همی | خوانی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مه کوه | اسراف | د اوبو | مفتو | لکه څنگه چي | "ولا تسرفوا" | همداسي | ویلي دي |

| تلف آب چون روا نبود | تلف عمر جز خطا نبود |
|---|---|
| ضائع کول د اوبو چي څنګه روا نه دي | ضائع کول د عمر بې له خطا نه دي |
| در وضو آب یک من و نیم است | غسل را چار من ز تعلیم است |
| په اوداسه کي اوبه یو من او نیم دي | غسل لره څلور منه له تعلیم څخه دي |

**د لغاتو حل:** مکن (مه کوه)؛ اسراف (بې ځایه مصرفول)؛ ماء (اوبه)؛ مجانی (مفتي / وړیا)؛ ولا تسرفوا (د آیت بوه برخه ده چي تاسي اسراف مه کوئ)؛ خوانی (ویلي دي). تلف (ضائع کول). یک (یو)؛ من ونیم (یو نیم من)؛ چار (څلور)؛ تعلیم (زدکړه).

**لنډیز:** دربیم د اوداسه او غسل د اوبو د اندازې په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي په مفتو اوبو کي اسراف مه کوه، ځکه چي الله تعالی فرمایلي دي چي تاسيٰ اِسراف مه کوئ. لکه څنګه چي د اوبو بې ځایه مصرفول روا نه دي همداسي د عمر ضائع کول هم لویه غلطي ده. د اوداسه له پاره یو نیم من اوبه کفایت کوي او غسل په څلور منه اوبو سره کیږي...

| در وضو کن به نیم استنجا | دار مر دست وروی نیم من را |
|---|---|
| په اوداسه کي کوه په نیم من استنجاء | ولره خاص د لاس او د مخ لهٔ پاره نیم من |
| پس بدان نیم من که میماند | پای شوید هر آنچه میداند |
| وروسته تر دې نیم من چي پاته سي | پښې دي پرېولي هر ډول چي پوهیږي |
| همچنین گیر غسل را تعلیم | بر سر خویش ریز دو من و نیم |
| همدا ډول ونیسه غسل لره تعلیم | پر سر خپل توی کره دوه منه او نیم |

**د لغاتو حل:** دار (ولره)؛ میماند (چي پاته سي)؛ پای (پښې)؛ شُوید (پرېولل)؛ میداند (چي پوهیږي)، ریز (توی کره).

**لنډیز:** ... په اوداسه کي په نیم من اوبو استنجاء وهل کیږي او په نیم من لاسونه او مخ پرېولل کیږي او په پاته نیم من پښې پرېولل کیږي، همدا ډول په غسل کي هم دا خبره زده کړه چي پر خپل سر دوه نیم منه اوبه توی کره...

| | |
|---|---|
| هست این احتیاط درخانه | که بود آب تو به پیمانه |
| دئ دا احتیاط په کور کي | که وي اوبه ستا په پیمانې سره |
| ور تو ای خواجه برلب جوئی | نیست اسراف هرچه میشوئی |
| که چیري ته یې اې خواجه پر غاړه د ویالې | نه دئ اسراف هر څه چي پرېولې |

**د لغاتو حل:** هست (دئ)؛ خانه (کور)؛ پیمانه (اندازه). لب (څنده / غاړه)؛ جوئ (ویاله) میشوئ (پرېولې).

**لنډیز:** ... دا احتیاط په کور کي هغه وخت ضروري دئ چي اوبه په پیمانه او په اندازه سره وي، خو که چیري یو څوک د ویالې یا لښتي پر غاړه وي، بیا چي هر څومره اوبه مصرفوي پروا نه لري.

## باب چهارم در بیان آنچه غسل را واجب میکند

### څلورم باب د هغه شیانو په بیان کي دئ چي غسل واجبوي

| | |
|---|---|
| گر تو خواهی که شرع آموزی | بایدت جد وجهد ودلسوزی |
| که چیري ته غواړې چي شریعت زده کړې | ښایي تا ته هڅه او کوښښ او لېوالتیا |
| آنچه ازوی سوال خواهد بود | نسزد گر ملال خواهد بود |
| هغه څه چي له هغه څخه پوښتنه وي | نه ښایي چي خپگان ترې وسي |
| در طلب کردن حقیقت کار | از خدا شرم دار وشرم مدار |
| په طلب کولو کي د حقیقت د کار | له خدای څخه شرم ولره، له خلګو شرم مه لره |

**د لغاتو حل:** خواهی (غواړې)؛ شرع (شریعت)؛ آموزی (زده کړې)؛ بایدت (ښایي تا ته) جد وجهد (هڅه او کوښښ)؛ دلسوزی (زړه سوی / لېواتیا / رغبت). نسزد (نه ښایي)؛ ملال (خوابدی).

**لنډیز:** څلورم باب د هغو شیانو په بیان کي دئ چي غسل واجبوي، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي که چیري ته غواړې چي شریعت زده کړې، نو باید کوښښ وکړې او ورته لېواله واوسې، د څه په اړه چي په آخرت کي پوښتنه کیږي، د هغو شیانو څخه باید ناخبره پاته نه سې، دیو کار د حقیقت په طلب کولو کي له خلګو څخه مه شرمېږه، شرم باید یوازي له خدای پاک څخه وکړل سي. (د مصنف له دې خبرو

مطلب دا دئ چي د غسل د واجبوونکو شيانو څخه ځيني يو څه داسي چي خلګ يې له پوښتلو او بيانولو څخه شرميږي او ډېرې کسان د همدې شرم له امله له يو عالم څخه پوښتنه نه کوي، يا ډېرې کسان د همدې شرم له امله نورو ته دا شيان نه ورښيي، نو مصنف وايي چي د دې شيانو پېژندل او په پوهېدل ضروري دي، ځکه چي په آخرت د همدې شيانو په اړه پوښتنه کيږي، نو تاسي د دې شيانو په پوښتلو او نورو ته په ورښولو سره مه شرميږئ.)

| | |
|---|---|
| غسل از پنج چیز فرض شود | بر زن و مرد همچو قرض شود |
| غسل له پنځو شيانو څخه فرض کيږي | پر ښځي او سړي باندي په مثال د پور کيږي |
| چون شود پاک زن ز حیض و نفاس | غسل واجب شود بشرع و قیاس |
| کله چي سي پاکه ښځه له حيض او له نفاسه | غسل واجب کيږي په شريعت او په قياس سره |
| هر زنی را که گم شود ایام | غسل باید بهر نماز مدام |
| له هري ښځي څخه چي ورکي سي ورځي | غسل بايد وکړي د هر لمانځه له پاره همېشه |

**د لغاتو حل:** پنج (پنځه)؛ شود (کيږي)؛ زن (ښځه)؛ همچو (په مثال)؛ قرض (پور). حيض (د ښځو مياشتنۍ ناروغي ده چي رحم د پاکېدلو په سبب يېويني جاري کيږي)؛ نفاس (کله چي ښځه ماشوم وزېږوي، تر هغه وروسته يې تر يو څه وخته ويني جاري وي چي دې ته نفاس وايي)؛ شرع (شريعت)؛ قياس (د عقل له مخي د يوه شي ارزول / يو شی له بل سره پرتله کول). زنی (يوه ښځه / هغه ښځه)؛ گم (ورک)؛ ايام (د يوم جمع ده يعني ورځي)؛ مدام (همېشه).

**لنډيز:** مصنف رحمة الله عليه د خپلو خبرو په دوام فرمايي چي غسل له پنځو شيانو څخه پر سړي يا ښځي باندي فرض کيږي: ۱- کله چي ښځه له حيض څخه پاکه سي؛ ۲- کله چي ښځه له نفاس څخه پاکه سي، نو په دې دواړو حالاتو کي غسل د شريعت او قياس له مخي فرض کيږي؛ ۳- کله چي له ښځي څخه د خپل حيض يا نفاس ورځي ورکي سي، نو هر لمانځه ته به غسل کوي...

| | |
|---|---|
| مرد را چون ذکر چنان گردد | که در اندام زن نهان گردد |
| سړي چي کله ذکَر داسي وګرځي | په اندام کي د ښځي پټ وګرځي |

غسل واجب شود ازان حالش | گرچه زان حال نیست انزالش

غسل واجب کېږي له دغه حاله د ده | که څه دغه حال نه وي د انزال د ده

غسل واجب کند جنابت هم | بر زن ومرد ای مدار کرم

غسل واجب کوي جنابت هم | پر ښځي او سړي باندي او د خایه د کرم

**د لغاتو حل:** مرد (سړی)؛ ذکر (د سړي جنسي غړی)؛ گردد (وگرځي)؛ اندام (د بدن غړی، دلته مراد د ښځي شرمځای دئ)؛ نهان (پټ). انزال (د منیو راوتل). جنابت (ناولتیا / چي غسل ورباندي واجب سي)؛ مدار کرم (د کرم مرکز / اضافي جمله ده چي د شعر د نظم له پاره یې کارولې ده او مطلب یې د زده کوونکي مخاطب کول دي).

**لنډیز:** ... ۴- کله چي د سړي ذکر د ښځي په فرج کي پټ سي، نو له دغه حال څخه هم غسل واجبیږي، که څه هم په دې حالت کي انزال نه وي را منځ ته سوی؛ ۵- جنابت هم غسل واجبوي، یعني کله چي سړی یا ښځي انزال سي، که څه هم له کوروالي او جماع پرته وي، پر دواړو غسل واجبیږي.

# باب پنجم در بیان تیمم

## پنځم باب د تیمم په بیان کي

چار چیز ست در تیمم فرض | میدهم مرترا بدانش عرض

خلور شیان دي په تیمم کي فرض | درکوم یې خاص تا لره پوه سه پرې وړاندي

نیت وقصد خاک ای سرور | خاک ازجای پاک ای مهتر

نیت او قصد د خاوري اې سرداره | خاوره له ځای څخه چي پاک وي اې بزرگه

نیت این ست گر نمیدانی | که نمازت مباح گردانی

نیت دا دئ که چیري نه پوهېږې | چي لمونځ خپل روا وگرځوې

**د لغاتو حل:** چار (په اصل کي چهار دئ یعني څلور)؛ تیمم (په خاورو سره له ځانه بې اودسي یا جنابت لیري کول)؛ عرض (وړاندي کول). خاک (خاوره)؛ جای (ځای)؛ نمازت (لمونځ ستا)؛ مباح (روا).

**لنډيز:** د اوداسه او غسل تر بيان وروسته مصنف رحمة الله عليه د تيمم بيان شروع کړ، ويې فرمايل چې پنځم باب د تيمم په بيان کې دئ او په تيمم کې څلور شيان فرض دئ، چې زه يې اوس تا ته وړاندې کوم، تر څو ته ويې پوهېږې: ۱- نيت او اراده د پاکو خاورو؛ ۲- خاورې به له پاک ځای څخه وي. او نيت دا دئ چې ته ځان ته لمونځ يا بل هر عبادت چې وي په همدې تيمم سره روا وګرځوې...

| چون زدی هر دو پنجه را بر خاک | پس بمالش بروی که گردی پاک |
|---|---|
| کله چې ووهې دواړه لاسونه پر خاورو | نو راتېر يې کړه پر مخ چې وګرځې پاک |
| پس دیگر بار پنجه زن در حال | هر دو ساعد بمرفقین بمال |
| وروسته بل وار لاسونه ووهه په دغه حال کې | دواړې لېچې له څنګلو سره په موږه |
| در تیمم فریضه این چار ست | که ترا زین چهار ناچار ست |
| په تيمم کې فرض دا څلور دي | چې ته له دې څلورو څخه ناچاره يې |

**د لغاتو حل:** زدی (چې ته ووهې)؛ هر دو (دواړه) پنجه (لاسونه)؛ بمال (ومږه). زن (ووهه)؛ ساعد (لېچې) مرفقین (څنګلې).

**لنډيز:** ... ۳- کله چې ته دواړه لاسونه پر خاورو ووهې، نو پر مخ يې راتېر کړه تر څو پاک سې؛ ۴- بيا دويم ځل لاسونه پر خاورو ووهې او دواړه لېچې يعني لاسونه له بندونو څخه تر څنګلو پورې په مسحه کړې. نو په تيمم کې همدا څلور شيان دي چې له دې څلورو څخه پرته تيمم نه صحيح کېږي.

| نزد ما شرط نیست استیعاب | در تیمم تو نکته رادریاب |
|---|---|
| په نزد زمو شرط نه دي کنبهېستل | په تيمم کې ته باريکي ترلاسه کړه |
| هرچه آن ناقض وضو باشد | ناقض اندر تیمم او باشد |
| هر څه چې هغه ماتوونکي د اوداسه وي | ماتوونکي په تيمم کې هغه وي |
| وانکه قادر شود بر آب طهور | زو شود درزمان تیمم دور |
| او دا چې قادر سي پر اوبو پاکو | له ده څخه کېږي په همدې حال کې تيمم ليرې |

**د لغاتو حل:** نزد (په نزد / په اند)؛ ما (زموږ)؛ استیعاب (کنبهېستل)؛ نکته (باريکي)؛ دریاب (پيدا کړه).

ناقص (ماتوونکي)؛ قادر (قدرت لرونکی)؛ طهور (پاکي راوستونکي / پاکوونکي)؛ زو (له ده څخه)؛ درزمان (په همدې حال کې)؛ دور (ليري).

**د لغاتو حل:** مصنف رحمة الله عليه د تيمم اړوند بيان زياتوي، فرمايي چې زموږ په نزد په تيمم کې استعاب شرط نه دئ (دا چې تيمم د اوداسه يا غسل قائم مقام دئ او په اوداسه او غسل کې استيعاب شرط دئ، يانې په اوداسه کې د فرضي اندامونو هيڅ يوه برخه وچه نه پاته کېږي او په غسل کې به د ټول بدن هيڅ ځای وچ نه پاته کېږي، نو له دې څخه معلومېږي چې په تيمم کې هم استيعاب شرط دئ، مگر په تيمم کې زموږ په اند استيعاب شرط نه دئ.) دا يوه باريکه او دقيقه نکته ده چې هر څوک نه په پوهېږي، نو نه ځان په پوه کړه. د تيمم ماتوونکي هغه شيان دي چې د اوداسه ماتوونکي دي، مگر په تيمم کې دا شی زيات دئ چې که چېري تيمم کوونکی پاکي اوبه پيدا کړي او په استعمالولو يې قادر وي، نو په دې وخت کې يې تيمم له منځه ځي او ماتېږي.

| هرکه میلی زآب دور بود | این تیمم ورا طهور بود |
|---|---|
| هرڅوک چې يو ميل له اوبو څخه ليري وي | دغه تيمم هغه لره پاکوونکی وي |
| ور بود آب کمتر از میلی | نیست درناروائیش قیلی |
| اوکه چېري وي اوبه نېژدې تر يوه ميل | نسته په ناروا والي کې يې خبری |
| میل در شرع ثلث فرسنگ ست | گر ترا دانش ست وفرهنگ ست |
| ميل په شريعت کې دريمه د فرسنگ ده | که چېري تا لره پوهه وي او عقل وي |
| ثلث فرسنگ هست چارهزار | از قدمهای اشتر رهوار |
| دريمه د فرسنگ ده څلور زره | له گامونو څخه د اوښ لار وهونکي |

**د لغاتو حل:** ميلی (يو ميل)؛ دور (ليري)؛ ور (د واگر مخفف دئ يعني که چېري)؛ کمتر (لږ)؛ قيلی (اختلاف). ثلث (دريمه حصه) فرسنگ (د اوښ د څلورو زرو قدمونو په اندازه واټ او فاصله)شتر(اوښ)

**لنډيز:** مصنف رحمة الله عليه د تيمم ځيني مسائل بيانوي، فرمايي چې تيمم هغه چا ته روا کېږي چې له اوبو څخه د يو ميل په اندازه ليري وي، که چېري تر يوه ميل لږ يا کم ځني ليري وي، بيا تيمم نه ورته روا

کیږي بلکې په اوبو پسې به ورځي. میل په شریعت د فرسنگ درېمه حصه ده او فرسنگ د اوښ د څلور زره گامه په اندازه واټن یا فاصلې ته وایي.

# باب ششم در بیان نماز

## وآن مشتمل ست بر چهار فصل: فصل اول در بیان فریضهای نماز

### شپږم باب د لمانځه په بیان کې

### او دا باب پر څلورو فصلونو مشتمل دئ: لومړی فصل د لمانځه د فرضونو بیان

| | |
|---|---|
| هر که اوطالب لطیفه بود | مقتدایش ابو حنیفه بود |
| هر څوک چې هغه طلب کوونکی د باریکۍ وي | پېشوا د هغه امام ابو حنیفه دئ |
| او در اسلام صوفی وصافی | در شریعت وفی وهم وافی |
| هغه په اسلام کې صوفي او صفاړی دئ | په شریعت کې کامل او هم کافي دئ |
| بشنو از من بیان مذهب او | زانکه صافی ترست مشرب او |
| واوره له ما څخه بیان د مذهب د هغه | ځکه چې ډېر صفا ده طریقه د هغه |
| ضبط کن این دو شش فریضه کنون | شش درون نماز وشش بیرون |
| یاد کړه دا دوه شپږه فرضونه اوس | شپږ دننه په لمانځه کې او شپږ دباندې |

**د لغاتو حل:** طالب (طلب کوونکی / غوښتونکی)؛ لطیفه (باریکي/پاک شی)؛ مقتدا (پېشوا). صوفی (نرم د وړیو په څېر / په تصوف کې داخل)؛ صافی (صفاړی / سپېڅلی)؛ وفی (کامل / بشپړ)؛ وافی (کافي). بشنو (واوره)؛ مذهب (تگلاره)؛ مشرب (طریقه). ضبط (ساتل / ذخیره کول)؛ دوشش (دوه شپږه / دوولس)؛ درون (دننه)؛ بیرون (دباندې).

**لنډیز:** د اوداسه، غسل او تیمم بیانونه پای ته ورسېدل، اوس په شپږم باب کې مصنف رحمة الله علیه د لمانځه بیان شروع کوي، فرمایي چې شپږم باب د لمانځه په بیان کې دئ او پر څلورو فصلونو مشتمل

دئ چي لومړی فصل يې د فرضونو په بيان کي دئ، خو مصنف رحمة الله عليه د لمانځه د فرضونو تر بيان مخکي زموږ د مذهب په اړه څه وضاحت کوي، فرمايي چي زموږ مذهب حنفي دئ او مقتدا او د مذهب پيشوا مو حضرت امام اعظم صاحب دئ، څوک په باريکو او دقيقو مسئلو د پوهېدلو غوښتونکی وي، نو امام ابو حنيفه رحمة الله عليه د ټولو باريکيو ډېر ښه وضاحت کړی دئ، هغه رحمة الله عليه په اسلام کي ډېر مخکښ او ډېر سپېڅلی شخصيت وو او شريعت يې پوره او کافي واضح کړی دئ، تاسي زما څخه د هغه د غوره مذهب بيان واورئ، ځکه چي د هغه طريقه او تګلاره ډېره سپېڅلې او صفا ده.

مصنف رحمة الله د امام صاحب په مذهب دئ او د هغه مذهب له مخي د لمانځه بيان کوي، فرمايي چي په لمانځه کي دوولس فرضونه دي چي شپږ په لمانځه کي دننه او شپږ له لمانځه څخه دباندي دي...

| | |
|---|---|
| تا نمازتو — بانوا گردد | فرض ونفلت هم روا گردد |
| تر څو لمونځ ستا سره له سامانه وګرځي | فرض او نفل دي ټول روا وګرځي |
| آنچه بيرون کنون ترا فرض ست | عرض دارم که موضع عرض ست |
| هغه چي دباندي اوس تا لره فرض دي | عرض لرم چي ځای د عرض دئ |
| نيت ست وطهارت وتکبير | پوشش عورت ومکان طهير |
| نيت دئ او پاکوالی دئ او تکبير | پټول د عورت او ځای پاک |
| غم اسلام بايدت خوردن | روئ هم سوی قبله آوردن |
| غم د اسلام ښايي تا ته خوړل | مخ هم طرف ته د قبلې اړول |

**د لغاتو حل:** تا (تر څو) بانوا (با سامانه)؛ کنون (اوس)؛ موضع (ځای). تکبير (الله أکبر)؛ پوشش (پټول)؛ مکان (ځای)؛ (طهير (پاک). خوردن (خوړل)؛روي(مخ) ؛ سوي(طرف) ؛ آورن (راوړل).

**لنډيز:** ... تر څو چي لمونځ صحيح سي او فرض او نفل ټول دي روا وګرځي. هغه چي له لمانځه دباندي دي لومړی هغه درته وړاندي کوم: ۱- نيت؛ ۲- پاکي؛ ۳- تکبير؛ ۴- د عورت پټول؛ ۵- د ځاي پاکوالی؛ ته بايد د اسلام غم وخورې ۶- او مخ دي د قبلې طرف ته کړې...

ششِ دیگر دراندرون نماز | فرض گیر ونماز کن به نیاز

شپږ نور په دننه کي د لمانځه | فرض وګڼه او لمونځ کوه په عاجزۍ سره

آن قیام وقرائت ست ورکوع | قعده آخرین وسجده خضوع

هغه ولاړه او قرائت دئ او رکوع | ناسته آخیره او سجده د عاجزي

پس برون آمدن فیضه شناس | از نماز ای مدار عقل وقیاس

بیا دباندي راوتل فرض وپېژنه | له لمانځه څخه اې خاوند د عقل او قیاس

**د لغاتو حل:** دیګر (نور)؛ اندرون (دننه)؛ نیاز (عاجزي). قیام (ولاړه)؛ قعده (ناسته)؛ خضوع (عاجزي). پس (وروسته) ؛ برون (دباندي) ؛ آمدن (راتلل)؛ شناس (وپېژنه).

**لنډیز:** ... او هغه شپږ نور چي په لمانځه کي دننه دي، فرض يې وګڼه او لمونځ په عاجزۍ سره کوه، هغه: ١- ولاړه ده؛ ٢- قرائت دئ؛ ٣- رکوع ده؛ ۴- آخیره نا سته ده؛ ۵- سجده ده. ٦- له لمانځه څخه وتل. دا هم د لمانځه له فرضونو څخه وګڼه.

# فصل دوم در واجبات نماز

## دوېیم فصل د لمانځه واجبات

واجبات نمازها هفت ست | زانکه از مصطفی چنین رفت ست

واجبات د لمونځونو اووه دي | ځکه چي له مصطفی څخه همداسي راغلي دي

فاتحه ضم سورهٔ قرآن | در دوئ اول از فریضه بخوان

سورة فاتحه ور سره یو ځای سورت د قرآن | په دوو اولو (رکعتو) کي د فرضو ووایه

لیک اندر تطوع وسنت | سوره با فاتحه مکن ضِنَّت

لېکن په نفلوکي او سنتو کي | سورت له فاتحې سره (په یوځای کولو کي) مه کوه بخل

کافرینش چو اولین باشد | سوره با فاتحه قرین باشد

ځکه چي آخري په مثال د اولو دي | سورت له فاتحې سره یو ځای وي

**د لغاتو حل:** هفت (اووه)؛ چنین (داسي)؛ رفت (راغلي). فاتحه (سورة الفاتحة / الحمد لله)؛ سوره (سورت)؛ بخوان (ووایه). لیک (لېکن / مګر)؛ تطوع (نفل)؛ ضنت (بخل / چوس توب). قرین (ملګری).

**لنډیز:** شپږم باب دویم فصل د لمانځه د واجباتو په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي د لمانځه اووه واجبات دي، ځکه چي رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه همداسي راغلي دي: ۱- الحمد لله ویل؛ ۲- د قرآن کریم یو سورت له الحمد لله سره یو ځای کول د فرضي لمونځونو په لومړنیو دوو رکعتونو کي، البته د سنتو او نفلي لمونځونو په ټولو رکعتونو کي د لومړنیو رکعتونو په څېر سورت ویل کیږي...

| | |
|---|---|
| دربلندی بلند باید خواند | وآنچه پست ست پست باید خواند |
| په په زور والي کي په زوره باید وویل سي | او هغه چي پټ دي پټ باید وویل سي |
| قعدهٔ اول ازوجوبات ست | باز درآخرین تحیات ست |
| ناسته اوله واجباتو څخه ده | بیا په آخیره کي التحیات ده |
| نیز دروتر شد قنوت عیان | باز تعدیل جملهٔ ارکان |
| همداسي په وترو کي سو دعاء قنوت ښکاره | بیا تعدیل د ټولو رکنونو |
| لیک درعید واجب افزاید | زان که تکبیر عید می باید |
| لېکن په اختر کي واجب زیاتیږي | ځکه چي تکبیرونه د اختر ضروري دي |

**د لغاتو حل:** بلند (په لوړ آواز / په زوره)؛ خواند (ویل)؛ پست (په ټیټ آواز / کرار). تحیات (التحیات)؛ وتر (طاق، خو دلته یې مطلب د ماخستن تر لمانځه وروسته درې رکعته لمونځ دئ)؛ قنوت (دعاء قنوت)؛ تعدیل (آرام کول)؛ جمله (ټول)؛ ارکان (رکنونه). عید (اختر)؛ افزاید (زیاتیږي).

**لنډیز:** ... ۳- په کومو لمونځونو کي چي په لوړ آواز قرائت ویل کیږي، په هغو کي په لوړ آواز؛ ۴- او په کومو کي چي په ټیټ آواز ویل کیږي، په هغو کي په ټیټ آواز قرائت ویل واجب دي؛ ۵- لومړۍ ناسته له واجباتو څخه ده؛ ۶- په آخیره ناسته کي التحیات ویل واجب ده؛ ۷- او د رکنونو آرام - آرام کول هم واجب دي. همدا ډول په وترو کي دعاء قنوت ویل او د اخترونو په لمانځه کي تکبیرونه ویل هم له واجباتو څخه دي.

# فصل سوم در بیان سجدهٔ سهو

## دریم فصل د سجده سهوي بیان

| سجدهٔ | سهو | باتلاوت | هم | واجب | آمد | باتفاق | امم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سجده | سهوه | سره له سجده تلاوت | سره هم | واجب | راغلي دي | په اتفاق سره | د امامانو |
| داند | آنکس | که حسبتی | دارد | واندرین | راه | نسبتی | دارد |
| پوهیږي | هغه څوک | چي امید د ثواب | لري | او په دې | لاره کي | مناسبت | لري |
| سجدهٔ | سهو را | بیان | کردن | وآنچه | مشکل | بود عیان | کردن |
| سجده | سهوه لره | بیان | کول | او هغه چي | مشکل | وي ښکاره | کول |
| گر | کسی | فرض را | کند | تاخیر | یاکند | ترک | واجب از تقصیر |
| که چیري | یوڅوک | فرضو لره | وکړي | ځنډ | یا وکړي | پرېښوول | د واجب له کوتاهی څخه |

**د لغاتو حل:** سهو (خطا / غلطي / هېره)؛ تلاوت (د قرآن کریم لوستل، دلته مراد سجده تلاوت ده)؛ امم (د امام جمع ده یعني امامان). داند (پوهیږي)؛ حسبتی (امید لرل)؛ راه (لاره)؛ نسبتی (مناسبت). مشکل (سخت / گران)؛ عیان (ښکاره). تاخیر (ځنډ)؛ ترک (پرېښوول)؛ تقصیر (کوتاهي / بې پروايي).

**لنډیز:** د شپږم باب دریم فصل د سجده سهوي په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي سجده سهوه او سجده تلاوت دواړي د امامانو په اتفاق سره واجب دي، څوک چي د ثواب امید لري، هغه په دې پوهیږي او د سجد سهوي بیانول او هغه څه چي مشکل دي د هغو ښکاره کول له دې لاري سره مناسبت لري، که چیري یو څوک په هېره سره یو فرض وځنډوي یا یو واجب پرېږدي...

| سجدهٔ | سهو را | چو ساز | کند | جبر | نقصان | آن | نماز کند |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سجده | سهوه | چي کله جوړه | کړي | جبران | د نیمگړتیا | د دغه | لمانځه کوي |
| ای | مصلی | بهر دو دست | سلام | گوئی | وآنگه | بیار سجده | تمام |
| اي لمونځ کوونکیٔ! | ودواړو | طرفونوته | سلام | ووایه | او ور پسې | راوړه سجده | پوره |

| اوبتقوی چو بوذر وسلمان | این چنین ست مذهب نعمان |
|---|---|
| هغه په تقوا سره په مثال دابو ذر اوسلمان فارسي وو | دغه دول دئ مذهب د نعمان |
| شرع آموز گرترا هوس ست | ازیکی سهورا دو سجده بس است |
| شریعت زده کړه که چیرې تا لره خواهش وي | له یوې سهوې څخه دوې سجدې بس دي |

**د لغاتو حل:** ساز (جوړ)؛ جبر (جبران)؛ نقصان (نیمگړتیا / کمی). مصلی (لمونځ کوونکی)؛ بیار (راوړه)؛ تمام (پوره). نعمان (د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه نوم دئ)؛ بوذر (ابو ذر رضي الله عنه، یو صحابي دئ)؛ سلمان (سلمان فارسي رضي الله عنه، دی هم یو صحابي دئ). شرع (شریعت)؛ آموز (زده کول)؛ هوس (خواهش).

**لنډیز:** ... نو کله چې سجده سهوه وکړي، دغه لمونځ یې له نقصان څخه خالي کیږي او پوره کیږي. د سجده سهوې د کولو طریقه داسې ده چې دواړو خواو ته سلام وگرځوه او د لمانځه د سجدو په څېر دوې سجدې وکړه. دا د امام اعظم صاحب مذهب دئ چې نوموړی په تقوی کې د ابو ذر او سلماني فارسي رضي الله عنهما په څېر وو. د یوې سهوې له پاره دوې سجدې بس دي، که ته غواړې نو شریعت زده کړه...

| سهو او سهو مقتدی باشد | هر امامی که مهتدی باشد |
|---|---|
| سجده سوه د هغه سجده د مقتدي وي | هر امام چې رهنما وي |
| سجده او نه سهو معتادست | مقتدی را که سهو افتاد ست |
| سجده د ده سهوه نه ده معمول | مقتدي لره چې سهوه واقع سي |
| طاعت او خدای بپذیرد | سهو اورا امام برگیرد |
| طاعت د ده خدای قبلوي | سهوه د ده امام نیسي |

**لغاتو حل:** امامی (یو امام / هغه امام)؛ مهتدی (پېشوا / رهنما)؛ مقتدی (هغه چې د امام شا ته ولاړ وي او له امام سره په لمانځه مې شریک وي). بپذیرد (قبلوي).

**لنډیز:** ... که چیرې امام سهوه سي، نو د ده سجده سهوه مقتدیانو لره هم کفایت کوي له هغوی څخه جلا سجده سهوه نه غواړي او که چیرې لهِ مقتدي څخه سهوه وسي، نو د ده څخه سهوه سجده نه غواړي،

خکه چي امام يې سهوه نيسي او د ده طاعت خدای تعالی قبلوي...

## فصل چهارم در بیان سنتهائی نماز

### څلورم فصل د لمانځه د سنتونو بيان

| | |
|---|---|
| سنت اندر نماز آمد بیست | ده ازان قولیست وده فعلیست |
| سنت په لمانځه کي راغلي دي شل | لس له هغو څخه قولي دي او لس فعلي دي |
| آنچه قولیست هست استفتاح | بعد ازان در اعوذ گشت فلاح |
| هغه چي قولي دي (هغه) ده سبحانك اللهم | وروسته تر هغه په اعوذ بالله کي سوه بريا |
| زان سپس تسمیه ست وآمین ست | سمع الله گفتن ازدین است |
| تر هغه وروسته بسم الله ده او آمين دئ | سمع الله لمن حمده ويل له دين څخه دي |
| سمع الله امام پردازد | مقتدی ربنا لک آغازد |
| سمع الله لمن حمده امام مشغوله کوي | مقتدی به ربنا لک الحمد شروع کړي |

**د لغاتو حل:** آمد (راغلي دي) بيست (شل)؛ ده (لس). استفتاح (شروع کول)؛ اعوذ (اعوذ بالله)؛ فلاح (بريا / کاميابي). سپس (وروسته پسي)؛ تسميه (بسم الله)؛ گفتن (ويل). پردازد (مشغوله کوي)؛ آغازد (شروع کوي).

**د لغاتو حل:** مصنف رحمة الله فرمايي چي په لمانځه کي شل سنتونه راغلي دي چي لس له هغو څخه قولي دي او لس يې فعلي دي، هغه چي قولي دي: ۱- سبحانك اللهم ويل دي؛ ۲- اعوذ بالله ويل دي؛ ۳- بسم الله ويل دي؛ ۴- آمين ويل دي؛ ۵- سمع الله لمن حمده ويل دي. سمع الله لمن حمده امام وايي؛ ۶- ربنا لك الحمد مقتدی وايي...

| | |
|---|---|
| باز تسبیح دررکوع و سجود | نیز تکبیر درهبوط وصعود |
| بيا تسبيح په رکوع کي اوپه سجده کي | همداسي تکبير په کښته کېدلو اوپورته کېدلوکي |
| فاتحه دردوئی اخیر ازفرض | گیر سنت ولی مگیر ازفرض |
| سورة فاتحه په دوو آخيرو رکعتونوکي د فرضو | وګڼه سنت مګر مه يې ګڼه له فرضو |

| پس | برون | آمدن | بلفظ | سلام | نزوما | سنت | ست | در اسلام |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وروسته | دباندي | راوتل | په لفظ سره | د سلام | په نزد زموږ | سنت | دئ | په اسلام دي |

**د لغاتو حل:** باز (بيا)؛ نيز (همداسي)؛ هبوط (کښته کېدل)؛ صعود (پورته کېدل). ولی (لېکن / مگر). برون (باندي)؛ آمدن (راتلل)؛ نزد ما (زموږ په اند).

**لنډيز:** ... ۷- د رکوع او د سجدې تسبيح ويل دي؛ ۸- د پورته کېدلو او کښته کېدلو په وخت کي تکبير ويل دي؛ ۹- د فرضي لمانځه په دوو آخرو رکعتونو کي الحمد لله ويل سنت وگڼه، فرض يې مه گڼه. ۱۰- له لمانځه د سلام په لفظ سره وتل هم زموږ په اند په اسلام کي سنت دي.

# سنتهائی فعلی نماز

## د لمانځه فعلي سنت

| سنت | فعل | در نماز | ده ست | یاد گیرش | اگر ترا | شره | است |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سنت | فعلي | په لمانځه کي | لس دي | ياد يې ونيسه | که چيري تا لره | حرص | وي |
| هست | رفع اليدين | تا | اذنين | وانگه | برجائ | سجده | وار وعين |
| دئ | پورته کول د لاسونو | تر | غوږونو پوري | په دغه وخت کي | پرځای | د سجدې | ولره نظر |
| بعد ازان | دست | راست | رابرچپ | بنهی | زیرناف | بهر | ادب |
| وروسته تر دې | لاس | راسته | پر چپه لاس | کښېږده | لاندي تر نامه | له پاره | د ادب |
| مر | زنان را | بجملهٔ | اقوال | دست | برسینه | به بود | همه حال |
| خاص | ښځو لره | په ټولو | اقوالو کي | لاس | پر سينه | ښه وي | په هر حال کي |

**د لغاتو حل:** شره (د زدکړي حرص)؛ رفع اليدن (پورته کول د لاسونو)؛ اذنين (غوږونه)؛ عين (نظر). بنهی (کښېږده)؛ بهر (له پاره). همه حال (ټولو حالاتو کي / په هر حال کي) زيرناف(ترنامه لاندي).

**لنډيز:** د لمانځه لس قولي سنتونه پای ته ورسېدل اوس يې مصنف رحمة الله عليه په فعلي سنتونو شروع وکړه، ويې فرمايل چي په لمانځه کي لس فعلي سنتونه دي، که غواړې چي زده يې کړې، نو زه يې درته

وایم ته یې یاد کړه: ۱- تر غوږونو پورې د لاسونو پورته کول؛ ۲- په ولاړه کې د سجدې ځای ته کتل؛ ۳- د ادب له پاره تر نامه لاندې راسته لاس پر چپه لاس نیول. البته د ښځو له پاره په ټولو اقوالو کې لاسونه پر سینه نیول سنت دي...

دست بر رکبه در رکوع بنه | پشت همواره دار کوز منه

لاس پر ځنګون په رکوع کې کښېږده | شا سیده ولره کږه یې مه ږده

سجده آرید درمیان دو کف | شکم از ران دور ودست از دف

سجده راوړې په منځ کې د دوو ورغوو | نس له ورون څخه لیرې او لاس له بغل څخه

نیز برپای چپ نشست کنی | سر انگشت سوی قبله کنی

همداسې پر پښه چپه باندې ناسته کوه | سرونه د ګوتو طرف ته د قبلې کوه

باز گردان تو روی وقت سلام | بیمین ویسار خویش تمام

بیا وګرځوه ته مخ په وخت کې د سلام | راسته طرفته او چپه طرف خپل پوره

**د لغاتو حل:** رکبه (ځنګون)؛ بنه (کښېږده)؛ پشت (شا)؛ همواره (سیده / برابره)؛ کوز (کږه)؛ منه (مه ږده). آرید (راوړې)؛ میان (منځ)؛ کف (ورغوی / لاس)؛ شکم (نس)؛ ران (ورون)؛ دف (بغل). نشست (کښېنستل)؛ انگشت (ګوتې). گردان (ګرځول / وګرځوه)؛ یمین (راسته طرف)؛ یسار (چپه طرف).

**لنډیز:** ... ۴- په رکوع کې لاسونه پر ځنګنونو ایښوول؛ ۵- ملا یا شا سیده نیول چې کږه نه وي؛ ۶- په سجده کې مخ د دواړو لاسونو په منځ کې ایښوول؛ ۷- نس له ورانه څخه لیرې کول؛ ۸- لاسونه له بغلونو څخه لیرې نیول؛ ۹- پر چپه پښه باندې کښېنستل او د ګوتو سرونه د قبلې طرف ته کول؛ ۱۰- د سلام په وخت کې مخ راسته او چپه طرف ته اړول...

گر کسی برتو شبهیت اندازد | مستحب را ز سنت انگارد

که چیرې یو څوک پر تا باندې شبه وغورځوي | چې مستحب له سنت څخه انګېرې

ای دلت پُر زنور وز حکمت | مستحب دور نیست از سنت

(نو) اې! چې زړه ستا ډک له نور او له حکمت | (نو) مستحب لیرې نه دئ له سنت څخه

| | |
|---|---|
| بعد ازان هرچه هست اداب ست | یادگیرش که نسخه کمیاب ست |
| وروسته تر دې هر څه چې دي آداب دي | یاد یې ونیسه چې نسخه کمه پیدا کېدونکې ده |

**د لغاتو حل:** کسي(ځوک)شبهیت (شک / شبهه)؛ اندازد (وغورځوي)؛ انگارد (انگېرې / گڼي). کمیاب (کمه پیدا کېدونکې / قیمتي).

**لنډیز:** ... که چیرې ځوک تا په شبه کې وغورځوي چې مصنف مستحبو ته سنت وایي، ځکه دا شیان سنت نه دي، بلکې مستحب دي، نو اې له نور او حکمته ډک زړه لرونکې! مستحب له سنتو څخه لیرې نه دي. له دې څخه ماسېوا چې نور شیان دي هغه ټوله آداب دي، یاد یې ولره ځکه چې دا ډېر اړین او ضروري معلومات دي.

# باب هفتم در نمازهای فرائض شباروزی

## اووم باب په شپه او ورځ کې د فرضي لمونځونو بیان

| | |
|---|---|
| آنچه فرض ست در شبا روزی | هفده رکعت بود گر آموزی |
| هغه چې فرض دي په شپه او ورځ کې | اوولس رکعته دي که یې زده کوې |
| دو بصبح وچهار پیشین ست | چار دروقت عصر تعیین ست |
| دوه په سهارکي او څلور په ماپښین کي دي | څلور په وخت کي د ماځیگر ټاکل سوي دي |
| سه بشام وچهار در خفتن | زین نکوتر نمی توان گفتن |
| درې په ماښام کي او څلور په ماخستن کي | تر دې یې ډېر ښه نه سي کېدای ویل |
| وتر از واجبات می دارند | برهمه واجب ست بگذارند |
| وتر له واجباتو څخه گڼل کیږي | پر ټولو واجب دي اداء دي یې کړي |

**د لغاتو حل:** هفتم (اووم)؛ شباروز (شپه او ورځ / شواروز). هفده (اوولس). صبح (سهار)؛ پیشین (ماپښین)؛ چار (څلور)؛ عصر (ماځیگر)؛ تعیین (ټاکل سوي / معین سوي). شام (ماښام)؛ خفتن (ماخستن)؛ نکو(ښه ) تر(ډیر) گفتن (ویل). دارند (لري )گزارند (اداء کول).

**لنډیز:** د نام حق اووم باب د ورځې او فرضې لمونځونو په بیان کې دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چې په ورځ او شپه کې فرضې لمونځونه اوولس رکعته دي چې دوه (۲) په سهار کې دي، څلور (۴) په ماپښین کې دي، څلور (۴) په ماخیګر کې دي؛ درې (۳) په ماښام کې دي او څلور (۴) په ماخستن کې دي او تر دې په ښه ډول نه بیانیږي. یعنې په ډېر ښایسته او لنډ ډول مې بیان کړه. وتر له واجباتو څخه او پر ټولو واجب دي.

## باب هشتم در بیان سنتهائی مؤکدۀ شباروزی

### اتم باب د شپې او ورځې د مؤکد سنتونو په بیان کې

| | |
|---|---|
| علما گفته اند بی شبهت | هست سنت دوازه رکعت |
| عالمانو ویلي دي بې له شکه | (چې) دي سنت دوولس رکعته |
| شش به پیشین گزار دو بسحر | دو پس از شام و دو بخفتن در |
| شپږ په ماپښین کې اداء کړه دوه په سهارکې | دوه وروسته تر ماښام او دوه په ماخستن کې |
| سنت خالص صلوات این ست | آنچه هست از مؤکدات این ست |
| سنت خالص لمونځونه دا دي | هغه چې دي له مؤکداتو څخه دا دي |
| غیر ازین هرچه هست نافله هست | خواجۀ ما امیر قافله هست |
| ماسیوا له دې چې هرڅه دي نفل دي | سردار زموږ امیر د قافلې دئ |

**د لغاتو حل:** هشتم (اتم)؛ مؤکده (ټینګ / محکم)؛ بی شبهت (بې له شکه)؛ دوازده (دوولس)؛ پس (وروسته ) خفتن (ماخستن ) شش (شپږ)؛ گزار (اداء کړه)؛ سحر (سهار)؛ صلوات (د صلوة جمع ده یعنې لمونځونه)؛ مؤکدات (د مؤکدة جمع ده یعنې ټینګ). نافله (نفلي). غیر (ماسیوا)

**لنډیز:** اتم باب د ورځې او شپې د سنت مؤکده لمونځونو په بیان کې دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چې علمانو ویلي دي چې په ورځ او شپه کې دوولس رکعته سنت مؤکد دي: شپږ (٦) په ماپښین کې، دوه (۲) په سهار کې، دوه (۲) تر ماښام وروسته او دوه (۲) په ماخستن کې. خالص سنت لمونځونه چې

له مؤکداتو څخه دي همدا دي، پرته له دې څخه نور ټول لمونځونه نفلي دي.

# باب نهم در بیان روزه ماه رمضان المبارک

## نهم باب د رمضان المبارک د میاشتي د روژې بیان

| | |
|---|---|
| نیست در حکم شرع گردانی | روزه جز قهر نفس شهوانی |
| نه سته په حکم کي د شریعت کي پوهېږې | روژه ماسېوا د قهر د نفس شهواني |
| از جماع وشراب دور شدن | وز همه خوردنی نفور شدن |
| له جماع او چیښناک څخه لیري کېدل | او له ټولو خوراکونو څخه نفرت کول |
| فرض دان جمله روزه رانیت | تا بیابی زروزه امنیت |
| فرض وبوله ټولو روژو لره نیت | تر څو پیدا کړې له روژې څخه امید |
| نیت روزه گر ادا نبود | در قضا جز بشب روا نبود |
| نیت د روژې که چیري اداء نه وي | په قضاء کي ماسېوا له شپې څخه روا نه دئ |

**د لغاتو حل:** جز (ماسېوا)؛ قهر (غوسه)؛ جماع (کوروالی)؛ شراب (چیښنل)؛ خوردنی (خوراکونه)؛ نفور (نفرت). دان (وبوله)؛ روزه (روژه)؛ شب (شپه).

**لنډیز:** نهم باب د مضان د میاشتي د روژې په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي که ته پوهېږې په شریعت کي روژه یوازي د نفس ځپل او ترټل دي، روژه له خوراک او چیښناک او همدا ډول له کوروالي څخه ځان ساتلو ته وایي. د روژې له پاره نیت فرض دئ، ځکه په دې سره له روژې څخه امید پیدا کېږي. روژه که چیري ادائي نه وي بلکي قضائي وي نو نیت به یې د شپې له خوا کوي، که د شپې نیت ونه کړي، قضاء یې نه صحیح کېږي...

| | |
|---|---|
| لیک مر وقتی ونوافل را | تا به پیش اززوال هست روا |
| لېکن خاص وختي او نوافلو لره | مخکي تر زوال دئ روا |

همچنین گر خلل طلب نکنی | نیت روزه جز بشب نکنی

همدغسي که چیري ګډوډي طلب نه کړې | نیت د روژې ماسپوا له شپې څخه مه کوه

مگس وپشه در گلو چو پرید | نیست نقصان روزه تو پدید

مچ او غوماشه په ستوني کي چي کله والوزي | نه دئ نقصان د روژې ستا ظاهر

گرکسی رگ زد وحجامت کرد | می نشاید ور املامت کرد

که چیري یو څوک رګ ووهي او حجامت وکړي | نه ښایي چي هغه ملامت کړل سي

**د لغاتو حل:** لیک (مگر / لېکن)؛ وقتی (د وخت / وختي)؛ نوافل (نفلي). خلل (ګډوډي). مگس (مچ)؛ پشه (غوماشه)؛ گلو (ستونی / حلق)؛ پردید (والوزي)؛ پدید (ظاهر). حجامت (وینه کښل).

**لنډیز:** ...لېکن که چیري روژه وختي یعني د ورژې د میاشتي ادائي وي یا نفلي وي، بیا یې نیت د ورځي د زوال تر وخته روا دئ. خو که چیري ته کوم خلل او ګډوډي نه غواړې نو ښه دا ده چي د هر ډول روژې نیت د شپې له خوا وکړې. د روژاتي په ستوني که مچ یا غوماشه ننوزي، ورژې ته یې زیان نه رسوي، همدا ډول که څوک رګ ووهي او وینه وکاږي، د هغه روژې ته هم کوم ضرر نه رسیږي...

نمک وسرکه گز دهان بچشید | روزه باقیست گر فرو نکشید

مالګه او سرکه چي په خوله وڅکل سي | روژه باقي ده که چیري لاندي نه کړي تېره

روزه باقی بود ولی مکروه | از کراهت مباش بی اندوه

روژه به باقي وي لېکن مکروه | له مکروه والي څخه مه اوسه بې اندېښنې

ور کنی مسح روغن وسرمه | بر سر وچشم نیستت جرمه

که چیري کړې مسحه روغن او رانجه | پر سر او سترګو نه سته پر تا کوم جرم

نان که از بهر طفل می خایند | علما اندرین چه فرمایند

ډوډۍ چي له پاره د ماشوم وژوول سي | عالمانو په دې کي څه ویلي دي

**د لغاتو حل:** نمک (مالګه)؛ دهان (خوله)؛ بچشید (وڅکل سي / خوند یې وکتل سي)؛ فرو (لاندي /

کبنته)؛ نه کشید (کش نه کړل سي). ولی (لېکن)؛ مباش (مه اوسه)؛ بې اندوه (بې فکره / بې اندېښنې). روغن (غوړي)؛ سُرمه (رانجه)؛ چشم (سترګي)؛ جرمه (ګناه). نان (ډوډی)؛ طفل (ماشوم / کوچنی)؛ خایند (ژوول)؛ اندرین (په دي کي ) ؛ فرمایند (فرمایي / وایي).

**لنډیز:** ... مالګه او سرکه که چیري په ژبه وڅکل سي یعني خوند یې وکتل سي، نو که چیري لاندي کبنته ستوني ته تېر نه کړل سي، روژه نه ماتېږي، البته مکروه ده او له مکروه والي څخه یې مه بې غمه کېږه. او که چیري سر غوړ کړل سي یا سترګي په رنجو توري کړل سي، روژې ته کوم زیان نه رسوي. که چیري د ماشوم له پاره د هغه مور په خوله کي ډوډی یا کوم بل خوراکي شی وژویي، علماء کرام په دې اړه څه فرمایي؟...

| | |
|---|---|
| گر ضرورت بود روا باشد | بی ضرورت چنین خطا باشد |
| که چیري ضرورت وي روا ده | بې ضرورت همداسي خطا ده |
| بفراموشی ارکنی وخوری | هست هردوترا هنی ومری |
| په هېره سره چي (جماع) وکړې خوراک وکړې | دي دواړه تا لره مبارک او خوش هضمه |
| روزه تست همچنان باقی | گر تو سیری وگرتو مشتاقی |
| روژه ستا ده همداسي باقي | که چیري ته موړ یې او که چیري ته شوقمند |
| ور به قصد ست خوردن وکارت | لازم آید قضا وکفارت |
| که چیري په قصد سره وي خوراک او جماع ستا | لازمه راځي قضاء او کفاره |

**د لغاتو حل:** ضرورت (اړتیا)؛ فراموشی (هېره)؛ هنی (مبارک)؛ مری (خوندور / خوش مزه). سیر (موړ)؛ مشتاق (شوقمند، مطلب یې وږی او تږی دئ). خوردن (خوراک)؛ کارت (کار ستا، مطلب یې جماع یا کوروالی دئ).

**لنډیز:** ...مصنف رحمة الله علیه مخکي سوال کړی وو چي که ماشوم د هغه مور په خوله کي ډوډی ور وژویي د دې څه حکم دئ؟ په جواب یې فرمایلي دي چي که چیري اړتیا او ضرورت وي، یعني ماشوم یې له دا ډول خوړو څخه بل څه نه خوري یا وږی پاته کیږي، بیا پروا نه لري، خو له اړتیا او ضرورت پرته

دا کار سم نه دئ. که چیري ته په هیري سره کوروالی وکړې، یا خوراک او چیښاک وکړې، نو په دې سره ستا روژې ته زیان نه رسیږي او دا ستا له پاره یو مېلمستیا ده، دا توپیر نه لري چې که چیري په دغه حالت کې ته وږی او تږی یې او که موړ یې، خو که چیري په قصده سره دا کار وکړې یا خوراک او چیښاک وکړې، بیا پر تا باندې هم د روژې قضاء او هم کفاره لازمیږي...

| | |
|---|---|
| گر خوری آنچه زو غذا نبود | بر تو لازم بجز قضا نبود |
| که څه وخورې هغه چې له هغه څخه غذا نه وي | پر تا په لازم ماسېوا له قضاء څخه (بل څه) نه وي |
| همچو سنگ وکلوخ وآهن وروی | نبود زین قِبَل گِل سرشوئ |
| په مثال د ډبرې لوټې اوسپنې او رویي | نه ده له دې ډول څخه خټه د سر پرېولو |
| در تطوع اگر شروع کنی | پس رجوع از برای جوع کنی |
| په نفلي روژه کې که چیري شروع وکړې | وروسته رجوع له پاره د لوږې وکړې |
| تا توانی اداش باید کرد | نزد نعمان قضاش باید کرد |
| ترڅو ستا وس وي اداء یې باید وکړل سي | په نزد دنعمان قضاء یې باید وکړل سي |

**د لغاتو حل:** همچو (په مثال)؛ سنگ (ډبره)؛ کلوخ (لوټه)؛ آهن (وسپنه)؛ روی (رویي، یو ډول فلز دئ)؛ گِل (ختې)؛ سرشوئ (سر پرېولونکی / هغه چې سر ورباندې پرېولل کیږي). تطوع (نفل)؛ رجوع (پر شا تګ / بیرته ګرځېدل)؛ جوع (لوږه) ؛ نعمان (امام صاحب).

**لنډیز:** ... که چیري ته یو داسې شی وخورې چې له هغه څخه غذا نه ترلاسه کیږي، نو روژه دې ماتیږي، قضاء در واجبیږي خو کفاره نه سته؛ لکه ډبره، لوټه، وسپه، رویي او داسې نور... البته هغه خټه چې سر ورباندې پرېولل کیږي، له دې ډول څخه نه ده، بلکې د هغې خوړلو سره کفاره هم لازمیږي. که چیري نه په نفلي روژه شروع وکړې، خو وروسته یې د لوږې یا تندې له امله بیرته ماته کړې، نو باید قضاء یې راوګرځوې، ځکه چې د امام صاحب په نزد قضاء واجبیږي...

# باب دهم در بیان کفاره روزه رمضان

## لسم باب د رمضان د روژې د کفارې بیان

گر کسی قصد کرد در خوردن | به نهار ومجامعت کردن

که چیرې یوچا قصد وکړ په خوراک کي | په ورځ کي او جماع یې وکړه

شصت مسکین طعام باید داد | یایکی بنده کردنش آزاد

شپېتو مسکینانو ته خوراک باید ورکړي | یا یو غلام کړي آزاد

یا دو مه روزه پیاپی دار | تا شوی ازحیات برخوردار

یا دوې میاشتي روژه پر له پسې ونیسه | تر څو سې له ژوند څخه ګټه اخیستونکی

**د لغاتو حل:** نهار (ورځ)؛ مجامعت (جماع یې کوروالی). شصت (شپېته)؛ طعام (خواړه)؛ دو (دوه / دوې)؛ مه (میاشت). پیاپی (پر له پسې)؛ حیات (ژوند)؛ برخوردار (برخمن / ګټه اخیستونکی).

**د لغاتو حل:** ... که چیري یو څوک په قصده په روژه کي د ورځي خوراک وکړي یا جماع وکړي، نو کفاره یې دا ده چي شپېته مسکینان به مړوي یعني دوډۍ به ورکوي، یا به یو غلام آزادوي او یا به دوې میاشتي پر له پسې او بې له څنډولو ژوه نیسي، تر څو له ژونده خوند واخلي.

# خاتمه

## پایلامه

از برائی تو این قدر گفتم | یاد گیرش که مختصر گفتم

له پاره ستا دغه اندازه ما وویل | یاد یې ونیسه چي لنډ ما وویل

هرکه این را بصدق برخواند | واجب وفرض ونفل راداند

هر څوک چي دا په ریښتیا سره ووایي | واجب، فرض او نفل به وپېژني

| | |
|---|---|
| نود وسه برفت وشش صد سال | از وفات رسول تا امسال |
| درو نیوي تېر سوه او شپږ سوه کاله | له وفات څخه د رسول ص تر دې کاله |
| نیمه از جمادی الاول | بود کین نظم گشت مستکمل |
| نیمایي د جمادي الاول | وه چې دا نظم سو پوره |
| رحمت حق نثار خواننده | باز گوئنده ورساننده |
| رحمت د خدای دي وورېدونکی پر ویونکي وي | بیا پر ویونکي (جوړوونکي) او رسوونکي |

**د لغاتو حل:** این قدر (دا اندازه)؛ گفتم (ومي ویل)؛ مختصر (لنډ). بصدق (په رښتینولی سره). خواند (ووایي / ولولي)؛ داند (پوهیږي). نود (نیوي)؛ سه (درې)؛ شش (شپږ)؛ صد (سل)؛ سال (کال)؛ امسال (دا کال). نثار (وورېدونکی)؛ خواننده (لوستونکی / ویونکی)؛ گوئنده (جوړوونکی)؛ رساننده (رسوونکی).

**لنډیز:** د نام حق د کتاب موضوعات پای ته ورسېدل په پای کي مصنف رحمة الله علیه د خاتمې په ډول وفرمایل: تا ته چي په همدې اندازه لنډ بیان وکړ، ته یې یاد وساته. څوک چي دا کتاب په رښتینولی سره ولولي، نو فرض، واجب نفل او داسي نور دېر څه به وپېژني. د جمادي الأول د میاشتي نیمایي وه چي دا نظم (شعر) مي بشپړ کړ. پر هغه چا دي د الله پاک رحمتونه وي چي دا نظم لولي، بیا پر هغه چي جوړ کړی یې دئ او بیا پر هغه چي تر نورو پوري یې رسوي.

د نام حق پای

# ما قال استاذي

پښتو شرح

# د پنـــج گـنج

د پنج گنج دریيم کتاب

# محمود نامه

مصنف: سلطان محمود غزنوي

# محمود نامه

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**د زيات مهربان پوره رحم لرونكي الله په نامه**

دا كتاب چي د محمود نامې په نامه دئ، د شعرونو يا نظمونو يو ټولګه ده، د دې ټولګي د ليكوال يا مصنف په اړه د علماؤ إختلاف دئ، ځيني وايي چي سلطان محمود غزنوي دئ، ځيني د سلطان محمود غزنوي يو غلام (اياز) د دې ټولګي ليكوال ګني او ځيني نور بيا وايي دا ټولګه يوه بل سپيڅلي شخص ليكلې ده. په هر صورت هر چا چي ليكلې وي، ډېره غوره او په زړه پوري ټولګه ده او ډېره ارزښتناكه او د اعتبار وړ ده تر دي چي د پنج ګنج په پنځو كتابونو كي يې دريېم ځای خپل كړی دئ.

د پنج ګنج د نورو كتابونو پر خلاف د دې ټولګي يا كتاب محوري موضوع پر تعليم او تعلم باندي نه ده مشتمله، بلكي دا يو عشقي ټولګه ده چي د شاعر د زړه د عشق او محبت څرګندونه پكښي سوې ده، البته دا خبره د يادوني وړ ده چي كه څه هم د الفاظو له ظاهر څخه داسي ښكاري چي دا اشعار د مجازي معشوق په ياد او ستاينه كي ويل سوي وي، لېكن كه يې څوک معنی ته ځير سي، نو معلوميږي چي دا اشعار د حقيقي او معنوي معشوق (الله جل جلاله) په ياد او ستاينه كي ويل سوي دي، چي دا د شاعرانو يو سبک او تګلاره ده چي په ظاهري الفاظو كي يادوي يو څه خو په اصل كي يې مطلب بل څه وي.

د دې اشعارو شاعر خپل دا شعرونه ډېر په دقيق انداز سره د حروف هجا پر ترتيب ليكلي دي، يعني ټوله يو دېرش (۳۱) شعرونه دي چي هر شعر يې اووه – اووه بيته لري او د هر شعر وروستی قافيه يې د حروف هيجا پر ترتيب جوړه ده، يعني څه ډول چي د فارسي الف باء يو دېرش توري لري، نو همداسي يې دا شعرونه هم يو دېرش ليكلي دي؛ د بېلګي په توګه د لومړي شعر ټوله بيتونه په الف سره پای رسېدلي دي؛ لكه :"لاله را" د دويم شعر ټوله بيتونه په بې سره پای ته رسېدلی دئ؛ لكه: "نقاب" د دريېم شعر ټوله بيتونه

په پې سره پای ته رسېدلي دي؛ لکه: "وگاه چپ" او...

یادونه: د محمود نامې د بیتونو ژباړه مو د دې مجموعې د نورو کتابونو غوندې تکی په تکی نه ده کړې، بلکې تر هر بیت لاندې د هغه بیت روانه ترجمه لیکلې ده، دا ځکه چې د دې بیتونو تکی په تکی ترجمې ته کوم خاص ضرورت او اړتیا نه وه.

| | |
|---|---|
| ای داغ بر دل از غم خال تو لاله را | شرمنده ساخت آهو چشمت غزاله را |
| اې چې ستا د خال له غمه څخه د گل لاله پر زړه داغ دئ | ستا هوسی غوندې سترگو هوسی شرمنده کړه |
| از انفعال لعل لبت لاله در چمن | دیگر بدست خویش نگیرد پیاله را |
| ستا د سرو شونډو له شره گل لاله په چمن کې | بیا به وا نه خلي په خپل لاس کې پیاله |
| آگه نگشت شاهد گل گرچه صد هزار | بلبل ز روئ درد کشد آه وناله را |
| د گل عاشق خبر نه سو که څه هم سل زره | بلبلان د درد له وجې آه او فریاد کوي |
| آمد برون بگر درخت خط عنبرین | کس گرد مه ندید بدینگو نه هاله را |
| ستا د مخ پر شاوخوا باندې عنبرین خط راغلی | چا د سپوږمۍ پر مخ باندې داسې دائره نه ده لیدلې |

**د لغاتو حل:** داغ (تپ / د زخم پاتې شونې نښه)؛ لاله (گل لاله، یو ډول گل دئ)؛ ساخت (جوړ کړ)؛ آهو (هوسۍ)؛ غزاله (هوسۍ). انفعال (شرمیندگي)؛ لعل (سره / سور)؛ لب (شونډې). شاهد (لیدونکی / محبوب، مراد ښځې معشوق دئ)؛ آه (فریاد)؛ ناله (زگېروی / فریاد / ژړا). عنبر (یو ډول خوشبویي ده)؛ مه (سپوږمۍ)؛ هاله (دائره).

**لنډیز:** دا د دې تولگې لومړی شعر دئ چې ټول بیتونه یې د فارسي الف باء په لومړي توري یعني الف سره پای ته رسېدلي دي. دلته شاعر د خپل معشوق ستاینه کوي او په معنوي الفاظو سره معشوق ته په خطاب کې وایي چې ستا خال د گل لاله (چې یو ډول ښکلی گل دئ) پر زړه د شرمیندگۍ داغ جوړ کړی دئ، ځکه ستا خال تر هغه ډېر ښکلی دئ. او ستا هوسۍ ډوله سترگو هوسۍ شرمینده کړه، ځکه ستا سترگې د هغې تر سترگو ډېرې ښکلې او ښایسته دي. ستا د سرو شونډو له شرمه به گل لاله بیا هیڅ وخت په چمن کې پیاله په لاس ونه گرځي. سره له دې چې زرگونه بلبلان له عشق او درده چیغې وهي،

بیا هم د گل معشوق هیڅ نه خبرېږي. ستا د مخ پر شاوخوا باندې داسې ښکلې دائره او خط راغلی چې چا د سپوږمۍ پر مخ باندې هم نه دئ لیدلی...

آسان زخوان وصل توکس بهرهٔ نیافت — مشکل توان گرفت بدست این نواله را

ستا د وصل له سترخانه چا په آسانۍ سره برخه نه موندلې — په سختۍ سره به ترلاسه کې دا گوله

اوصاف گل زبلبل بیدل توان شنید — چون مثل او نخواند کسی این رساله را

د گل صفتونه له بېدل بلبل څخه باید واورېدل سي — څکه چي هیچا دهغه په شان دا رساله نه ده لوستلې

آزرده کی کند دل محمود را آیاز — نیکو کند مطالعه گر این قباله را

ایاز به کله د محمود زړه خواشینی کړي — که چیري دغه قباله په ښه ډول ولولي

**د لغاتو حل:** آسان (په آسانۍ سره)؛ خوان (سترخان)؛ وصل (یو ځای والی)؛ بهره (برخه / حصه)؛ نواله (گوله). اوصاف (صفتونه / ستاینې)؛ بیدل (بې زړه، مراد عاشق دئ او بې زړه څکه ورته وایي چي زړه بې معشوق ځني وړی وي)؛ رساله (کوچنی کتاب). آزرده (زهیر سوی / خفه سوی)؛ مطالعه (لوستل / په خیر کتل)؛ قباله (سند / د بیع تړون لیک / هغه کاغذ چي د سند په توگه وړاندې کېږي).

**لنډیز:** ... د معشوق ستاینې ته دوام ورکوي او له هغه څخه د گیلې په توگه وایي: هیچا ستا د وصل له سترخانه څخه په آسانۍ سره برخه نه ده ترلاسه کړې، دا گوله به په سختۍ سره ترلاسه کېږي. د گل ستاینه باید له عاشق بلبل څخه واورېدل سي، څکه چي دا رساله د هغه په څېر هیچا نه لوستلې. نو که چېرې ایاز دا قباله یا سند په ښه توگه مطالعه کړي، نو بیا به کله د محمود زړه غمجن کړي.

بر فگن از ماه رخ خود نقاب — تا نکند دعوئ حسن آفتاب

له خپل مخ څخه دې د سپوږمۍ په شان نقاب پورته کړه — تر څو لمر د ښایست دعوه ونه کړي

بادهٔ گلگون چه کشی با رقیب — چند کنی جان ودلم را کباب

له رقیب سره به تر څو سره شراب چېښې — تر څو به زما روح او زړه کبابوې

بهر قد مبوس تو آمد بسر — نعره زنان آب بصد اضطراب

ستا د قدم مچولو له پاره پر سر راغلې — چیغې وهونکې اوبه په سلو بې قرار یو سره

| | |
|---|---|
| بیتو محالست که در چشم من | جائ کند در شب هجر تو خواب |
| ناشونې ده چي زما په سترگو کي له تا پرته | خوب ځای ونیسي ستا د بېلتون په شپه کي |

**د لغاتو حل:** برفگن (پورته کړه)؛ نقاب (حجاب / پرده، هغه چي مخ په پټېږي)؛ حسن (ښکلا)؛ آفتاب (لمر). باده (شراب)؛ گلگون (سور رنگ لرونکي)؛ کشی (کشوي، مطلب چیښي یا نوشوي)؛ رقیب (حریف، هغه چي غواړي تر تا وړاندي سي). قدمبوس (پښې مچول)؛ نعره (ناره / چیغه)؛ زنان (وهونکي)؛ اضطراب (نا آرامي). محال (نا ممکن)؛ هجر (بېلتون / جلاوالی)؛ خواب (خوب).

**لنډیز:** دا د دې ټولګي دویم شعر دئ چي ټوله بیتونه یې په بې سره پای ته رسېدلي دي؛ دلته شاعر له خپل معشوق څخه گلیمن دئ او له هغه څخه ځیني غوښتني لري او دا هر څه یې په شعر کي په دې ډول بیان کړي دي: اې زما معشوقه! ته دومره ښایسته یې چي که چیري له خپل مخ څخه نقاب پورته کړې آن لمر به هم ستا په مخ کي د ښکلا دعوه ونه کړي. خو ته به تر څو له رقیب سره شرابونه چیښې او زما زړه او روح به پر اور کبابوې. ستا د قدم مچولو له پاره خو اوبه هم په چیغو - چیغو او په سلو بې قراریو سره پر سر راځي. له تا پرته ما ته د شپې د خوب راتلل ښځي امکان نه لري...

| | |
|---|---|
| بزم تو یاد آورد و می کند | ناله چونی هر نفس از غم رباب |
| ستا مجلس یادوي او کوي | رباب هره ساه لکه شپېلۍ له غم څخه فریاد کوي |
| با قد تو سرو برابر نشد | پیش رخت شد زخجالت گل وآب |
| ستا له قد سره د سرو ونه برابره نه سوه | ستا د مخ په وړاندي گل له شره اوبه سو |
| باز آیاز از دل محمود برد | صبر وقرار وخرد وخورد وخواب |
| بیا ایاز د محمود له زړه یوووړی | صبر، آرام، عقل، خوراک او خوب |

**د لغاتو حل:** بزم (مجلس)؛ آورد (راوړي)؛ نی (شپېلۍ)؛ هر نفس (هره ساه / هر گړی). سرو (یو ډول ونه ده چي مخروط ته ورته لوړه او جگه ښه لري)؛ رخت (ستا مخ)؛ خجالت (شرمینده). برد (یووړی)؛ خرد (هوښ / عقل)؛ خورد (خوراک).

**لنډیز:** ... رباب ستا مجلس او وصال یادوي او په همدې وجه د شپېلۍ په څېر هره ساه فریاد کوي. ستا

له قد سره د سرو ونه هم نه سي برابرېدلای، ستا د ښکلي مخ په وړاندي خو گل له شرمه اوبه - اوبه سو. يو ځل بيا اياز د محمود له زړه څخه صبر، کرار، هوښ، خوب او خوراک يووړی.

| | |
|---|---|
| پر دهد ساقی پیاله گاه راس وگاه چپ | از شراب دیر ساله گاه راس وگاه چپ |
| ساقي پياله ډکه راکو کله راسته خوا او کله چپه خوا | له زړو شرابو څخه کله راسته خوا او کله چپه خوا |
| پند ناصح میکند از باده ام اما چه سود | میکند ساقی حواله گاه راس وگاه چپ |
| ناصح ما ته له شرابو څخه نصيحت وي مگر څه فائده | چي ساقي يې وړاندي کوي کله راسته خوا او کله چپه خوا |
| پیش او گر لاف خوبی گل زند باد افگند | از خجالت این رساله گاه راس وگاه چپ |
| د هغه په مخ کي که گل د ښکلا لافي وهي باد به وغورځوي | له شرميندگی څخه دغه رساله کله راسته خوا او کله چپه خوا |
| پاکبازان راست وچپ استاده اندر عشق تو | رو نمائی همچو لاله گاه راس وگاه چپ |
| عاشقان ستا په عشق کي راسته او چپه خوا ته ولاړ دي | مخ ښکاره کړه د گل لاله غوندي کله راسته خوا او کله چپه خوا |

**د لغاتو حل:** پُر (ډک)؛ گاه (کله)؛ دير ساله (زاړه / د ډېر وخت). پند (نصيحت)؛ ناصح (نصيحت کوونکی). باده (شراب)؛ اما (مگر / لېکن)؛ سود (گټه / نفع)؛ حواله (سپارل). خوبی (ښه والی / ښايست)؛ زند (وهي)؛ افگند (غورځوي). پاکبازان (عاشقان / صادقان)؛ استاده (ولاړ)؛ راس (راسته)؛ چپ (چپه).

**لنډيز:** دا د محمود نامې درېيم شعر دئ چي ټوله بيتونه په پې سره پای ته رسېدلي دي، چي شاعر پکښې د خپل زړه راز څرگند کړی دئ، وايي چي ساقي تل ډکه پياله په لاس يوې او بلې خوا ته گرځي را گرځي او شرابونه راکوي. ناصح تل نصيحت را ته کوي چي شرابو لاس واخله، مگر څه فائده لري چي ساقي هر گړی يوې او بلې خوا ته شرابونه را ته نيسي. د هغه په مخ کي که چيري د ښايست لافه ووهي، نو باد به يې يوې او بلې خوا ته وغورځوي. رښتيني عاشقان دي د ديدن له پاره يوې او بلې خوا ته په انتظار ولاړ دي، خپل مخ را ښکاره کړه...

| | |
|---|---|
| پرتو حسن تو مارا مزرع امید هست | لیک هجرت همچو ژاله گاه راس وگاه چپ |
| ستا د ښايست رڼا زموږ د اميدونو کر و نده ده | مگر بېلتون ستا د ژلیو غوندي کله راسته خوا او کله چپه خوا |

| | |
|---|---|
| پیر و برنا بر مه روی تو عاشق شد بجان | صف زده گردت چو هاله گاه راس وگاه چپ |
| بوډا او ځوان ستا پر سپوږمۍ غوندي مخ باندي په زړه عاشق سو | لکه شپول پر شاوخوا ستا قطار کله راسته خوا او کله چپه خوا |
| پارسائی تابکی محمود را می میدهد | ساقئ مشکین کلاله گاه راس وگاه چپ |
| فقیري به تر کله محمود ته شراب ور کوي | ساقي د تورو زلفو کله راسته خوا او کله چپه خوا |

**د لغاتو حل:** پرتو (رڼا)؛ حسن (ښکلا)؛ مزرع (د کښت ځای)؛ ژاله (ژلۍ). پیر (زوړ / سپین ږیری)؛ برنا (ځوان)؛ مه (سپوږمۍ / میاشت)؛ صف (قطار)؛ زده (وهلی)؛ گرد (شاوخوا)؛ هاله (دائره / شپول). پارسائی (نېکي / پرهېزگاري)؛ می (شراب)؛ مشکین (تور رنگه / د مشک رنگ)؛ کلاله (پېچلي وربښتان / زلفي).

**لنډیز:** ... ستا د ښایست او ښکلا رڼا زموږ د امیدونو کروندې غوندي ده، خو ستا د بېلتون ژلۍ هره خوا وورې او زموږ د امیدونو کرونده خرابوي. سپین ږیري او ځوانان ستا پر سپوږمۍ غوندي وربښانه مخ باندي عاشقان سول او په قطار کي یوې او بلي خوا ته ستا د دیدن په انتظار ولاړ کړي. فقیري به تر کومه محمود ته شرابونه ورکوي چي د تورو زلفو ساقي یوې او بلي خوا ته گرځي را گرځي.

| | |
|---|---|
| تاب روئی تو شمع انجمن ست | گل روی تو زینت چمن ست |
| ستا د مخ ځلا د مجلس څراغ دئ | ستا د مخ گل د چمن ښایست دئ |
| توئی امروز یوسف ثانی | زان سبب عاشق تو مرد وزن ست |
| ته د نن ورځي دویم یوسف یې | په همدې خاطر نو نر او ښځي ستا عاشقان دي |
| تن تو هر که دید گفت از شوق | الله الله که این چه سیم تن ست |
| ستا بدن چي هر چا لیدلی دئ ویلي یې دي | الله! الله! دا څومره سپین بدن دئ |
| تنگ در بر گرفت هر که ترا | دل او شاد کام از حَسن ست |
| هر چا چي ته په غېږ کي ټینگ نیولی یې | د هغه زړه له خوښۍ څخه خوشحاله دئ |

**د لغاتو حل:** تاب (ځلا / روښنايي)؛ شمع (ډیوه / څراغ)؛ انجمن (مجلس)؛ زینت (ښایست). ثانی (دویم)؛ مرد (سړی)؛ زن (ښځه). تن (بدن)؛ دید (لیدل)؛ شوق (رغبت / لېوالتیا)؛ سیم (سپین زر)؛ سیم تن (سپین

بدن). تنگ (ټینګ)؛ در بر (په څنګ کې / په غېږ کې)؛ شادکام (کامیاب / بریالی)؛ حَسن (ښوره / ښه).

**لنډيز:** شاعر د خپل معشوق ستاینې ته دوام ورکوي او دا د دې کتاب څلورم شعر دئ، شاعر معشوق ته په خطاب کې وايي چې ستا د ښکلي مخ رڼا زموږ د ټول مجلس څراغ دئ او ستا د مخ ګل د چمن ښکلا ده. ته د نن ورځې دويم يوسف يې، په همدې خاطر نر او ښځې ستا عاشقان دي. هر څوک چې ستا سپين بدن ويني نو په حيرانۍ سره وايي چې دا څومره سپين بدن دئ. چا ته چې ته يو ځل په غېږه کې نيولی يې، د هغه زړه تر اوسه له خوښۍ څخه ټوپونه وهي...

| | |
|---|---|
| ترک عشق تو چون کنم من زار | تا مرا جان خسته در بدن ست |
| زه عاجز به څنګه ستا عشق پرېږدم | تر دې چې روح مي په بدن کي زخمي دئ |
| تازه تر شد رخ تو از خط سبز | بنده او بنفشه وسمن ست |
| ستا مخ له شين خط څخه ډېر تازه سو | ګل بنفشه او رانبېل د هغه غلام دئ |
| تار زلف اياز ای محمود | بهر پابند تو عجب رسن ست |
| اې محموده! د اياز د زلفو تار | ستا د ترلو له پاره عجيبه رسۍ ده |

**د لغاتو حل:** ترک (پرېښوول)؛ زار (عاجز / ناتوانه)؛ خسته (زخمي). تازه تر (ډېر تازه)؛ سبز (شين)؛ بنفشه (يو ډول ګل دئ)؛ سمن (رانبېل / چمبېلی / ګل ياسمين). پابند (ترلی)؛ رسن (رسۍ).

**لنډيز:** ... نو عاجز به څنګه ستا له عشقه لاس واخلم چې روح مي په بدن کي دننه زخمي دئ. ستا مخ د شنه خط په سبب ډېر تازه او روڼ سو، ګل بنفشه او ګل ياسمين په ښايست کي ستا د مخ غلامان دي. اې محموده! د اياز د زلفو تار ستا د ترلو له پاره عجيبه ښه رسۍ ده.

| | |
|---|---|
| ثابت نشد بوعده خود يار الغياث | زين غصه گشت جان ودلم زار الغياث |
| ونه درېدی يار پر خپله ژمنه، افسوس! | له دې غوسې څخه مي روح او زړه ناتوانه سوه افسوس! |
| ثور ست وشير جان من ومحنت فراق | باشير وگاؤ ور شده پيکار الغياث |
| زړه مي غويی دئ او د بېلتون غم زمری دئ | د زمري او غوايي تر منځ جنګ دئ افسوس |

| | |
|---|---|
| ثالث میان ما وتو پیدا شده رقیب | این کجا رسید دگر بار الغیاث |
| رقیب زما او ستا په منځ کې دریمګری پیدا سو | دا بیا له کومه راورسېدی افسوس! |
| ثمن مئ مغانه دهم نقد جان اگر | باشد زدست آن بت خمار الغیاث |
| شراب خرڅوونکي ته به سمدستي د شرابو قیمت روح ورکړم که چیري | له لاسه د دغه معشوق شراب خرڅوونکي وي افسوس |

**د لغاتو حل:** ثابت (محکم، قائم)؛ وعده (ژمنه)؛ الغیاث (افسوس دئ). غصه (قهر / غوسه)؛ گشت (سو / وگرځېدی)؛ جان (روح)؛ دلم (زړه زما). ثور (عربي لفظ دئ یعني غویی)؛ شیر (زمری)؛ فراق (بېلتون / جدایي)؛ گاؤ (غویی). پیکار (جنگ / جګړه). ثالث (دریم)؛ میان (منځ)؛ کجا (کله / چیري)؛ رسید (ورسېدي). ثمن (بیه / قیمت)؛ می (شراب)؛ مغانه (شراب پلورونکی)؛ نقد (نغد / ځای پر ځای)؛ بت (مجسمه)؛ خمّار (شراب خرڅوونکی).

**لنډیز:** دا د دې کتاب پنځم شعر دئ، شاعر له خپل معشوق څخه گیله کوي، وایي چي افسوس دئ، یار مې پر خپلې ژمنې وفا ونه کړه، له ډېره درده او غمه مي روح او زړه ناتوانه او کمزوري سوه. څکه چي زما زړه د غویي په څېر دئ او د یار د بېلتون او جدایي غم د زمري په څېر دئ، افسوس دئ چي د دې غویي او زمري تر منځ جنگ ونښتی. خو رقیب زما او ستا تر منځ د دریمګړي په توګه را پیدا سو، افسوس دئ چي دا بیا له کومه راغلی. که چیري شراب د معشوق له لاسه وي نو زه به د هغه د شرابو په قیمت کې په نغده توګه خپل روح ورکړم، خو افسوس دئ چي هغه ما ته په خپل لاس شراب نه راکوي...

| | |
|---|---|
| ثالث پیاله ساقی اگر بخشدم تمام | گردم زبار درد سبکسار الغیاث |
| ساقي که دریمه پیاله راکړي توله | د درد له بار څخه به سپک سم افسوس! |
| ثبت است برجریده حسنت که گفته اند | مردم بدور چشم تو بیمار الغیاث |
| پر اخبار ستا د ښایست اروند ثابت دي چي ویلي یې دي | خلگ ستا د سترگو په زمانه کي ناروغان دي افسوس! |
| ثوب ازتن ایاز چو بگرفت کام دل | محمود شد به غصه گرفتار الغیاث |
| د زړه مقصود چي د ایاز له تن څخه جامې واخیستې | محمود په غوسه کي راگیرا سو افسوس! |

**د لغاتو حل:** بخشدم (ما ته وبخښي)؛ تمام (توله / پوره)؛ گردم (وبه گرځم)؛ سبکسار (سپک / بې غمه). جریده (میاشتنی اخبار)؛ بدور (په دور / زمانه کې)؛ بیمار (ناروغ). ثوب (کالي / جامې)؛ کام (مراد / مقصود)؛ گرفتار (اخته / بندي).

**لنډيز:** ... که چیرې ساقي (معشوق) راته دربیمه پیاله هم په پوره توگه را وبخښي، نو به د غم له بار او بوج څخه سپک سم، خو افسوس دی چې معشوق داسې نه کوي. پر اخبارونو ثبت دي چې ستا د ښایست په اړه يې ویلي دي چې خلک به ستا د سترگو په دور کې ناروغان وه. کله چې د ایاز له بدن څخه د زړه مراد جامې وایستلې، نو محمود ډېر په قهر سو.

| | |
|---|---|
| جمالت را هزاران صاحب تاج | بیک دیدن بجان هستند محتاج |
| ستا ښایست ته په زرگونو د تاج څښتنان | په زړه سره یوه دیدن ته اړ دي |
| چنان هجر تو ما را ساحت عاجز | که درماند به پیش باز دراج |
| ستا بېلتون زه داسې ناتوانه کړم | لکه تارو چې د باز په وړاندې پاته راسي |
| چو جا بربام وصلت یافت عاشق | شد اورا گوئیا برچرخ معراج |
| کله چې عاشق ستا د وصل پر بام ځای ومومي | گویا ده لره په آسمان معراج سو |
| جهان شد تیره برمن چو نهفتی | زمن آن ساعد صافی تر از عاج |
| پر ما جهان تیاره سو کله پټې کړې | زما څخه هغه د فیل تر غاښ ډېرې صفا لېڅې |

**د لغاتو حل:** جمال (ښایست)؛ صاحب (خاوند / څښتن / ملگری / ښاغلی)؛ تاج (خول / د باچاه خولی). درماند (پاته راتلل / عاجزه کېدل)؛ دراج (تارو / یو ډول حیوان دی چې د باز په وسیله يې ښکار کېږي)؛ جا (ځای)؛ چرخ (آسمان)؛ معراج (ختل / آسمان ته پورته کېدل). تیره (تور / تاریک)؛ نهفتی (چې ته پټ کړې)؛ ساعد (لېڅه / د لاس له بند څخه تر څنگلې پورې برخه)؛ عاج (د فیل غاښ).

**لنډيز:** دا د دې په زړه پورې تولگې شپږم شعر دی، په دې شعر کې هم شاعر د خپل معشوق ستاینه کوي، وایي چې ته دومره ښایسته يې چې آن ښایست ته دې د تاج خاوندان او باچان دي هم یوه دیدن ته ضرورت لري. ستا جدایي زه دومره ناتوانه کړی یم لکه تارو چې د باز په وړاندې عاجز او ناتوانه سي. ستا وصال

عاشق لره دومره د خوښۍ او خوشحالۍ خبره ده چې که چیرې ستا د وصال پر بام یو څه ځای پیدا کړي، نو دا د هغه له پاره دومره لویه خبره ده لکه هغه چې آسمان ته ختلی وي. خو کله چې تا زما څخه خپلې سپینې لېښې او مروندونه پټ کړل، نو پر ما دنیا توره شپه سوه...

| گرفت از قند مصری شکرت باج | جگر خون کرد زلفت مشک چین را |
|---|---|
| ستا شیرینۍ له مصري قند څخه باج واخیست | ستا زلفو د چین مشک ځگر خون کړ |
| سیه شد روز بر من چون شب داج | جدا از آفتاب عارض تو |
| پر ما باندي ورځ توره سوه لکه توره شپه | ستا له لمر مخ څخه جلا |
| که ماهی بیندش محمود ای کاج | جمال خود ایاز از وی نهان داشت |
| اې کاش چې محمود په یوه میاشت کې هغه ووینې | ایاز خپل ښایست له هغه څخه پټ وساتی |

**د لغاتو حل:** جگر (ځیگر / سینه)؛ خون (وینې)؛ جگرخون (غمجن / زهیر سوی / زخمي زړی)؛ مشک (یو ډول خوشبويي)؛ چین (د چین هیواد)؛ مشک چین (د چین هیواد مشک چې تر نورو مشکو ډېره خوشبویه او کیفیت لرونکي دي)؛ قند (شیریني)؛ قند مصری (د مصر هیواد قند چې تر نورو قندونو ډېر خواږه او خوندور دي)؛ باج (مالیه / ججه). آفتاب (لمر)؛ سیه (تور)؛ روز (ورځ)؛ شب (شپه)؛ داج (توره شپه). نهان (پټ)؛ داشت (لرل / ساتل)؛ ماهی (یوه میاشت)؛ کاج (کاش چې).

**لنډیز:** ... ستا زلفې دومره خوشبویه دي چې د چین تر مشکو یې خوشبويي زیاته ده او ته دومره خوږ یې چې آن د مصر تر قندو دې شیریني زیاته ده. زه چې کله ستا له لمر غوندې روښانه مخ څخه جلا سوم، نو سپینه ورځ را باندې توره شپه سوه. کاش چې محمود (عاسق) په ټوله میاشت یې یو ځل هغه لیدلای سوای، خو افسوس چې ایاز (معشوق) له هغه څخه خپل جمال او ښایست پټ ساتلی دئ.

| ز وصفت می نیارم بر زبان هیچ | چو می بینم ترا ای مه دهان هیچ |
|---|---|
| ستا له صفت څخه پر ژبه نه راوړم هیڅ | کله چې وینم تا اې سپوږمۍ خولې هیڅ |
| که عقل اگه نگشته زان میان هیچ | چه گویم وصف آن موی میان را |
| چې عقل نه دئ خبر سوی په هغې ملا هیڅ | څه به ووایم صفت د هغه نرۍ ملا |

| | |
|---|---|
| چرا یارب ندارد مهربانی | بعاشق آن مه نامهربان هیچ |
| ولې اې ربه نه لري مهرباني | پر عاشق باندې هغه نامهربانه سپوږمۍ هیڅ |
| چگونه گل بود چون رویِ آن ماه | که نبود گل چو او در بوستان هیچ |
| گل به څنګه د هغه سپوږمۍ د مخ غوندې وي | چې نه سته په باغ کې د هغه په شان گل هیڅ |

**د لغاتو حل:** مه (میاشت)؛ دهان (خوله)؛ وصف (صفت / ستاینه)؛ نیارم (نه راوړم)؛ زبان (ژبه). چه گویم (څه ووایم)؛ موی (وریښته) میان (ملا)؛ آگه (آگاه: خبر سوی / باخبره). چرا (ولې / ؟) ندارد (نه لري)؛ نامهربان (جفاکاره). چگونه (څنګه / څه ډول)؛ بوستان (گلبڼ / د گلونو باغ).

**لنډیز:** د دې ټولګې په اووم شعر کې شاعر بیا هم د خپل معشوق ستاینې ته دوام ورکړی دئ، وایي: اې زما معشوقه! په ښکلا کې ستا خوله د سپوږمۍ غوندې ښکلې ده، کله چې دې زه ووینم نو له حیرانۍ څخه مې خبرې هېرې سي، غواړم چې ستا ستاینه وکړم، خو پر ژبه هیڅ الفاظ نه سم راوړلی. زه به د هغې نرۍ ملا په اړه څه ووایم چې عقل یې په اړه هیڅ کار نه کوي. اې خدایه! دا جفاکاره معشوق ولې پر خپل عاشق باندې یو څه مهرباني نه لري. گل کله د دې سپوږمۍ د مخ غوندې ښکلی کېدای سي چې د هغه په څېر ښکلی گل په ټوله باغ کې نه سته...

| | |
|---|---|
| چنان مائل شدم بر حسن جانان | که جز ذکرش ندارم بر زبان هیچ |
| د جانان ښایست ته داسې لېواله سوم | د هغه له یاد پرته پر ژبه نه لرم هیڅ |
| چه دانستی ازان دلبر تو چندان | نشان شوخئ دیگر ازان هیچ |
| له هغه زړه وړونکې څخه دومره په څه وپوهېدلې | چې د شوخۍ له نښې پرته له هغه څخه (نه راځي) هیڅ |
| چمن گل گل شده محمود اما | دلم نشگفت بیرویش ازان هیچ |
| چمن گل گل سو محموده! لېکن | زړه د هغه له مخ پرته ونه غوړېدی هیڅ |

**د لغاتو حل:** مائل (شوقمن / لېواله)؛ حُسن (ښایست)؛ جز (بغیر / ماسېوا)؛ ندارم (نه لرم)؛ زبان (ژبه). چه (څه)؛ دانستی (وپوهېدلې / پوهېږې)؛ دلبر (زړه وړونکی، مطلب معشوق دئ)؛ چندان (دومره / دونه)؛

نشان (نښه / علامه)؛ شوخی (خشنګي / شرارت)؛ نشګفت (ونه غوړېدی).

**لنډیز:** ... د یار ښایست ته دومره لېواله سوی یم چي د هغه له یادولو پرته پر ژبه بله څه نه راوړم. ته په دې څه پوه سوې چي هغه له شوخۍ او شرارت پرته بل هیڅ نه لري. په چمن کې رنګارنګ ګلان وغوړېدل، لېکن د یار د مخ له لیدلو پرته زما زړه نه غوړېږي.

| | |
|---|---|
| حرام باد بجز یار گلعذار قدح | فدای باده لعلش کنم هزار قدح |
| د ګلمخي یار پرته دي پیاله حرامه وي | تر هغه به د سرو شرابو زر پیالې قربان کړم |
| حبیب من چو شود ساقی وقدح گیر | روان بچرخ در آید هزار بار قدح |
| زما ګران چي ساقي سي او پیاله ونیسي | نو ژر به راسي د آسمانه پر لوري زر واره پیاله |
| حسود را زحسد خون دل بجوش آید | چو پُر زباده بدستم دهد نگار قدح |
| له حسد د حاسدانو د زړه وینه پر جوش راسي | چي نګار ما ته په لاس کي له شرابو ډکه پیاله راکړي |
| حلال نیست مئ لعل بی لب ساقی | بود حرام چو نوشند خوشگوار قدح |
| د ساقي له شونډو پرته شراب حلال نه دي | حرامي دي چي خوندوري پیالې چیښي |

**د لغاتو حل:** حرام (نا روا)؛ باد (وي دي)؛ ګلعذار (ګل مخی)؛ قدح (پیاله)؛ فدا (قربان)؛ لعل (سور رنګ). حبیب (دوست / معشوق)؛ چرخ (آسمان)؛ هزار (زر). حسود (د حاسد جمع ده یعني حسد کوونکي)؛ حسد (کینه / رخه)؛ نګار (یار / محبوب)؛ باده (شراب)؛ حلال (روا / جائز)؛ می (شراب)؛ لب (شونډې)؛ نوش (چیښل)؛ خوشګوار (ښه خوند لرونکي / خوندور).

**لنډیز:** دا د محمود نامې اتم شعر دئ، دلته شاعر د یار له پاره د قربانۍ یادونه کوي، وایي چي د ښکلي او ګلمخي یار پرته دي پر ما شراب حرام وي، زه به د هغه له پاره په زرګونو پیالې قربان کړم. که چیري زما معشوق ساقي سي او په لاس کي جام ونیسي، نو مځکه خو پرېږده آن د آسمان له لوري به هم په زرګونو پیالې ورته راسي. کله چي زما معشوق ما ته په لاس کي له شرابو څخه ډک جام راکړي، نو رقیبان تول له ډېري غوسې د خپل زړه وینې چیښي. د یار له شونډو پرته د خوندورو شرابو چیښل حرام دي...

حکایت از جم وجام گذشته دارد یاد ‌‌ میان خلق ازان دارد اعتبار قدح

د تېر سوي جم وجام حکایت یاد لري ‌‌ پياله په همدې وجه د خلګو په منځ کي اعتبار لري

حریف باده کشانست اینکه از ره شوق ‌‌ بنقد جان بستاند ز دست یار قدح

د شراب څورو ملګری دئ چي د شوق په وجه ‌‌ د روح په ورکړي سره د يار له لاسه پياله اخلي

حدیث توبه وتقوی مپرس از محمود ‌‌ دهد ایاز چو اورا می دوچار قدح

له محمود څخه د توبې او تقوا کيسه مه پوښتنه ‌‌ چي اياز ورته ورکړي يو دوې څلور پيالي

**د لغاتو حل:** حكايت (كيسه)؛ ميان (منځ). حريف (رقيب / ملګری)؛ باده (شراب)؛ ره (لار)؛ شوق (مينه / رغبت). حديث (كيسه / خبره)؛ مپرس (مه پوښته)؛ دو (دوه / دوې)؛ چار (څلور).

**لنډيز:** ... نو د شرابو پياله د خلګو په منځ کي له دې امله د اعتبار وړ ده چي پخوانی جم او جام او عيشونه يې ياد دي. دا د شراب څورو ملګری دئ چي د يار له لاسه د پيالې اخيستلو په بدل کي د روح ورکولو ته هم اماده وي. نو كله چي اياز (معشوق) له شرابو ډکه پياله محمود (عاشق) ته ونيسي، نو بيا له هغه څخه دا پوښتنه مه کوه چي تا خو له شرابو څخه توبه کښلې وه.

خبر ازحال نگرفت آن شوخ ‌‌ چو او دیگر ندیدم دلستان شوخ

هغه شوخ زما د حال خبر وا نه خيست ‌‌ د هغه په څېر مي شوخ زړه وړونکی ونه ليدی

خروش ازدست اودارند پیران ‌‌ کسی کم دید مثل آم جوان شوخ

د هغه له لاسه بوډاګان په شور کي دي ‌‌ هيچا د هغه شوخ ځوان په څېر (څوک) نه دئ ليدلی

خرابی کرد درهر گوشه چشمش ‌‌ نباشد کس سیه دل ترازان شوخ

د هغه سترګو هري خوا ته خرابي جوړه کړه ‌‌ تر هغه شوخ به څوک ډېر تور زړی نه وي

خدا پاینده دارد خوبئ او ‌‌ اگرچه نیست چون اودرجهان شوخ

خدای دي د هغه ښايست تل باتی لري ‌‌ که څه هم د هغه په څېر شوخ په جهان کي نه سته

**د لغاتو حل:** نگرفت (وا نه خیست)؛ شوخ (شریر / خشنگ / بې پروا)؛ دلستان (زړه اخیستونکی). خروش (شور / زوږ)؛ پیران (سپین ږیري)؛ جوان (ځوانی). خرابی (تباهي / ویراني)؛ هر گوشه (هر طرف)؛ سیه دل (تور زړی)؛ پاینده (تل پاتی / دوام لرونکی)؛ خوبی (ښه والی).

**لنډيز:** دا نهم شعر دئ چي د (خ) په توري سره پای ته رسېدلی دئ، شاعر د خپل زړه سوز او درد څرگندوي، وایي چي هغه مست او شوخ معشوق زما د زړه حال هیڅ نه اخلي، ما د هغه په څېر سخت زړی او شوخ بل څوک نه دئ لیدلی. سپین ږیري تول د هغه له لاسه په فریاد او شور کي دي، ځکه چي هیچا د ده په څېر بل ځوان نه دئ لیدلی. د هغه سترگو هري خوا ته تباهي جوړه کړه، د هغه په څېر ډېر سخت زړی او ظالم بل څوک نه سته. خو بیا دي هم خدای پاک د هغه ښکلا او ښایست تل پاتی ولري، که څه هم په دنیا کي د هغه په څېر سخت زړی او خشنگ څوک نه سته...

| خدارا چند خواهی کرد شوخی | نباید بود زینسان جاودان شوخ |
| --- | --- |
| د خدای له پاره تر څو به شوخي کوې | داسي همېشه شوخ (اوسېدل) نه ښایي |
| خرد حیران آن شوخست کامد | بعاشق آشکار او نهان شوخ |
| هغه شوخ ته عقل حیران دئ چي راځي | عاشق ته په ښکاره او په پټه شوخ |
| خراب از عشق او محمود شد زانکه | ایاز اوست بس نامهربان شوخ |
| محمود د هغه له عشق څخه خراب سو، ځکه | ایازه! بس هغه ډېره نامهربانه شوخ دئ |

**د لغاتو حل:** خدا (خدای تعالی)؛ چند (څو / تر [illegible])؛ نباید (نه ښایي)؛ زینسان (دا رنگه / دا ډول)؛ جاودان (تل / همېشه). خرد (عقل)؛ حیران (په تعجب کي)؛ کامد (که آمد: چي راځي)؛ آشکار (ښکاره)؛ نهان (پټ). زانکه (از آن که: له دې امله).

**لنډيز:** ... اې معشوقه! د خدای له پاره، تر څو به دي دې شوخی ته دوام ورکوې، تل همداسي شوخ اوسېدل ښه نه وي. عقل دې شوخ ته حیران دئ چي خپل عاشق کله په پټه او کله په ښکاره راځي. اې ایازه! محمود (عاشق) د هغه له عشق څخه تباه او برباد سو، هغه ډېر نامهربان او جفاکار دئ.

| | |
|---|---|
| دل ترا گلعذار می گوید | وصف توصد هزارمی گوید |
| زړه تا ته گلمخی وايي | صفتونه ستا سل زره وايي |
| دانهٔ خال عنبرین ترا | خلق مشک تتار می گوید |
| ستا د خال عنبريني دانې ته | خلګ د تاتار مشک وايي |
| دردهان هرکه او زبان دارد | وصف رخسار یار می گوید |
| هر څوک چې هغه په خوله کې ژبه لري | د يار د مخ صفت وايي |
| دلبرا خلق چشم مست ترا | ترک مردم شکار می گوید |
| دلبره! خلګ ستا مستو سترګو ته | د انسانانو ښکاري سپاهي وايي |

**د لغاتو حل:** دل (زړه)؛ گلعذار (د گل غوندي مخ لرونکی / گلمخی)؛ می گوید (وايي)؛ وصف (صفت)؛ صد (سل)؛ هزار (زر). عنبرین (د عنبر غوندي ښه بوی لرونکی، عنبر يو ډول خوشبويي ده)؛ تتار (تاتار: د يوه قوم يا يوې سيمې نوم دئ). دهان (خوله)؛ زبان (ژبه)؛ رخسار (مخ). دلبرا (اې دلبره)؛ چشم (سترګې)؛ مردم (خلګ / انسانان)؛ ترک (سپاهي / لښکري).

**لنډيز:** دا لسم شعر دئ او د فارسي الف باء په لسم توري (دال) سره پای ته رسېدلی دئ، دلته بيا هم شاعر د خپل معشوق ستايني او صفتونه کوي، وايي چې زما زړه تا د گل په څېر ښکلی گڼي او په سلګونو او زرګونو صفتونو سره دي ستايي. ستا ښکلی او خوشبو لرونکی خال خلګ د تاتار مشک بولي. هر څوک چې په خوله کې ژبه لري هغه ستا د ښکلي مخ ستاينه کوي. اې معشوقه! خلګ ستا مستي او ښکلې سترګې د انسانانو ښکاري بولي، څکه هري خوا ته چې ګورې د خلګو د زړونو ښکار کوې...

| | |
|---|---|
| داروئی درد یاررا عاشق | باده خوشگوار می گوید |
| عاشق د يار د درد دارو ته | خوندور شراب وايي |
| دُرِ اشکم چویار می بیند | گوهر آبدار می گوید |
| د اوښکو ملغاري چې مې يار ويني | (ورته) اوبه لرونکې ملغلره وايي |

| درد توبا ایاز ای محمود | دیده اشکبار می گوید |
|---|---|
| اې محموده! له ایاز سره ستا درد | سترګې اوښکې تویوونکې وايي |

**د لغاتو حل:** داروئی (درمل / دوا)؛ باده (شراب)؛ خوشگوار (خوندور). دُرّ (ملغلرې)؛ اشک (اوښکې)؛ گوهر (قیمتي ډبرې / غمیان)؛ آبدار (ځلانده / بربښېدونکې). اشکبار (اوښکې توېونکې).

**لنډيز:** ... عاشق د یار درد درمل خوندور شراب بولي. یار چې کله زما اوښکې ویني، نو بربښېدونکې ملغلرې يې ګڼي. اې محموده (عاشقه!) له ایاز (معشوق) سره ستا درد اوښکې توېوونکې سترګې بولي.

| ذکر لب توبسی برزبان لذیذ | آریکه هست طعم شکر در دهان لذیذ |
|---|---|
| پر ژبه ستا د شونډو یاد ډېر خوږ دئ | هو! لکه خوند د بورې چې په خوله کې خوږ وي |
| ذاکر چو من کجاست ترا در جهان دگر | زانرو که هست ذکر تو ای دلستان لذیذ |
| په جهان کې زما په څېر بل ستا یادوونکی چیرې دئ | ځکه چې اې زړه وړونکې! ستا یاد خوږ دئ |
| ذو المنتی و منت تو میکشم بجان | عشاق راست منت شیرین لبان لذیذ |
| د احسان خاوند يې او احسان دې پر روح وړم | عاشقانو ته د خوږو شونډو احسان خوږ دئ |
| ذره صفت زمهر تو هستم در اضطراب | چون هست مهرت ای مه نامهربان لذیذ |
| ستا له میني لکه د ذرې غوندې په بې قرارۍ کې یم | چې ده ستا مینه اې نامهرباني سپوږمۍ، خوږه |

**د لغاتو حل:** ذکر (یاد)؛ لب (شونډې)؛ بسی (ډېر)؛ لذیذ (خوندور)؛ آری (هو)؛ طعم (خوند)؛ شکر (بوره)؛ دهان (خوله). ذاکر (یادوونکی)؛ من (زه)؛ کجا (چیرې)؛ دگر (بل)؛ دلستان (زړه وړونکی). ذو المنتی (د احسان خاوند)؛ منت (احسان)؛ میکشم (کشوم / زغمم)؛ عشاق (عاشقان)؛ شیرین (خوږ)؛ لبان (شونډان). ذره (د یوه شي ډېره کوچنۍ برخه لکه د دوړې اتام یا تر هغه هم کوچنۍ لکه اتوم). مهر (لورېنه / مهرباني)؛ اضطراب (بې قراري)؛ مه (سپوږمۍ).

**لنډيز:** دا د محمود نامې د په پوري شعري ټولګي یوولسم شعر دئ چې په (ذال) سره پای ته رسیږي. په دې شعر کې شاعر د خپل معشوق صفات بیانوي وايي چې پر ژبه باندې ستا یاد داسې خوږ دئ لکه

بوره چې په خوله کې خوږه وي. په دنیا کې به زما په څېر ستا بل ډېر یادونکی څوک وي چې ستا یاد دومره خوندور دئ. ته د احسان خاوند یې او ستا احسان زه پر خپل روح باندې وړم، ځکه چې عاشقانو ته د خوږو شوندو احسان هم خوږ وي. ستا له مینې ځخه د ذرې په څېر بې قراره یم، ځکه چې ستا مینه ډېره خوږه ده...

| زهر آمده ز دست تو در کام جان لذیذ | دل نو عزتست و غمت به ز شادی ست |
|---|---|
| ستا د لاس زهر د روح په حلق کې خواږه راغلي دي | ستا ذلت عزت دئ او غم دي تر خوښۍ ښه دئ |
| کامد ز طعم قندلب گلرخان لذیذ | ذنب عظیم پیش لبت هست وصف قند |
| چې د قند تر خوند د معشوق شونډې خوږې راغلې | ستا شونډو په مخ کې د قند صفت کول لویه ګناه ده |
| چون آمده گرفتن ذیل بتان لذیذ | ذیل ایاز راز زده محمود دست شوق |
| چې د معشوق د لمن نیول خواږه راغلي دي | محمود د ایاز پر لمن د شوق لاس نیولی دئ |

**د لغاتو حل:** ذل (ذلت / تیټ والی)؛ شادي (خوشحالي)؛ کام (حلق / ستونی). ذنب (ګناه)؛ عظیم (ستره / لویه). ذیل (لمن)؛ زده (وهلی / نیولی)؛ امده (راغلی)؛ گرفتن (نیول).

**لنډیز:** ... ستا له لورې ذلت زما له پاره عزت دئ او ستا غم تر خوشحالۍ ډېر ښه دئ، ستا له لاسه زهر زما په ستوني کې خواږه وي. ستا د شونډو په مخ کې د قند د خوږوالي صفت کول لویه ګناه ده، ځکه چې ستا شونډې تر قند ډېرې خوږې دي. محمود (عاشق) د ایاز (معشوق) پر لمن باندې د مینې لاس نیولی دئ، ځکه چې د معشوق د لمنې نیول ډېر خوند کوي.

| گشت زان پیش روی تو گل زار | روئی تو هست غیرت گلزار |
|---|---|
| په همدې وجه گل ستا په مخ کې عاجز سو | ستا مخ د ګلبڼ غیرت دئ |
| پیش مردم چرا کنم اظهار | را ز دل با سگ درش گویم |
| د خلګو په مخ کې بې ولې اظهار وکړم | د زړه راز به د هغه د دروازې سپي ته وایم |

| | |
|---|---|
| روزئ مانشد وصال حبیب | زینهار ازقرین بد زنهار |
| د حبیب وصال زما نصیب نه سو | له بد ملگري څخه دي امان وي او امان |
| روز تا شب در آتش هجرم | وقنا ربنا عذاب النار |
| ورځ او شپه د بېلتون په اور کي یم | اې زموږ پالونکې! د اور له عزابه مو وساتې |

**د لغاتو حل:** رویٔ (مخ)؛ گلزار (د گلانو باغ)؛ زار (عاجز). سگ (سپی)؛ درش (دروازه د ده)؛ مردم (خلگ)؛ چرا (ولي / ؟)؛ اظهار (څرگند / ښکاره). روزئ (برخه / نصیب)؛ نشد (نه سو)؛ وصال (یو ځای والی)؛ حبیب (دوست / معشوق)؛ قرین (ملگری)؛ روز (ورځ)؛ شب (شپه)؛ آتش (اور)؛ هجر (جدایي)؛ قنا (وساته)؛ ربنا (زموږ پالونکې)؛ النار (اور).

**لنډیز:** دا دوولسم شعر دئ چي په (راء) سره پای ته رسیږي، شاعر د خپل معشوق صفات بیانوي، وایي چي اې معشوقه! ستا مخ دومره ښکلی دئ چي د گلونو باغ همدا ستا په مخ ننگ کوي، له همدې امله گلان ستا وړاندي عاجزه سوي دي. زه به مي د خپل زړه راز د معشوق د دروازې سپي ته بیان کړم، د خلگو په مخ کي یې نه بیانوم، ځکه چي هیڅ فایده نه لري. د معشوق وصال زما په نصیب نه سو، له ملگري او دوست څخه دي خدای پاک هر څوک وساتي. زه مي د یار په بېلتون کي شپه او ورځ په اور کي سوځم، اې خدایه! د دوږخ له اور څخه مو خلاص کړې...

| | |
|---|---|
| رنگ من زعفرانی از غم تست | ریزم ازدیده اشک چون گلنار |
| ستا له غمه زما رنگ ژړ دئ | د انار د گل غوندي له سترگو اوښکي تویوم |
| رویٔ تو از گلست نازک تر | نیست گل چون رخت یکی زهزار |
| ستا مخ تر گل ډېر نازک دئ | گل ستا د مخ غوندي یو په زرو ک ي هم نه دئ |
| راست تیر ایاز ای محمود | دردل من نشست تا سوفار |
| اې محموده! د ایاز غشی سم | زما په زړه کي تر بېخه ننوتی |

**د لغاتو حل:** رنگ (بڼه)؛ زعفراني (د زعفرانو په څېر ژړ)؛ ریزم (تویوم)؛ از دیده (له سترگو څخه)؛ اشک

(اوښکي)؛ ګلنار (د انار د ګل غوندي). یکی (یو)؛ هزار (زر). راست (سیده / سم)؛ تیر (غشی)؛ من (زه / زما)؛ سوفار (تر پایه / تر بېخه).

**لنډیز:** ... ستا له غمه مې رنګ تک ژړ اوښتی دئ او د انار د ګل غوندي مې له سترګو اوښکي بېږي. ستا مخ تر ګل ډېر نازک دئ، ګل ستا د مخ د ښکلا زرمي حصې ته هم نه سي رسېدلای. اې محموده (عاشقه!) د ایاز (معشوق) غشی سم سیده زما پر زړه ونښتی او تر پایه په ننوتی.

| | |
|---|---|
| زهی زروی تو شرمنده لاله وګل نیز | شد از کلام تو طوطی زبون و بلبل نیز |
| ستا له مخ څخه عجیبه شرمینده دئ لاله او ګل هم | ستا له خبرو څخه عاجزه دئ طوطي او بلبل هم |
| زروی حسن خط وزلف عنبرین ترا | بنفشه داد خط بندګی و سنبل نیز |
| ستا د مخ د ښکلا د خط او تورو زلفو څخه | بنفش د غلامۍ خط ورکړ او سنبل هم |
| زمان زمان سوی من کن زعین لطف نګاه | خدنګ غمزه مزن ناوک تغافل نیز |
| ګړی په ګړی زما خوا ته د مهربانۍ په سترګه ګوره | د غمزې غشی مه وهه او د بې پروایۍ هم |
| زدم چو بوسه بر آن لب بګیرم آن سر زلف | که باد دور مئ لعل را تسلسل نیز |
| چي مچ کړم هغه شونډي او ونیسم سر د هغه زلفو | چي وي دور د سرو شرابو او پرله پسې هم |

**د لغاتو حل:** زهی (عجیبه)؛ نیز (هم / همداسي)؛ شد (سو)؛ کلام (خبري)؛ زبون (عاجز / خوار). حسن (ښایست)؛ زلف (زلفي)؛ عنبرین (ښه بوی لرونکي)؛ بنفش (یو ډول ښه بوی لرونکی ګل دئ)؛ داد (ورکړ)؛ بندګي (غلامي)؛ سنبل (یو ډول ګل دئ). سوی (طرف)؛ عین (سترګه / نظر)؛ لظف (مهرباني)؛ نګاه (نظر کول / کتل)؛ خدنګ (غشی)؛ غمزه (د سترګو اشاره)؛ مزن (مه وهه)؛ ناوک (غشی)؛ تغافل (ځان نا خبره اچول). بوسه (مچه)؛ لب (شونډي)؛ تسلسل (پر له پسې).

**لنډیز:** دیارلسم شعر دئ، شاعر خپل معشوق مخاطبوي او ښکلا یې د ګل تر ښکلا زیاته ګڼي، وایي چي ستا د مخ له ښایست څخه ګل لاله شرمینده دئ، ستا له خوږو او نازکو خبرو څخه طوطي او بلبل عاجز دي. ستا مخ او خوشبویه زلفي دومره ښکلي او ښه بوی لرونکي دي چي آن بنفش او سنبل هم د غلامۍ سر ور ته ټیټ کړی دئ. یو وخت یو وخت خو زما خوا ته هم یو مهربانۍ نظر کوه، داسي تېز او بې پروا

مه راګوره لکه غشی چې وار کړې. څومره به ښه وي او څومره خوند به وکړي چې د یار شونډې ښکل کړم او د زلفو سرونه یې په لاس کې سره اړوم را اړوم او د سرو شرابو پر له پسې جامونه پر سر اړوم...

| | |
|---|---|
| زوال نیست ازان آفتاب حسن ترا | که داد جاه تر لطف حق تجمل نیز |
| له هغه لمر څخه ستا ښکلا ته زیان نه سته | چې د خدای مهرباني مرتبه ورکړې ده او ښکلا هم |
| زکوئ دوست زبیم رقیب کی گردم | که هست همره من همت وتوکل نیز |
| د یار له کوڅې څخه به کله د رقیب له بېرې راو ګرځم | چې ملګری دئ زما سره همت او توکل هم |
| زکوة حسن به محمود زود داد ایاز | نه کرد هیچ تعلل درین تامل نیز |
| ایاز محمود ته د ښایست زکات ژر ورکړ | به دې کې یې هیڅ ځند ونه کړ او فکر هم |

**د لغاتو حل:** زوال (له منځه تلل/ لیري کېدل)؛ آفتاب (لمر)؛ جاه (مرتبه)؛ لطف (مهرباني)؛ حق (خدای پاک)؛ تجمل (ښایست). کوئ (کوڅه)؛ بیم (بېره / وهم)؛ همره (ملګری)؛ همت (زړورتیا)؛ توکل (ځان سپارنه). زود (ژر)؛ نه کرد (ویې نه کړ)؛ تعلل (ځند)؛ تامل (فکر).

**لنډيز:** ... کوم لمر ته چې الله تعالی لوړوالی او ښایست ورکړی دئ، هغه ستا ښکلا او ښایست نه سي کمولای. کله چې زما سره همت او پر خدای پاک باندې توکل ملګری وي، نو کله به د رقیب له بېرې د یار له کوڅې څخه منعه سم. ایاز (معشوق) ډېر ژر محمود (عاشق) ته د خپل ښایست زکات ورکړ او په دې کې کار کې یې هیڅ ځنډ او فکر ونه کړ.

| | |
|---|---|
| ژند چون پوشیده مدرای ژاژ | زانکه نتوان شد زسر تا پای ژاژ |
| زاړه چې دې اغوستي دې عبث مه وایه | ځکه چې له سره تر پایه عبث کېدای نه سي |
| ژرف دریای است عشقش ای رقیب | اندرین دریا دگر مدرای ژاژ |
| اې رقیبه ! د هغه عشق ژور دریاب دئ | نور په دې دریاب کې عبث مه پرغېږه |
| ژاله اشکم که در ابر غم است | نیست این خرمهرهٔ دریای ژاژ |
| د اوښکو ژلۍ چې مې د غم په وریځې کې دي | دا د عبثو د دریاب خر مهره نه ده |

| | |
|---|---|
| ژاژ خائی میکند بابا رقیب | ما چه غم داریم گو میخای ژاژ |
| رقیب زما سره بې ځایه خبري کوي | موږ څه غم لرو، ووایه چې بې ځایه خبري کوه |

**د لغاتو حل:** ژند (گودړ/ زوړ توکر)؛ پوشیده (اغوستی)؛ ژاژ (عبث / بې گټې)؛ نتوان (نه سي کېدای)؛ پای (پښې). ژرف (ژور / ډېر کښته)؛ دریای (دریاب / سمندر)؛ مدرای (مه ږغېږه). ژاله (ژلی)؛ ابر (وریځ)؛ خرمهره (د یوه سمندري حیوان د سر تاج). ژاژ خایٔ (عبث ویل)؛ چی (څه)؛ گو (ووایه).

**لنډيز:** څوارلسم مسبع شعر دئ چې شاعر پکښې ځان ته یا مخاطب ته په خطاب کې وایي چې کله دې زاړه او شیري کالي اغوستي وي یعني تقوا دې غوره کړې وي، نو بیا عبث او بې ځایه خبري مه کوه، ځکه چې داسي نه سي کېدلای چې یو څوک دي له سره تر پښو یا په ظاهر او باطن دواړه عبث او بې فایدې وي. اې رقیبه! د یار عشق او محبت یو ژوړ او نه پایېدونکی دریاب دئ، ته په دې دریاب ځان مه ورگډوه. زما پر مخ چې اوښکي بهېږي دا د دریابي حیوان خرمهره نه ده. دا چې رقیب زما سره بې ځایه بحث کوي، نو موږ څه غم لرو، کوي دي یې...

| | |
|---|---|
| ژفت نبود چون رقیب سگ صفت | یاوه گوئی ابلهی خودرای ژاژ |
| د سپي صفته رقیب غوندي به بد زوقه نه وي | عبث پوچ ویونکي، کم عقله او کبرجن |
| ژاژ غم آمد مسلم بر دلم | تا نگوئی میخورم غمهای ژاژ |
| پر زړه مي د غم محکمه غلبه راغله | تر څو ونه وایي چې عبث غمونه خورم |
| ژخ کجا چون ناله اش باشد حزین | نالهٔ محمود بنود وایٔ ژاژ |
| خنگوله کله د هغه د ژړا په شان غمجنه وي | د محمود ژړا عبث افسوس نه دئ |

**د لغاتو حل:** ژفت (بې خونده / بد خونده / ناکاره)؛ سگ (سپی)؛ یاوه گویٔ (بې ځایه ږغېدونکی)؛ ابلهی (کم عقل / احمق)؛ خودرای (خود غرضه). ژاژ غم (د غم غلبه)؛ غمهای (غمونه). ژخ (ځنگوله)؛ کجا (چیري / کله)؛ ناله (ژړا / زگېروی)؛ حزین (غمجن)؛ وایٔ (افسوس).

**لنډيز:** ... سپي صفته رقیب ډېر ناکاره او بد ذوقه دئ، آن د هغه په څېر به عبث ویونکی، کم عقل او خود غرضه نه وي. زما پر زړه باندي غم ټینگه غلبه وکړه، تر څو ونه وایي چې دا غمونه بې گټي او بې فایدې

دي. د څنګولې آواز د هغه د ژړا او سلګيو په څېر غمجن نه وي، د محمود (عاشق)؛ ژړا بې څه نه ده.

| | |
|---|---|
| سینهٔ من سپر تیر تو میباشد وبس | دل محنت زده نخچیر تو میباشد وبس |
| چې زما سينه ستا د غشي سپر وي او بس | سختو وهلى زړه ستا ښکار وي او بس |
| سر نه پیچد دل دیوانهٔ من زان خم زلف | تا ابد بسته زنجیر تو میباشد وبس |
| زما لېونى زړه له هغه پېچلو زلفو سر نه پېچي | چې تر ابده ستا په ځنځير تړلى وي او بس |
| ساختی مرشد من پیر خرابات ایدل | عاقبت رهبر من پیر تو میباشد وبس |
| اې زړه! د شراب خانې پير دې زما مرشد جوړ کړ | آخر به زما رهبر ستا پير وي او بس |
| سخت غمناک مشو زانکه دولت وصل | شادئ خاطر دلگیر تو میباشد وبس |
| ډېر مه غمجن کېږه ځکه چې د وصال دولت به | ستا د خپه زړه خوشحالي وي او بس |

**د لغاتو حل:** سپر (ډال)؛ محنت (تکليف)؛ نخچير (ښکار / ښکار سوى حيوان). نه پيچد (نه پيچي)؛ ديوانه (لېونى)؛ خم (کوږ / کږې)؛ ابد (تل)؛ بسته (تړلى)؛ زنجير (ځنځير). مرشد (پير / لاربنود)؛ خرابات (ميخانه)؛ عاقبت (انجام / پايله)؛ رهبر (لاربنوونکى). غمناک (غمجن / خوابښينى)؛ شادى (خوښي)؛ دلگير (خفه / خواشينى).

**لنډيز:** دا د محمود نامې له يو ډېرشو مسبع شعرونو څخه پنځلسم شعر دئ. په دې شعر کې شاعر له خپل معشوق سره د يو ځاى والى ارمانونه څرګندوي، وايي چې زما سينه دې ستا د غشو سپر واى او خوار زړه دې مې ستا ښکار واى، خو ستا سره واى. زما لېونى زړه له هغو ښکلو ول ول زلفو څخه نه صبرېږي، چې تر ابده ستا د زلفو په ځنځير تړلى واى خو ستا سره واى. اې زما بې لارې زړه! د شراب ځانې پير (معشوق) دې زما مرشد جوړ کړ، آخر به زما پير او مرشد همدا ستا پير سي. ډېر مه خواشينى کېږه، ځکه يو وخت به خامخا د وصال دولت تر لاسه کړې او خوښه او خوشحاله به سې...

| | |
|---|---|
| سرو قدی که ز هجر رخ او می میری | غم مخور زانکه دگر میر تو میباشد وبس |
| هغه سرو قد چې د هغه د مخ له هجران څخه مرې | غم مه کوه ځکه چې بيا به ستا امير وي او بس |

| | |
|---|---|
| ساز حال دل خود پیش سگ او تقریر | شاهد حال تو تقریر تو میباشد وبس |
| د خپل زړه حال د هغه د سپي په مخ کي بیان کړه | ستا د حال شاهد به ستا دا بیان وي او بس |
| سوئ من تیر نظر گر فگنی ای محمود | سینه من سپر تیر تو میباشد وبس |
| اې محموده! که زما خوا ته د نظر غشی وغورځوې | زما سینه به ستا د غشي سپر وي او بس |

**د لغاتو حل:** سرو (یو ډول ونه ده)؛ قد (جګوالی)؛ رخ (مخ)؛ میری (مړ کېږې)؛ مخور (مه خوره)؛ میر (مشر / امیر). ساز (جوړ)؛ خود (خپل) سگ (سپی)؛ تقریر (بیان)؛ شاهد (لیدونکی). سوی (طرف)؛ تیر نظر (د نظر غشی)؛ فگنی (غورځوې).

**لنډیز:** ... غم مه کوه، څکه یوه وخت به بیا هغه دنګه ونه لرونکی، چي ته یې له هجران څخه مرې، ستا امیر سي. د خپل زړه حال دي د هغه (معشوق) سپي ته بیان کړه، بس همدا ستا بیان به ستا د دردمن حال شاهد وي. اې محموده (معشوقه)! که زما خوا د غشي په څېر یو نظر وکړې، نو زه به خپله ستا همدې غشي ته سپر وګرځومه.

| | |
|---|---|
| شهسوار من که آمد ملک خوبی کشورش | بادشاه مسند حسن ست وخوبان لشکرش |
| زما باچا چي د ښکلا ملک د هغه وطن دئ | د ښکلا د تخت باچا دئ او خوبان یې لښکر دئ |
| شادکی گردد دل غمگین بیرویدوست | خرم آنساعت که بینم روی بار دیگرش |
| زما غمجن زړه به د یار له مخ پرته کله خوشحاله سي | خومره به ښه وي هغه وخت چي د هغه مخ یو وار بیا ووینم |
| شاخ گل نازک نباشدچون نهال قدیار | عاقبت روزی باآب دیده آرم بردرش |
| د نهال قدي یار په څېر به د ګل ښاخ نازک نه وي | آخر به یې یوه ورځ د سترګو په اوښکو غېږي ته راولم |
| شمع از سوز درونم سربسر دارد خبر | سوخته برمن دلش زان میرودوداز سرش |
| شمع زما د زړه له سوز څخه پوره خبره لري | پر ما باندي یې زړه وسوځی، څکه یې دود له سره ځي |

**د لغاتو حل:** شهسوار (باچا)؛ آمد (راغلی)؛ خوبی (ښه والی / ښایست)؛ کشور (وطن / هیواد)؛ مسند (تخت)؛ شاد (خوښ)؛ بی روئ (بې مخی)؛ خرم (تازه)؛ بار دیگر (بل وار). عاقبت (انجام)؛ آب (اوبه)؛

دیده (سترګي)؛ در بر (په ځنګ کې / په غېږ کې). شمع (ډیوه / څراغ)؛ سوز (سوځېدل)؛ سوخته (سوځلی)؛ میرود (ځي).

**لنډیز:** د محمود نامې د شعري ټولګي شپاړسم شعر دئ، په دې اوو بیتونو کې شاعر یو ځل بیا د خپل معشوق ستاینه کوي او وایي چې زما معشوق دومره ښکلی دئ چې د ښکلا د ملک باچا ګڼل کیږي او نور ټول ښکلي د هغه لښکریان دي. نو زما غمجن زړه به هغه وخت خوښ او پر آرامه سي چې هغه ښکلی معشوق یو وار بیا ووینم. زما دنګه ونه لرونکی معشوق د ګل تر څانو نازک دئ، زه به یې په انتظار - انتظار اوښکې تویوم، ګوندې په همدې کار سره یې یو ځل بیا ترلاسه کړم. دا چې شمعه زما د زړه په سوز او درد پوره خبره ده، نو پر ما باندې د زړه سوي له امله یې تر سر دودونه وزي...

| | |
|---|---|
| شب همه شب میکنم فریاد و افغان تا سحر | عمرها شد کار من اینست بر خاک درش |
| د شپې ټوله شپه تر سهاره فریاد کوم او چیغې وهم | ډېر عمر وسو چې د هغه د دروازې پر خاورو زما همدا کار دئ |
| شربت شیرین نباشد روز هجران خوشگوار | دردمندی را که باشد تلخ کام از شکرش |
| د هجران په ورځ خواږه شربت (هم) خوندور نه وي | هغه عاشق ته چې تالو یې تریخ وي له شونډو څخه د هغه |
| شد عجب آزرده دل محمود از هجر ایاز | خوش نباشد بیوصال یار تاج و افسرش |
| د ایاز له بېلتون څخه د محمود زړه عجیب خواشینی سو | چې د یار له وصال پرته په تاج او تخت خوښ نه دئ |

**د لغاتو حل:** شب (شپه)؛ همه (ټوله)؛ افغان (فریاد)؛ سحر (سهار)؛ عمرها (عمرونه)؛ شد (سو)؛ خاک (خاوره)؛ درش (دروازه د ده). شیرین (خواږه)؛ هجران (بېلتون / جدایي)؛ خوشگوار (خوندور)؛ تلخ (تریخ)؛ کام (حلق / ستونی). آزرده (زهیر سوی)؛ خوش (خوشحاله)؛ افسرش (تخت د هغه).

**لنډیز:** ... په عمرونو - عمرونو د هغه د دروازې پر خاورو پروت یم او ټوله شپه تر سهاره فریادونه کوم. د کوم عاشق چې حلق او ستونی د هجران او بېلتون په تریخوالي سره تریخ وي، هغه ته خواږه شربت هم خوند نه ورکوي. د ایاز (معشوق) په جدایي سره د محمود (معشوق) زړه دومره غمجن او خواشینی سو چې آن تاج او تخت ورته هیڅ ارزښت نه لري.

| | |
|---|---|
| صبر کن ایدل که گردی از غم هجران خلاص | جان محزون نیز گردد از غم هجران خلاص |
| اې زړه! صبر وکړه چې د بېلتون له غمه خلاص سې | غمجن زړه به هم د بېلتون له غمه خلاص سي |

| | |
|---|---|
| صید آن صیاد گشته مرغ جان بیدلان | مشکلست ایدل که گردی اینچنین آسان خلاص |
| د عاشقانو د روح مرغه د هغه ښکاري ښکار سو | اې زړه! مشکله ده چې داسې په آسانۍ دې خلاص سې |
| صد جفا وجور می بینم زهجر گلرخان | زین جفاکی میشود یارب دل حیران خلاص |
| د گلمخو له بېلتون څخه سل جفاوې او ظلمونه وینم | اې ربه! له دې جفا څخه به کله حیران زړه خلاص سې |
| صابرم در بند زلف یار شاکر هم که من | گشته ام از محنت اندوه بیپایان خلاص. |
| د یار د زلفو په بند کې صبر کوم او شاکر هم یم ځکه زه | د محنت له بې پایانه اندېښنې څخه خلاص سوی یم |

**د لغاتو حل:** محزون (عمجن)؛ نیز (همداسې)؛ صید (ښکار)؛ صیاد (ښکاري)؛ مرغ (الوتونکی / مرغه)؛ اینچنین (دا ډول)؛ آسان (په آسانۍ سره). صد (سل)؛ در بند (په فکر کې)؛ شاکر (شکر کوونکی)؛ محنت (تکلیف / زحمت)؛ اندوه (فکر / اندېښنه).

**لنډیز:** دا د محمود نامې اوولسم شعر دئ چې د فارسي الف باء په اوولسم توري (صاد) سره پای ته رسېږي. په دې شعر کې شاعر خپل زړه ته تسلي او ډاډگېرنه ورکوي، وایي چې اې زړه! صبر وکړه، په همدې صبر سره کېدای سي چې د بېلتون او جدایي له غم څخه خلاص سې. د عاشقانو د روح مرغه د هغه بې رحمه ښکاري ښکار دئ چې له هغه څخه خلاصون مشکل دئ. گلمخي معشوقان په سلگونو ظلمونه او ستمونه راباندې کوي، اې مهربانه خدایه! زما حیران زړه به کله له دې ظلمونو او جفاؤ څخه خلاص سي. د معشوق د زلفو په بند کې به صبر وکړم او شکر کوونکی به هم واوسم، ځکه په دې سره به د ابدي خواریو او اندېښنو څخه خلاص سوی یم...

| | |
|---|---|
| صانع بیچون زلطف خود درین زندانسرا | یوسف عیش مرا کرد از غم اخوان خلاص |
| بې مثاله پیدا کوونکې له خپلې مهربانۍ څخه په بندیخانه کې | زما د ژوند یوسف د ورونو له غمه خلاص کړ |
| صانع آدم که پیدا کرد دور ماه وچرخ | ساخت ما را در همان دم از غم دوران خلاص |
| د آدم پیدا کوونکي چې د سپوږمۍ او آسمان دور پیدا کړ | هماغه وخت یې زه د زمانې له غمه خلاص کړم |

| صاف می محمود را روزی اگر بخشد ایاز | از غم دوران شود آن بیسر وسامان خلاص |
| --- | --- |
| ایاز که یوه ورځ محمود ته صفا شراب و بخښي | بې سر وسامانه به د زمانې له غم څخه خلاص سي |

**د لغاتو حل:** صانع (جوړوونکی / را منځ ته کوونکی)؛ بیچون (بې مثاله)؛ لطف (مهرباني)؛ زندان سرا (بندیخانه)؛ عیش (ژوند / آرامتیا)؛ اخوان (ورونه). آدم (حضرت آدم علیه السلام)؛ ماه (سپوږمۍ)؛ چرخ (آسمان)؛ ساخت (جوړ)؛ هماندم (همدغه وخت)؛ دوران (زمانه). صاف (صفا / پاک)؛ روزی (یوه ورځ)؛ بخشد (بخښي).

**لنډیز:** ... اې بې مثاله پیدا کوونکې! په خپل فضل او مهربانۍ سره په دې بندیخانه کې زما د ژوند یوسف د بې رحمه ورونو له غم څخه وژغورې. د حضرت آدم علیه السلام خالق چې کله د سپوږمۍ او آسمان زمانه پیدا کړه، هماغه وخت بې زه د زمانې له غمه خلاص کړم. ایاز (معشوق) که چیري یوه ورځ محمود (عاشق) ته صفا شراب ورکړي، نو بې له سامانه او اسبابو به د زمانې له غمه خلاص سي.

| ضرورتست که حال ترا بیار کنم عرض | غم نهان تو ایدل باشکار کنم عرض |
| --- | --- |
| اړتیا ده چي ستا حال یار ته وړاندي کړم | اې زړه! ستا پټ غم به ښکاره سره وړاندي کړم |
| ضمیر دوست چو جام جمست ایدل زار | چه حاجتست که اظهار حال زار کنم عرض |
| اې ناتوانه زړه! د یار زړه لکه جام جم دئ | څه اړتیا ده چي د ناتوانۍ د حال اظهار وړاندي کړم |
| ضمان عیش تو پیر مغان شدست ایدل | زبار رنج تو پیش هزار بار کنم عرض |
| اې زړه! ستا د ژوند ضامن پیرمغان سوئ دئ | د هغه په مخ کي به ستا د رنځ بار زر واره وړاندي کړم |
| ضریر گشت رقیب از قضا من ازوی زار | زیاوه گوئی آنسگ به پیش یار کنم عرض |
| رقیب د خدای په حکم ړوند سو، زه تر ده ناتوانه | د هغه بې خایه ویل به د یار په مخ کي وړاندي کړم |

**د لغاتو حل:** ضرورت (اړتیا)؛ عرض (وړاندي)؛ نهان (پټ)؛ آشکار (ښکاره)؛ ضمیر (زړه)؛ زار (ناتوانه / عاجز)؛ حاجت (اړتیا)؛ اظهار (څرگند)؛ ضمان (ضامن)؛ پیر مغان (د آتش پرستو مشر)؛ رنج (تکلیف / رنځ). ضریر (ړوند)؛ زیاوه گوئ (بې فایدې خبري کوونکی / بې معنی ږغېدونکی).

**لنډيز:** دا د محمود نامې اتلسم شعر دئ، په دې شعر کې شاعر له خپل زړه سره په راز ونياز کې هغه ته داډګېرنه ورکوي، وايي چې اې زړه! اړ يم چې ستا پټ حال ښکاره کړم او معشوق ته يې بيان کړم. خو اې ناتوانه زړه! ته عاجز او ناتوانه يې او د معشوق زړه د جام جم په خوندونو کې مشغول دئ، نو څه اړتيا ده چې ستا د ناتوانۍ حال هغه ته بيان کړم. اې زړه! ستا د ژوندانه ضامن اوس پير مغان (د اور لمانځونکو مذهبي مشر) سوی دئ، زه به د هغه په مخ کې زر واره ستا درد او تکليف بيان کړم. رقيب خو د خدای په حکم سره ړوند سو، خو زه تر هغه عاجز يم، د هغه بې ځايه خبري به خامخا يار ته بيانوم...

| | |
|---|---|
| ضبع صفت چو بگرد در قیب بردر آن | هزار بار بآن سر وگلعذار کنم عرض |
| رقيب چې د کوړ غونډي د هغه يار پر دروازه ګرځي | زر واره به هغه سرو ګلعذار ته عرض کړم |
| ضعیف گشته ام از غم چنان شود آخر | هزار بار بآن سر وگلعذار کنم عرض |
| له غم څخه کمزوری سوی يم آخر به داسي وسي | زر واره به هغه سر وګلعذار ته عرض کړم |
| ضرر رسیدم مرا از ایاز ای محمود | ضرور گشت که حال ترا بیار کنم عرض |
| اې محموده ! ما ته له اياز څخه زيان ورسېدی | ضروري سوه چې ستا حال و يار ته وړاندي کړم |

**د لغاتو حل:** ضبع (کوړ، يو ډول حيوان دئ)؛ هزار (زر)؛ ګلعزار (ګلمخی). ضعيف (کمزوری)؛ شود (کيږي)؛ ګشت (سو / وګرځېدی)؛ ترا (ستا / تا لره)؛ بيار (دوست ته).

**لنډيز:** ... رقيب چې د کوړ په څېر د يار پر دروازه ګرځي را ګرځي، زره واره به يار ته دا حال بيان کړم. زه د يار له غم څخه ډېر کمزوری سوی يم. اې محموده (عاشقه)! اياز (معشوق) ما ته زيان رسوي، نو مجبور يم چې ستا دا حال يار ته بيان کړم.

| | |
|---|---|
| طاقت من طاق گشت از غم آن سبز خط | یکسر موئ بمن رحم ندارد فقط |
| زما طاقت د هغه شين خطي له غم څخه جلا سو | چې د ورېښته په اندازه رحم پر ما نه لري فقط |
| طور وفا پیش گیر رسم جفا را گذار | زانکه زخوبان خوشست درهمه جا این نمط |
| د وفا تګلاره ونيسه د جفا رواج پرېږده | ځکه چې له معشوقانو څخه په هر ځای کې دا طريقه ښه ده |

| | |
|---|---|
| طرفه ترست اینکه یار آمده از راه لطف | سوئ من خاکسار کرد مگر ره غلط |
| دېره عجیبه ده دا چي یار د مهربانی له لاري راغلی | زما عاجزه پر خوا، مگر لار یې غلط کړې وي |
| طالب دیدار دوست دمبدم از آب چشم | آتش هجران عجب میکشد از دل چو بط |
| گړی په گړی په اوښکو سره د یار د دیدن غوښتونکی | له زړه څخه د هجران اور عجیبه وژني لکه هیلی |

**د لغاتو حل:** طاقت (توان)؛ طاق (یوازي / جلا)؛ سبز (زرغون)؛ فقط (یوازي / بس). طور (ډول / طریقه)؛ گیر (ونیسه)؛ رسم (رواج / دستور)؛ همه (ټوله)؛ جا (ځای)؛ نمط (تگلاره / دود). طرفه (عجیبه / نادره)؛ آمده (راغلی)؛ راه (لار)؛ لطف (مهرباني)؛ سوئ (لوری / طرف)؛ ره (لاره). طالب (غوښتونکی)؛ دیدار (لیدل)؛ دم بدم (گړی په گړی)؛ بط (هیلی).

**لنډیز:** دا د محمود نامې نولسم (نونسم) شعر دئ، په دې شعر کي شاعر د خپل زړه درد بیانوي، وایي چي زه نور د هغه یار د غم د زغملو توان نه لرم چي پر ما باندي د یوه ورېښته په اندامه رحم هم نه لري. اې معشوقه! جفا پرېږده او وفا غوره کړه، ځکه چي له معشوقو سره په هر ځای کي همدا طریقه ښه ایسي. عجیبه خو دا ده چي یار په مهربانی سره زما پر خوا راغلی، وروسته پوه سوم چي لار یې غلطه کړې وه. عجیبه ده، د یار د دیدن غوښتونکی څنگه شېبه په شېبه له زړه څخه د هجران اور وژني...

| | |
|---|---|
| طوبی باغ بهشت با قد تو کوته است | آب دو چشم درو هست روان همچو شط |
| د جنت د باغ ونه ستا له قد څخه کمه ده | اوبه د دوو سترگو پکښې بهېږي لکه ویاله |
| طرفه عذارش زخال زیب دگر یافته | هست بلی دائما زینت خط از نقط |
| د هغه بارخوگانو له خال څخه عجیبه ښکلا موندلې ده | هو! همېشه د خط ښکلا له ټکو څخه وي |
| طئ نه کنم دفتر عشق تو محمودوار | بر سر حرف وفا گرچه کشیدی تو خط |
| د محمود غوندي به ستا د عشق کتاب پای ته ونه رسوم | که څه هم تا د وفا پر توري باندي خط کش کړی |

**د لغاتو حل:** طوبی (یو ډول جنتي ونه ده)؛ بهشت (جنت)؛ کوته (کمه / لنډه)؛ آب (اوبه)؛ شط (ویاله). طرفه (عجیبه / حیرانوونکې)؛ عذار (مخ / بارخوگان / اننگي)؛ بلی (هو)؛ دائماً (همېشه/ تل)؛ زینت

(ښایست)؛ نقط (نکتې / ټکي). طي (پای ته رسول / تر پښو ایستل)؛ دفتر (کتاب / کتابچه).

**لنډیز:** ... ستا ونه آن د جنت تر ونې هم لوړه ده او ستا له پاره زما د سترګو اوښکې د ویالې په څېر بهېږي. د یار بارخوګان (اننګې) په خالونو سره نور هم ډېر ښکلي سوي، هو! خط هر وخت په ټکو سره ښکلی وي. زه د محمود (عاشق) په څېر ستا د عشق کتاب پای ته ونه رسوم یعني ستا عشق به پرې نه ږدم، که څه هم تا هر ځای د وفا پر توري باندې خط کش کړی دئ او خراب کړی دي دئ. یعنې هیڅ وفا نه کوې.

| | |
|---|---|
| ظلم کردی پیشهٔ خود از تو یاران را چه حظ | گر نباشد عدل از تو دوستدار ان را چه حظ |
| ظلم دي خپل خوی جوړ کړی ستا څخه یارانو ته څه برخه | که چیري ستا څخه عدل نه وي، د دوستانو به څه خوند وي |
| ظالما نامهربانا مرهم جان نیستی | مهر از تو گر نباشد دلفگاران را چه حظ |
| اې ظالمه نامهربانه ! ته د روح مرهم نه یې | که چیري ستا محبت نه وي د زړه زخمیان به څه خوند وي |
| ظهر گفتی باز آیم و دیگر نامدی | شام غم بی ماه رویت غمگساران را چه حظ |
| ماپښین دي وویل چي بیا راځم او ماخګر هم نه راغلې | ماښام به ستا سپوږمۍ مخي پرته د غمجنو څه خوند وي |
| ظاهرا کم می بر آید از تو امید کسی | نا امیدی چون بود امیدواران را چه حظ |
| په ښکاره ستا څخه د هیچا امید نه ترلاسه کېږي | نا امیدي چي وي، د امید لرونکو به څه خوند وي |

**د لغاتو حل:** ظلم (تېری)؛ پیشه (خوی)؛ خود (خپل)؛ حظ (حصه / برخه)؛ عدل (برابري / انصاف)؛ ظالما (اې ظالمه)؛ مرهم (دارو / دوا)؛ جان (روح)؛ مهر (محبت)؛ دلفگاران (زخمي زړي). ظهر (ماپښین)؛ باز (بیا)؛ می آیم (زه راځم)؛ نامدی (نه راغلې)؛ شام (ماښام)؛ ماه (سپوږمۍ / میاشت). ظاهرا (په ښکاره ډول)؛ بر آید (راځي).

**لنډیز:** دا د محمود نامې شلم شعر دئ، په دې کي شاعر له خپل معشوق څخه د ګیلې په توګه وایي چي تا خو ظلم او جفا خپل عادت جوړ کړی دئ، ستا څخه به یارانو ته څه حصه ورسېږي. دوستان ستا څخه د عدل او انصاف غوښتونکي دي، که چیري ته پر هغوی باندې رحم ونه کړې او له عدل څخه کار وانه خلې، نو د هغوی به څه خوند وي. اې ظالمه او نامهربانه معشوقه! ته د روح مرهم نه یې، عاشقان په زړونو زخمي دي او ستا مینې او محبت ته اړتیا لري، که چیري ستا محبت نه وي، نو د هغوی به څه

خوندي وي. ماپښين دي ژمنه وکړه چې بېرته راځم، خو ماخیګر هم را نه غلې. غنچن عاشقانو ستا سپوږمۍ مخي پرته شپه نه سي سبا کولای، که چیري ته رانه سې، نو د هغوی به څه حال وي. ستا څخه خو عاشقان نا امیده دي او هیڅ د رحم او مهربانۍ امید نه درڅخه لري، ځوک چې ستا څخه امید لري هغوی ته به نو ستا څخه څه حصه ورسیږي...

| | |
|---|---|
| ظرف جان دردمندان پر ز عشق روی تست | خالی از عشق تو بودن بیقرار انراچه حظ |
| د عاشقانو د روح لوښي ستا د مخ له عشقه ډک دي | ستا له عشقه خالي کېدل د بې قرارو به څه خوند وي |
| ظاهرست ای گل که آمد عاشق تو صد هزار | با یکی اما نمی خندد هزار انراچه حظ |
| اې ګله! ښکاره ده چې ستا عاشقان سل زره سوي دي | له یوه سره لا نه خاندي د زرو به څه خوند وي |
| ظهر من بشکست چون محمود از جور ایاز | یارب از آزار موری شهسوار انراچه حظ |
| ملا مې د محمود په شان د ایاز له ظلمه ماته سوه | اې ربه! د مېږیانو له آزارولو څخه به باچاهانو ته څه خوند وي |

**د لغاتو حل:** ظرف (لوښی)؛ دردمندان (عاشقان / درد لرونکي)؛ پُر (ډک)؛ روی (مخ). صد (سل)؛ هزار (زر)؛ یکی (یو)؛ نمی خندد (نه خاندي). ظهر (ملا / شا)؛ شکست (مات)؛ جور (جفار / ظلم)؛ موری (مېږی)؛ شهسوار (باچا).

**لنډیز:** ... د دردمنو عاشقانو د روح لوښي ستا له عشق او محبت څخه ډک دي، ستا له عشقه څخه د خالي پاته سوو بې قرارو به څه خوند وي. اې معشوقه! ښکاره خبره ده چې ستا عاشقانو په زرګونو دي، خو دا چې ته یوه ته هم نه خاندې، نو زرګونو ته به څه ورسیږي. زه لکه مېږی او یار مې لکه باچا، زما ملا د محمود (عاشق) په څېر د ایاز (معشوق) له ظلمه ما ته سوه، اې خدایه! د مېږیانو په آزارولو سره به باچاهانو ته ګټه ورسیږي.

| | |
|---|---|
| عیب باشد گر فروزم پیش روی یار شمع | زانکه گردد بیفروغ از شرم آن رخسار شمع |
| عیب به وي که بله کړم د یار په مخ کي شمعه | ځکه چې بې قدره به سي له شرمه د هغه مخ څخه شمعه |
| عام و خاص از بهر آن میسوزدش کز حسن خویش | کرد یکشب پیش رویش شمعٔ اظهار شمع |
| عام او خاص بې سوځي ځکه چې له خپل حسن څخه یې | یوه شپه کړی وو د هغه په مخ کي لږ څه اظهار شمعي |

عاشق بیدل چو سازد شمع روشن شام هجر
بې زړه عاشق چي د بېلتون په ماښام شمع روښانه کړي

میکند بر حال زارش گریه های زار شمع
د هغه د عاجزۍ پر حال باندي ژړا کړي په زار شمعه

عندلیب از عشق گل جان میدهد پروانه هم
بلبل له میني څخه د گل روح ورکوي او پروانه هم

زار میسوزد چو افروزد رخ گلنار شمع
په عاجزۍ سوځي کله چي روښانه کړي سور مخې شمعه

**د لغاتو حل:** عیب (نیمگړتیا)؛ فروز (بلول / روښانه کول)؛ بی فروغ (تاریکه / رڼا نه لرونکې)؛ رخسار (مخ). می سوزد (سوځي)؛ خویش (خپل)؛ یکشب (یوه شپه)؛ شمه (یو څه اندازه / لږ څه). گریه (ژړا)؛ عندلیب (بلبل)؛ افروزد (بلوي).

**لنډيز:** دا د محمود نامې یو ویشتم اووه بیته لرونکی شعر دئ چي د (عین) په توري سره پای ته رسېږي، په دې شعر کي شاعر د خپل معشوق ستاینه کوي او د هغه د ښکلا دعوه کوي، وایي چي که چیري د یار په مخ کي شمع بله کړم، نو دا به بده خبره وي چي څکه چي د یار په مخ کي شمع له شرمه څخه بې قدره او شرمینده سي. شمعي یو وخت د یار په مخ کي د خپل ښایست بې ځایه اظهار کړی وو، له همدې امله یې خاص او عام سوځي، څکه دا یې ډېره لویه گناه وکړه چي د ښکلي یار په مخ کي یې خپل ځان ښایسته وگڼی. عاشق چي کله د هجران په ماښام شمع روښانه کړي، نو د هغه پر دې خوار وزار حالت باندي شمع په زار زار ژاړي. بلبل د گل له محبت او میني څخه خپل روح ورکوي او پتنگ پر شمعي باندي په عاجزۍ سره سوځي. یعني هر عاشق خپل خپل معشوق ځان قربانوي...

عیش ازین خوشتر کجا باشد که در شام وصال
تر دې به ښه ژوند چیري وي چي د وصال په ماښام

گردد از مهر رخ او مطلع الانوار شمع
شمعه د هغه د مخ له نور څخه د نور د راخلتو ځای وگرځي

عمرها شد از گناه آنکه لاف حسن زد
عمرونه وسوه له دې گناه څخه چي د ښکلا لافه یې وهلې وه

هست آویزان به پیش هر سر بازار شمع
ده ځړېدلې په مخ کي د هر بازار پر سر شمعه

عهد گل محمود می مینوش از دست ایاز
د گل په زمانه کي اې محموده د ایاز له لاسه شراب چیښه

چون بر افروزد بهر سو لاله و گلذار شمع
کله چي روښانه کړي وهر لوري ته لاله او گلذار شمعه

**د لغاتو حل:** عیش (ژوند / آرامي)؛ خوشتر (ډېر ښه)؛ مهر (لمر / نور)؛ مطلع (د راختلو ځای). لاف (باته / بې ځایه دعوه)؛ زد (وهلې)؛ آویزان (ځوړند / ځړېدلی). عهد (زمان / دوَر)؛ مینوش (نوشوي / چیښي)؛ بهر سو (هري خوا ته).

**لنډیز:** ... تر دې به نو بل ښه ژوند چیري وي چي شمع د یار د مخ له نور څخه د نور د راختلو ځای جوړ سي. یعني چي شمعه د یار د مخ له نور څخه نور اخلي او بلېږي. دا چي شمعي یو وخت د ځان د ښکلا بې ځایه دعوه کړې وه، د همدې گناه له امله عمرونه کیږي چي د هر بازار پر سر ځړېږي. اې محموده (عاشقه)! د گل په زمانه کي چي کله گلونه هر لوري ته وغوړېږي، د ایاز (معشوق) د لاس شراب نوشوه (چیښه).

| | |
|---|---|
| غیر را چند نهی ای مه من بر جان داغ | چند سوزی دل غمدیدهٔ ما رازان داغ |
| تر څو به د نورو له پاره اې سپوږمۍ زما پر روح داغ ږدې | تر څو به زما غم لړلی زړه له همدې داغه سوځوې |
| غرض اینست که بر جان ودلم لاله رخی | سوزد از آتش عشق رخ خود پنهان داغ |
| غرض دا دئ چي زما پر روح او زړه باندي لاله مخي | پټ داغ (اینبی او) د خپل مخ د عشق له اور څخه یې سوځوي |
| غم نداریم اگر داغ نهی بر دل ما | خرم آن لحظه که جانان بنهد بر جان داغ |
| که چیري زما پر زړه داغ کښېږدي پروا نه لرم | ښه به وي هغه شېبه چي جانان (مي) پر روح داغ کښېږدي |
| غائب از دیده غمدیده اگر گردد یار | زود باشد که نهد بر دل بیسامان داغ |
| که یار له غمجنو سترگو څخه پټ وگرځي | ژر به وي چي کښېږدي پر زړه د بې سامانه داغ |

**د لغاتو حل:** چند (څو)؛ سوزد (سوځي)؛ آتش (اور)؛ پنهان (پټ). نداریم (نه لرم)؛ خرم (تازه / ښه)؛ لحظه (شېبه / گړی). غائب (پټ)؛ زود (ژر). نهد (ږدي)؛ داغ (تپ / د زخم نښه).

**لنډیز:** دا د محمود نامې دوویشتم شعر دئ او د (غین) په حرف سره یې د بیتونو قافیه پای ته رسېدلې ده. په دې شعر کي هم شاعر له خپل معشوق څخه د گیلې په توگه وایي چي اې معشوقه! تر څو به نورو (اغیارو) له پاره ما ته پر زړه باندي داغونه راکوې او تر څو به مي زړه له همدې داغونو سره سوځې؟ گلمخي معشوق زما پر زړه او روح باندي پټ داغ اینبی دئ او د خپل عشق په اور سره یې سوځي. زه په

دې پروا نه لرم چې یار مې پر زړه داغ کېښېږدي، بلکې هغه شېبه به نوره هم ښه وي چې یار مې پر روح او زړه باندې داغ کېښېږدي. که یار زما له غمجنو څخه ستړګو څخه یوه شېبه هم پټ سي، نو په همدې ي.ه شېبه کې به مې پر زړه باندې داغ کېښېږدي...

| | |
|---|---|
| غوطها میخورم از دست تو در بحر سرشک | که بماند بدل ریش من حیران داغ |
| ستا له لاسه د اوښکو په دریاب کې غوټې خورم | چې پاته به سي زما حیران پر زخمي زړه باندې داغ |
| غصها چون نخورد عاشق غمدیده که یار | بر دل ریش رقیبان بنهد آسان داغ |
| غمجن عاشق به ولې غوسې نه خوري چې یار | د رقیبانو پر زخمي زړونو په آسانۍ سره ږدي داغ |
| غالبًا بر دل محمود دگر بار ایاز | می نهد ز آتش جان سوز غم هجران داغ |
| په ډېر ګمان چې د محمود پر زړه باندې یو وار بیا ایاز | ږدي د هجران د غم له روح سوځوونکې اور څخه داغ |

**د لغاتو حل:** غوطها (غوټې / په اوبو کې ډوبېدل)؛ دل ریش (زخمي زړه). بحر (دریاب)؛ سرشک (اوښکې)؛ غصها (غوسې)؛ نخورد (نه خوري)؛ بنهد (ږدي). دگر بار (بل ځل)؛ آتش (اور)؛ هجران (بېلتون / جلاوالی / جدايي).

**لنډيز:** ... ستا له لاسه په اوښکو کې ډوب - ډوب یم چې په دې سره به زما پر زخمي زړه باندې داغ پاته سي. عاشق به ولې نه په قهر کېږي چې یار د رقیبانو پر زړونو باندې داغ (مرهم) ږدي. په ډېر ګمان چې ایاز (معشوق) یو وار بیا د محمود (معشوق) پر زړه باندې د هجران د سوځوونکې اور داغ ږدي.

| | |
|---|---|
| فرخ آن لحظه که ساقی بدهد بادهٔ صاف | که من دلشده دارم ز غم هجر مصاف |
| ښه به وي هغه شېبه چې ساقي صفا شراب راکړي | چې زه عاشق د هجران له غم سره جنګ لرم |
| فرصت عیش نگهدار منه جام ز کف | که به از بادهٔ گلگون نبود وجه کفاف |
| د ژوند فرصت غنیمت وګڼه جام له لاسه مه ږده | ځکه چې له سرو شرابو څخه ښه نه وي وجه د ګذران |
| فارغ البال مئ لعل بنوشیم مدام | که خدا عفو کند گرچه نداریم عفاف |
| په داده زړه سره تل سره شراب چښنم | چې خدای به عفوه وکړي که څه هم نه لرم پاکي |

| فائض النور چو خورشید رخ خوبانست | دعوئ حسن اگر ماه کند باشد لاف |
| --- | --- |
| د خوبانو مخ د لمر غوندي نور تویوونکی دئ | سپوږمی که د ښکلا دعوه وکړي، لافه به وي |

**د لغاتو حل:** فرخ (خوشحالي / ښه)؛ آن لحظه (هغه شیبه)؛ باده (شراب). فرصت (خلاصیت / فراغت)؛ نگهدار (وساته / وشمېره)؛ منه (مه ږده)؛ کف (لاس / ورغوی)؛ گلگون (گلابي رنگ / سور رنگ)؛ کفاف (گذران / ورځنی لگښت). فارغ البال (داډه زړی / آرام / بې غمه)؛ مدام (همېشه)؛ عفو (بخښنه)؛ عفاف (پاک لمني / سپېڅلتیا). فائض (لوروونکی / تویوونکی)؛ خورشید (لمر)؛ لاف (بې ځایه دعوه / لویه خبره).

**لنډیز:** دا د محمود نامې دروېشتم شعر دئ، په دې شعر کي شاعر یا لیکوال خپل خیالات بیانوي، وایي چي څومره ښه به وي هغه وخت چي معشوق را ته صفا شراب راکړي او زه د هجران له غم سره جنگېږم. د ژوند فرصت او فراغت غنیمت وگڼه او جام له لاسه مه ږده، ځکه چي د گذران وجه تر سرو شرابو ښه نه ده. زه همېشه په بې غمه زړه سره شراب چیښم، ځکه امید لرم چي خدای پاک به عفوه را ته وکړي، که څه هم سپېڅلتیا او پاکي نه لرم. د خوبانو او معشوقو مخونه د لمر په څېر ځلا کوونکي وي، سپوږمی که د هغوی په وړاندي د ښکلا دعوه وکړي، دا به یوه بې ځایه دعوه او باته وي...

| فال از مصحف روئی تو هر آنکس که گرفت | هست بر وجه حسن شیوهٔ او نیست خلاف |
| --- | --- |
| ستا د مخ له کتاب څخه چي هر چا فال نیولی دئ | هغه پر ښه وجه دئ، طریقه یې پر خلاف نه ده |
| فهم نیکو نکنی زانکه خلل خواهد بود | چون ز من حرف زند با تو حریف حرّاف |
| د ښه والي فکر ونه کړې، ځکه چي خلل به وي | کله چي زما په اړه درواغجن رقیب ستا سره خبري کوي |
| فرق در صومعه و دیر مغانست ای شیخ | گرچه محمود سوی دیر رود دار معاف |
| اې شیخه! په عبادتخانه او بت خانه کي فرق دئ | که چیري محمود د بت خانې خوا ته ځي معاف یې کړه |

**د لغاتو حل:** فال (شگون / وړاندوینه)؛ مصحف (کتاب)؛ شیوه (طریقه / تگلاره). فهم (فکر / سوچ)؛ خلل (گډوډي / ویجاړي)؛ حریف (رقیب)؛ حرّاف (چمپاز / فرېب کاره). فرق (توپیر / جلالوالی)؛ صومعه (خانقاه / عبادت خونه)؛ دیر (بت خانه)؛ مغان (آتس پرستان / اور لمانځونکي).

**لنډيز:** ... ستا د مخ په کتاب کې چې هر چا فال نيولی دئ، يعني هر چا چې ستا مخ ليدلی دئ، هغه سمه لار دئ او طريقه د هغه پر خلاف نه ده. کله چې رقيب ستا سره زما په اړه خبري کوي، نو پر هغه باندي باور مه کوه، ځکه چې د هغه خبري درواغ دي. اې شيخه! عبادتخانه او بت خانه فرق سره لري، که محمود د بت خانې خوا ته ځي، معاف يې کړه.

| | |
|---|---|
| قضا فگند مراباز در بلائی فراق | اسیر بند جفا کرد وبتلائی فراق |
| تقدير بيا د بېلتون په بلا کې وغورځولم | د جفا د بند بندي يې کړم او په بېلتون يې اخته کړم |
| قرار داده ام ایدل بصبر در غم هجر | که غیر صبر ندیدم دگر دوائی فراق |
| اې زړه! د هجران په غم کې مې په صبر سره قرار ورکړی دئ | چې بې له صبر څخه مې د بېلتون بله دوا ونه ليدله |
| قدم بکلبۂ من گر نهی زراه کرم | شود خلاص دل خسته از جفائی فراق |
| که د مهربانۍ له مخي زما قدم په کوډله کې کښېږدې | زخمي زړه به مې د بېلتون له ظلمه خلاص سي |
| قبول کن که بنالدا گرچه باشد سنگ | بگوش هر که رسد همچو من صدائی فراق |
| ومنه چې وبه ژاړي که څه هم ډبره وي | د هر چا تر غوږه چې زما غوندي د بېلتون آواز ورسيږي |

**د لغاتو حل:** قضا (الهي پرېکړه / تقدير)؛ فراق (بېلتون / بېلوالی / جدايي)؛ مبتلا (اخته / گرفتار)؛ اسير (بندي). داده (ور کړی)؛ هجر (جلا والی / بېلتون). کلبه (کوډله)؛ خسته (زخمي). بنالد (وژاړي)؛ سنگ (ډبره)؛ گوش (غوږ)؛ همچو (په مثال سره).

**لنډيز:** دا د محمود نامې ځلرويشتم شعر دئ او د (قاف) په حرف سره پای ته رسېدلی دئ، په دې شعر کې شاعر د خپل زړه درد او سوز بيانوي، وايي چې تقدير يو ځل بيا د بېلتون په بلا اخته کړم او د جفا په بنديخانه کې يې بندي کړم. اې زما عاجزه زړه! د بېلتون په غم کې مې يوازې له صبر څخه کار اخيستی دئ، ځکه چې له صبر پرته مې د جدايي بله دوا نه ده موندلې. اې معشوقه! که د مهربانۍ له مخي يو ځل ستا کوډلې ته ما ته د ننوتلو اجازه راکړې، نو هغه وخت به مې زړه د بېلتون له ظلمه خلاص سي. د هر چا تر غوږه چې زما د بېلتانه له سوزه ډک فرياد ورسيږي، نو ته باور وکړه چې وبه ژاړي، که څه هم ډبره وي...

| | |
|---|---|
| قتیل نیست کسی همچو من ز خنجر عشق | کجاست خوارتر از من ز زخمهائی فراق |
| زما په څېر څوک د عشق په خنجر نه دئ وژل سوی | تر ما به ډېر د بېلتون په زخمونو خوار چیري وي |
| قدیم محنت هجر تو می کشم من زار | قدم بنه بخدا سوی بینوائی فراق |
| زه ناتوانه له پخوا څخه ستا د بېلتون محنت گالم | ستا دي په خدای قسم وي د بېلتون د بېنوا پر خوا قدم کښېږده |
| قسم بخاک در بارگاه او محمود | که آبروی من آید ز گریهائی فراق |
| اې محموده! د هغه د دربار په خاورو دي قسم وي | چي زما عزت د بېلتون له ژړاوو څخه راځي |

**د لغاتو حل:** قتیل (وژل سوی)؛ کجا (چیري)؛ زخمهای (زخمونه). قدیم (پخوانی)؛ می کشم (زغمم)؛ بخدا (په خدای / قسم په خدای). قسم (لوړه / سوگند)؛ خاک (خاوري)؛ بارگاه (دربار)؛ آبرو (عزت)؛ گریه های (ژړاوي / فریادونه).

**لنډیز:** ... زما په څېر به څوک د عشق په خنجر وژل سوی وي او چیري به وي چي داسي څوک چي تر ما زیات د بېلتون زخمونو خوړلی وي. اې معشوقه! زه عاجز له پخوا څخه ستا د بېلتون غمونه گالم، ستا دي په خدای قسم وي، زما خوا ته خو کله نا کله راځه. اې محموده (عاشقه)! زما دي د هغه د دروازې په خاورو قسم وي چي زما عزت او آبرو د یار د بېلتون د فریادونو په سبب راغلی دئ.

| | |
|---|---|
| کاش یکشب مه روی تو شود شمع فلک | تا زند چرخ چو پروانه بگرد تو ملک |
| کاش چي سپوږمۍ مخي یوه شپه ته د آسمان څراغ سي | تر څو ملائکي ستا پر شا وخوا لکه پتنگ وڅرخیږي |
| گوهر هر کس وناکس شود از می پیدا | نتوان یافت دگر به زمی لعل محک |
| د هر کس او ناکس اصل له شرابو څخه پیدا کیږي | تر سرو شرابو بل ښه جلا کوونکی نه پیدا کیږي |
| کی توان یافت یکی مثل تو در عرصهٔ حسن | گلرخان گرچه هزارند پریرویان لک |
| د ښکلا په میدان کي کله یو څوک ستا په شان کېدای سي | که څه هم گل مخي په زرگونو او شاپېرۍ په لکونو دي |
| گر نقاب از رخ زیبائی تو افتد ناگاه | خلق عالم همه حیران تو گردد بیشک |
| که ناڅاپه ستا له ښکلي مخ څخه نقاب ولوېږي | له شک پرته به د ټول عالم خلگ تا ته حیران سي |

**د لغاتو حل:** کاش (کاشکي / کاش چي)؛ مه (سپوږمی / میاشت)؛ فلک (آسمان عربي لفظ دئ)؛ چرخ (آسمان فارسي لفظ دئ)؛ پروانه (پتنږ / پتنگ)؛ گرد (شا وخوا). گوهر (ملغلره، دلته يې مطلب ذات دئ)؛ کس ونا کس (ښه او بد)؛ محک (د زرو تر منځ بېلوونکې ډبره). کی (کله)؛ یکی (یو)؛ عرصه (میدان / ډگر)؛ پري رويان (هغه چي د شاپېرۍ غوندي مخ لرونکي وي). نقاب (څادر / حجاب)؛ ناگاه (ناڅاپه / نابېره)؛ همه تول).

**لنډيز:** دا د محمود نامې پنځه ويشتم شعر دئ، په دې شعر کي شاعر خپل معشوق ته په خطاب کي د خپل زړه ځيني ارمانونه بيانوي او وايي چي اې زما د سپوږمۍ غوندي ښايسته معشوقه! کاش چي يوه ورځ ته د آسمان څراغ سې، تر څو فرشتې دي پر شا وخوا طواف وکړي. د هر اصل او کم اصل ذات په سرو شرابو (حقيقي عشق او محبت) سره کيږي، تر دې بل ښه بېلوونکی او جلا کوونکی نه سته. که څه هم ښکلي او ښايسته په زرگونو او لکونو دي، خو د ښکلا په ميدان کي ستا غوندي هيڅوک ښکلی او ښايسته نه دئ. که چيري ته له خپل ښکلي مخ څخه يو ځل ناڅاپه نقاب ليري کړې، نو بې له شکه به د ټول عالم خلگ ستا ښايست ته حيران او گوته په غاښ پاته سي...

| | |
|---|---|
| کفر زلفین تو برهم زده راه اسلام | لشکر خط تو چون گرد بر آمد بکمک |
| ستا د زلفو کفر د اسلام لار ووهله | ستا د خط لښکر چي کله شاوخوا په کومک راووتی |
| کرد چشم تو به تیر مژه مجروح دلم | بر سر آن لب چون قند بپاشید نمک |
| ستا سترگو د بڼو په غشي زما زړه زخمي کړ | د هغو شونډو پر سر چي لکه قند مالگه وپاشي |
| گوش بر گفته کس نیست ترا از سر ناز | حال محمود چسان باتو بگویم یک یک |
| د ناز په وجه ته د چا پر وينا غوږ نه نيسې | د محمود حال به تا ته څنگه يو په يو ووايم |

**د لغاتو حل:** زلفین (زلفي / اوږده وربښتان)؛ برهم (گډ وډ)؛ راه (لار)؛ کمک (مرسته). چشم (سترگي)؛ تیر (غشي)؛ مژه (بانه)؛ مجروح (زخمي)؛ لب (شونډي)؛ نمک (مالگه). گوش (غوږ)؛ گفته (وينا / خبره)؛ از سر ناز (د ناز په وجه)؛ چسان (څه ډول / څنگه).

**لنډيز:** ... کله چي ستا د خط لښکر چاپېره ستا د زلفو په کومک راووتی، نو ستا د زلفو کفر (تور والي)

د اسلام (زما د سلامتی) لار ووهله او زه یې تباه او برباد کړم. ستا د سترګو د بنو غشو زه په زړه داسې زخمي کړم لکه پر زخمونو چې مالګه ودوړوې. ته خو له ډېره نازه د چا خبرو ته غوږ نه نیسې، نو زه به څنګه د محمود (عاشق) حال درته بیان کړم.

| | |
|---|---|
| لب لعل تو هست آرام دل | بر آید ازو عاقبت کام دل |
| ستا سرې شونډې د زړه آرام دئ | له هغه څخه به آخر د زړه مراد حاصلېږي |
| لبالب کجا میکند دور چرخ | مرا از مئ لعل او جام دل |
| د آسمان گردش کله ډکولای سي | زما د زړه جام د هغه له سرو شرابو څخه |
| لکد کوب هجران چنانم که کس | نیابد نشان من ونام دل |
| د هجران په لغتو داسې تکېدلی یم چې څوک به | پیدا نه کړي زما نښه او د زړه نوم |
| لبیب است آن کس که از جام می | کند روز هجران سرانجام دل |
| هوښیار دئ هغه چې د شرابو له جام څخه | د هجران په ورځ د زړه انتظام وکړي |

**د لغاتو حل:** لب (شونډې)؛ لعل (سرې)؛ عاقبت (آنجام / پایله)؛ کام (مراد / مقصد). لبالب (تر څنډو ډک)؛ دَور (څرخ / څرخېدل / گردش). لکد (لغته)؛ کوب (ډبول / وهل)؛ نیابد (نه ترلاسه کوي)؛ نام (نوم). لبیب (مغز لرونکی / هوښیار)؛ جام (د شرابو گیلاس، پیاله)؛ روز (ورځ)؛ سرانجام (انتظام / پوره کول).

**لنډېز:** دا د دې شعري تولگي شپږویشتم شعر دئ، په دې شعر کې بیا هم شاعر د خپل معشوق ستاینې کوي، وایي چې ستا سرې شونډې زما د زړه آرام دئ، چې آخر له همدې څخه زما د زړه مراد او مقصد پوره کیږي. زما د زړه جام د هغه له سرو شرابو څخه د آسمان گردش هم نه سي ډکولای. زه د معشوق د هجران په لغتو داسې تکېدلی یم چې څوک به مې آن کومه نښه او نوم هم پیدا نه کړي. هوښیار دئ هغه څوک چې د یار د هجران په ورځ شراب وغواړي، په پر له پسې ډول یې وڅیښي او غم په غلط کړي...

| | |
|---|---|
| لآلی اشکم عجب اخترند | کزانها به از صبح شد شام دل |
| زما د اوښکو ملغلرې عجیبه ستورې دي | چې په هغو سره ښه سو له سهار څخه د زړه ماښام |

| | |
|---|---|
| لئیم ست در پیش جانان رقیب | نمی داند آن سفله اکرام دل |
| د جانان په مخ کې رقیب ناکاره دئ | هغه رزیل د زړه اکرام نه پېژني |
| لعب می کند باتو محمود ایاز | عجب رام شد باتو آرام دل |
| اې محموده! ایاز ستا سره لوبې کوي | ستا سره عجیبه د زړه آرام تابع سو |

**د لغاتو حل:** لآلی (د لؤلؤ جمع ده یعني ملغلرې)؛ اشکم (زما اوښکې)؛ اختر (ستوری)؛ صبح (سهار)؛ شام (ماښام). لئیم (کنجوس / خبیث / ناکاره)؛ نمی داند (نه پوهېږي / نه پېژني)؛ سفله (رذیل / احمق)؛ اکرام (عزت). لعب (لوبې / بازی)؛ رام (تابع / متاثره).

**لنډیز:** ... زما د اوښکو ملغرې عجیبه ستورې دي چې هغو سره د زړه ماښام تر سهار ښه دئ. رقیب د معشوق په وړاندې دې ډېر خبیث دئ، ځکه چې هغه د زړه اکرام او عزت نه پېژني. اې محموده (عاشقه)! ایاز (معشوق) لوبې کوي او ستا سره یې زړه ډېر آرام او قرار سو.

| | |
|---|---|
| مرا هست آن پری پیکر دلارام | که بی رویش نمی گیرد دل آرام |
| هغه پرې مخې زما د زړه آرام دئ | چې د هغه له مخ پرته زړه آرام نه کوي |
| مبین ای دل بسوئ سنبل وگل | بدور زلف وروی آن گل اندام |
| اې زړه! د سنبل او گل خوا ته مه گوره | د هغه گل اندام د زلفو او مخ په دور کې |
| مه رویش نماید از خم زلف | نشد پیدا اگرچه صبح در شام |
| د هغه د مخ سپوږمی د زلفو په پېچونو کې ښکاري | که څه هم سهار په ماښام کې نه پیدا کېږي |
| من از میم دهان وجیم زلفش | فتادم دربلا پیوسته چون لام |
| زه د هغه د خولې له میم او د زلفو له جیم څخه | د لام په څېر د تل له پاره په بلا کې ولوېدم |

**د لغاتو حل:** پری (شاپېری / پېرانی ښځه چې ډېره ښکلې وي)؛ پری پیکر (شاپېری څوندې). مبین (مه وینه / مه گوره)؛ سنبل (یو ډول ښه بوی لرونکی گل دئ)؛ گل اندام (ښکلی / ښایسته). مه (سپوږمی)؛ نماید (ښکاري). دهان (خوله)؛ فتادم (زه ولوېدم)؛ پیوسته (همېشه).

**لنډیز:** دا د محمود نامې اوویشتم شعر دی، په دې شعر کې شاعر د خپل معشوق په اړه وايي چې زما ښکلی معشوق زما د زړه آرام دی، له هغه پرته زما زړه هیڅ آرام نه لري. اې زړه! د خپل ښکلي معشوق په مخ کې سنبل او نورو ګلانو ته مه ګوره، ځکه چې هغه تر ګلانو ډېر ښکلی دی. د معشوق ښکلی او سپوږمی. غونډي مخ د هغه په زلفو کې داسي ښکاري، لکه سهار چې په ماښام کې راښکاره سي، که څه هم دا ناشونې ده. زه د معشوق د میم خولې او جیم زلفو له غم څخه د همېش له پاره د لام غونډې په بلاؤ کې راګیر سوم. یعني زما د معشوق خوله د میم په څېر ګردی ده او زلفې يې د جیم په څېر ول ول دي او د دې دواړو له غمه د لام په څېر په غمونو کې راګیر یم...

| | |
|---|---|
| میارا خال وزلف خم بخم را | منه مرغ دلم را دانه ور دام |
| خال او زلفي دي ول په ول مه سينګار وه | زما د زړه مرغه ته په دام کي دانه مه ږده |
| مکن ازعاشق وحشی صفت رم | مشو ای مه باغیار این چنین رام |
| له مین څخه د وحشي غونډي تېښته مه کوه | اې سپوږمی له نورو سره مه تابع کېږه |
| مقیم کوئی او گردید محمود | که بود آن خسته را دردل همین کام |
| محمود د هغه د کوځې اوسېدونکی سو | چي د ده په زخمي زړه کي هغه مقصد وو |

**د لغاتو حل:** میارا (مه سينګاروه / مه تیاروه)؛ خم بخم (ول پر ول)؛ منه (مه ږده)؛ دام (بند). وحشی (ځنګلي / له انسانانو څخه لیري تښتېدونکی)؛ رم (تېښته)؛ باغیار (له نورو سره / له پردیو سره)؛ رام (تابع). مقیم (اوسېدونکی)؛ کوئ (کوڅه)؛ خسته (زخمي)؛ همین (همدا ډول)؛ کام (مقصد / مراد).

**لنډیز:** ... اې معشوقه! ته چي کله خپل خالونه سينګاروې او زلفي ول ول جوړوې، نو زما د زړه مرغه ته په دام او تلکه کي دانه ږدې او هغه په دام کي نیسې، نو دا کار مه کوه او زما زړه مه شکېلوه. اې زما ښکلې او سپوږمی مخې معشوقه! له خپل عاشقه څخه د وحشي په څېر مه تښته او په اغیارو (پردیو) پسې مه ځغله. محمود (معشوق) د یار د کوڅې اوسېدونکی سو، چي همدا يې د زخمي زړه مقصد وو.

| | |
|---|---|
| نیست چو رخسار وقدت درچمن | سرو سمن ای بت گل پیرهن |
| په باغ کي ستا د مخ او قد په څېر (ګل) نه سته | اې سرو او سمن ګل کمیسې معشوقه |

| | |
|---|---|
| نکهت زلفین تو خون ساخته | وه که دل نافهٔ مشک ختن |
| ستا د زلفو خوشبوئي ويني گرځېدلي دي | افسوس چي زړه د ختن د مشکو کڅوړه ده |
| نرد وفا باد گران باختی | سوختی از داغ جفا جانمن |
| د وفا گيتی دي پر نورو باندي و بايلی | زما روح دي د جفا په داغ وسوځوی |
| نقد دل ودین همه بردونداد | بوسه بمن زان لب شکر شکن |
| د زړه او دين نغده يې توله يووړه او را يې نه کړه | ما ته له شکر ماتوونکو شونډو خخه يوه مچه |

**د لغاتو حل:** رخسار (مخ)؛ سمن (يو ډول گل / چنبېلی)؛ پيرهن (کالي / جامه / کميس). نکهت (خوشبويي)؛ خون (ويني)؛ نافه (د مشکو کڅوړه)؛ ختن (د يوې سيمې نوم دئ). نرد (گيتی)؛ باختی (تا وبايلی)؛ سوختی (تا وسوځوی)؛ داغ (تپ / په اور سره په گرمي سوي اوسپني باندي پر بدن تپ جوړول). نقد (نغد / لاس په لاس)؛ همه (ټول) برد (يو وړی)؛ بوسه (مچه)؛ لب (شونډي). شکن (ماتوونکي).

**لنډيز:** دا د محمود نامې اته ويشتم شعر دئ. په دې شعر کي شاعر د خپل معشوق د خوبيانو او ښو صفتونو په اړه وايي چي اې زما ښکلې او د گل په څېر معشوقه! په باغ کي ستا په څېر ښکلی گل نه سته. ستا د زلفو خوشبويي ويني جوړي سوي دي، چي د ختن د مشکو خوشبويي هم ستا د زلفو خوشبويي ته نه سي رسېدلای. اې زما بې رحمه معشوقه! د وفا گيتي دي پر نورو وبايلل، يعني له نورو سره تل وفا کوې، خو زما زړه دي د جفا په اور داغ – داغ کړ، يعني د جفا له پاره دي يوازي زه تاکلی يم. زما څخه يې زما د دين او زړه توله شتمني يووړه، خو ما ته يې د خوږو شونډو يوه مچه هم را نه کړه...

| | |
|---|---|
| نوش کنم خون جگردم بدم | بی مئ لعل تو وسیب ذقن |
| گړی په گړی د زړه ويني چيښمه | پرته ستا له سرو شونډو او د زني له سېب څخه |
| نیک بر آمد بر خت خط سبز | أنبتہ اللہ نباتًا حسن |
| ستا پر مخ باندي شين خط ښه راغلی | خدای دي يې په ښه شنه کېدلو سره شين کړي |

نظم تو محمود عجب ساخته | نام تو مشهور بهر انجمن

محمود ستا شعر عجیبه جوړ کړی دئ | چې ستا نوم په هر مجلس کې مشهور دئ

**د لغاتو حل:** نوش (چیښل)؛ خون (وینې)؛ جگر (سینه / زړه)؛ دم بدم (گړی په گړی / شیبه په شیبه)؛ می (شراب)؛ لعل (سره)؛ ذقن (زنه). سیب ذقن (د زنې سېب، مطلب زنه سېب ته ورته ده). نیک (ښه / غوره)؛ آمد (راغلی)؛ خط سبز (شین / زرغون خط)؛ نباتًا (شنه کېدل)؛ حسن (ښه). ساخته (جوړ کړی)؛ نام (نوم)؛ مشهور (پېژندل سوی)؛ انجمن (مجلس / غونډه).

**لنډیز:** ... د معشوق د شرابو غوندې له سرو شونډو او د سېب غوندې له منډې زنې پرته هره ساه د زړه وینې چیښم. اې معشوقه! ستا پر مخ باندې شین خط ښکلی راغلی، خدای پاک دې یې همداسې شین ولري. محمود ستا نظم په څومره ښه ډول جوړ کړی دئ چې آن نوم دې په هر مجلس کې مشهور دئ.

وه که جان ودل من گشت پریشان بیتو | زود باز آیٔ که هریک شده حیران بیتو

افسوس چې روح او زړه مې له تا پرته پرېشانه دي | بیرته ژر راسه چې هر یو له تا پرته حیران سوی دئ

وعدهٔ وصل نه کردی بمن خسته وفا | جان من چند کشد محنت هجران بیتو

زما زخمي سره دې د وصال پر ژمنه وفا ونه کړه | زما روح به تر څو بې له تا د هجران سختۍ گالي

واقف از درد دل غمزده وجان حزین | چه کنم نیست کسی ای شه خوبان بیتو

د غم لړلي زړه او غمجن روح له درده خبرداره | څه وکړم بې له تا څوک نه سته اې د خوبانو باچا

وایٔ صد وایٔ که درد دل مارا از مهر | نه کند چرخ فلک ذرهٔ درمان بیتو

افسوس سل افسوسه چې له مینې څخه زما د زړه درد | نه کوي بې له تا د آسمان څرخ لږ درمان

**د لغاتو حل:** وه (افسوس)؛ جان (روح)؛ دل (زړه)؛ گشت (سوي دي / گرځېدلي دي)؛ بیتو (بې له تا)؛ زود (ژر)؛ آیٔ (راسه)؛ یک (یو)؛ وعده (ژمنه)؛ وصل (یو ځای والی)؛ خسته (زخمي)؛ چند (څو)؛ محنت (خواري)؛ هجران (بېلتون / جلاوالی)؛ واقف (با خبره / خبرو لرونکی)؛ غمزده (غمجن)؛ حزین (غمجن)؛ شه (باچا)؛ خوبان (ښکلي / ښایسته). وایٔ (افسوس)؛ صد (سل)؛ مهر (مینه / محبت)؛ چرخ

(آسمان، دلته يې مطلب گرځېدل دي)؛ فلک (آسمان)؛ ذره (لږ اندازه)؛ درمان (علاج / درملنه).

**لنډيز:** دا د محمود نامې نهه ويشتم شعر دئ. په دې شعر کې شاعر خپل معشوق په خطاب کې د خپل زړه درد بيانوي او وايي چې اې معشوقه! زما زړه او روح له تا پرته بې تابه او پرېشانه دي، بيرته ژر راسه، ځکه چې له تا پرته هر يو حيران دئ. زما سره دي د راتګ ژمنه وکړه، خو وفا دي ونه کړه، تر څو مې به روح د هجران دا سختۍ زغمي. اې د ښکلو باچا! ته زما په غم لړلي او غمجن روح خبر يې، څه وکړم له تا پرته بل څوک زما د زړه آرام نه سي کېدای. افسوس دئ چې زما د دې دردمن زړه درمان له تا پرته آن د آسمان څرخ هم نه سي کولای، يعني له تا پرته په ټول جهان کې هم زما د زړه درمان نه سته...

| | |
|---|---|
| وقف می ساخته ام جان ودلم ازتن زار | تا نماند سر شوریده بیسامان بیتو |
| روح او زړه مي له ناتوانه بدن څخه د شرابو وقف کړي دي | تر څو بې له تا پرېشانه بې سامانه پاته نه سي |
| وِردِ من نیست بجز نام تو تاجاندارم | مونس جان حزین دیدهٔ گریان بیتو |
| تر څو چې روح لرم ستا له نوم پرته مي بل وظيفه نه سته | بې له تا مي ژړېدونکي سترګي ملګري د غمجن روح دي |
| وَردِ وردیدهٔ محمود بتر ازخار ست | گل چه کار آیدش ای نوگل خندان بیتو |
| د محمود په سترګو ګلاب تر اغزي زيات بد دئ | ګل به يې په څه کار راسي اې نوی ګل خندانه بې له تا |

**د لغاتو حل:** وقف (تاکل / ورکول)؛ تن (بدن)؛ زار (عاجز)؛ شوريده (پرېشانه / انديښمن). وِرْد (وظيفه)؛ بجز (ماسېوا / بغير)؛ مونس (لېواله / شوقمن)؛ حزين (غمجن)؛ ديده (سترګي)؛ ګريان (ژړا). وَرْد (د ګلاب ګل)؛ بتر (ډېر بد)؛ نو ګل (نوی غوړېدلی ګل / تازه ګل)؛ خندان (خندېدونکی).

**لنډيز:** ... زه مي له خپل بدن څخه روح او زړه دواړه شرابو ته وقف کوم، يعني پر شرابو يې ورکوم، تر څو ستا له غم څخه انديښمن او غمجن پاته نه سي. تر څو چې ژوندی يم ستا نوم به زما وظيفه او وِرد وي، له تا پرته مي سترګي ژړېدونکي او روح مي غمجن دئ. د محمود (عاشق) په نظر ګل تر اغزيو ډېر بد او خارجن دئ، نو اې معشوقه! له تا پرته هغه ته ګل هيڅ اعتبار او ارزښت نه لري.

| | |
|---|---|
| همدم من نیست کسی غیرآه | آه که حالم شده از غم تباه |
| بې له آه زما هيڅوک ملګری نه سته | افسوس چې حال مي له غمه خراب سو |

هست چو کوهی غم هجران مرا — ساخته باریک تر از برگ کاه

د هجران غم ما ته د یوه غره په شان دئ — د وښو تر پاڼي یې نري کړی یم

هست مرا بررخ خوبت نظر — سوئ من ازمهر نکردی نگاه

زما نظر (تل) ستا پر ښایسته مخ وي — (خو) تا زما خوا ته هیڅ د مینې نظر ونه کړ

هاله بود گرد مه چارده — گِرد مه روی تو خطِ سیاه

د څوارلسې د سپوږمۍ پر شاوخوا شپول وي — ستا د مخ د سپوږمۍ پر شاوخوا تور خط دئ

**د لغاتو حل:** همدم (ملگری)؛ کسی (یو څوک)؛ آه (افسوس)؛ حالم (زما حال)؛ تباه (خراب / برباد). چو (لکه)؛ کوهی (یو غر)؛ هجران (بېلتون)؛ برگ (پاڼه / بلگ). کاه (واښه). رخ (مخ)؛ سوئ (طرف)؛ مهر (مینه / محبت)؛ نگاه (نظر). هاله (شپول)؛ گِرد (چاپېره / شاوخوا)؛ مه (سپوږمۍ)؛ چارده (څوارلس)؛ روی (مخ)؛ سیاه (تور).

**لنډیز:** دا د محمود نامې دېرشم شعر دئ چې په (هاء) سره پای رسېدلی دئ او په دې شعر کې بیا هم شاعر د خپل زړه درد بیانوي، وایي چې له آه او فریاد پرته بل هیڅ ملگری نه لرم، افسوس دئ چې حال له غم څخه ډېر خراب سوی دئ. د هجران غم ما ته د یوه غره په څېر دئ چې یې د وښو تر پاڼو هم نري کړی یم. زه تل ستا مخ ته د مینې په نظر گورم، خو افسوس چې تا یو ځل هم زما خوا ته ونه کتل. لکه څنگه چې د سپوږمۍ پر شا وخوا شپول وي، همداسې ستا د ښکلي مخ پر شا وخوا تور خط دئ...

هرچه کنی بر سرِ من حاکمی — زانکه گدائی توام ای بادشاه

هر څه چې کوې زما پر سر حاکم یې — ځکه چې زه ستا فقیر یې اې باچا

هندوی زلف تو عجب رهزنست — دزد دگر کم زده زین گونه راه

ستا د زلفو هندو عجیبه لار وهونکی دئ — د هغه په څېر بل غله لار نه ده وهلې

هیچ دگر در دل محمود نیست — جز غم تو روز وشب وسال وماه

د محمود په زړه کې نور هیڅ نه سته — ستا له غم پرته ورځ او شپه کال او میاشت

**د لغاتو حل:** حامکی (حاکم یې / واکمن یې)؛ زانکه (ځکه چي)؛ گدائ (فقیر / ملنگ)؛ پادشاه (باچا). رهزن (لار وهونکی)؛ دُزد (غل)؛ زین گونه (دا ډول)؛ راه (لار). روز (ورځ)؛ شب (شپه)؛ سال (کال)؛ ماه (میاشت).

**لنډیز:** ... ته چي هر څه کوې، زما پر سر حاکم او واکمن یې، ځکه چي زه ستا فقیر یم او ته زما باچا یې. د زلفو هندو څومره عجیب لار وهونکی دئ چي بل هیڅ غله دا ډول لار نه ده وهلې. په ورځ او شپه کي او همداسي په میاشتو او په کلونو د محمود (معشوق) په زړه کي له تا پرته بل هیڅ نه دي راغلي.

| | |
|---|---|
| یار را بر من نظر بسیار بودی کاشکی | مرهم جان و دل انگار بودی کاشکی |
| کاش چي پر ما باندي د یار نظر ډېر وای | کاش چي زما د روح او زړه مرهم اور وای |
| یاد ما هرگز نکرد آنماه در شام فراق | روزئ من صبح وصل یار بودی کاشکی |
| هغه سپوږمۍ هیڅکله د هجران په ماښام یاد نه کړم | کاش چي سهار مي په نصیب د یار وصال وای |
| یکبیک حال دل خود شرح میکردم همه | پیش جانان قوت گفتار بودی کاشکی |
| یو په یو به مي د خپل زړه حال توله بیان کړی وای | کاش چي د جانان په مخ کي د خبرو توان وای |
| یاسمین و سنبل و گلشن چه کار آید مرا | در نظر زلف و رخ دلدار بودی کاشکی |
| ما ته به رامبېل او سنبل او باغ په څه کار راسي | کاش چي زما په نظر کي د دلدار زلفي او مخ وای |

**د لغاتو حل:** یار (ملگری / معشوق)؛ بسیار (ډېر / زیات)؛ بودی (وای). مرهم (درمل)؛ انگار (اور / سکروټي). هرگز (هیڅکله)؛ شام (ماښام)؛ فراق (بېلتون)؛ روزئ (نصیب / برخه)؛ صبح (سهار). یک بیک (یو په یو)؛ شرح (بیان / څرگند)؛ همه (ټول)؛ قوت (توان)؛ گفتار (خبري کول). یاسمین وسنبل (دواړه یو ډول ښه بوی لرونکي گلان دي)؛ گلشن (باغ / گلبڼ)؛ دلدار (جانان / معشوق).

**لنډیز:** دا د محمود نامې یو ډېرشم او وروستی مسبع (اووه بیتیز) شعر دئ چي په وروستي توري یعني (یاء) سره پای ته رسېدلی دئ. په دې شعر کي شاعر د خپل زړه تمنا د قلم په ژبه داسي بیانوي، وایي چي کاش پر ما باندي د یار نظر وای او کاش چي اور مي د زړه مرهم او درمان وای. یعني څه ډول چي اور د زړه مرهم او درمان نه سي کېدای او دا یوه ناممکنه خبره ده، همدغسي دا هم ناممکنه ده چي د یار پر ما

باندي نظر وسي. زما سپوږمی غوندي ښکلي یار خو د هجران په شپه کي هیڅکله نه یم یاد کړی، خو کاش چي سهار مي د یار وصال په برخه سوی وای، خو افسوس چي دا هم نه کیږي. ما به مي د یار په مخ کي د خپل دردمن زړه حال یو په یو بیان کړی وای، خو کاش چي د هغه په مخ کي مي د خبرو کولو توان لرلای. زما يې په رنګارنګ ښکلو ګلانو څه، زما په نظر کي تر ټولو ښکلی ګل زما معشوق دئ، خو کاش چي ما د هغه ښایسته مخ او ښکلي زلفي لیدلای سوای...

| | |
|---|---|
| یوسف مصری که بروی بود حیران مرد و زن | کاشکی در دَور آن رخسار بودی کاشکی |
| د مصر یوسف ته چي نر او ښځي حیران وه | کاش چي د هغه مخ په زمانه کي وای کاش |
| یوزِ هجران آهوِ عیش مرا زپا فگند | شیرِ وصل او مرا غمخوار بودی کاشکی |
| د بېلتون پړانګ زما د ژوند هوسۍ له پښو وغورځوله | کاش چي د هغه د وصل زمری زما غمخوار وای |
| یافته محمود هر کس بر در آن شاه بار | این گدا را هم بران در بار بودی کاشکی |
| اې محموده! د هغه باچا پر دروازه هر چا دخل موندلی دئ | کاش چي دې فقیر ته پر هغه دروازه دخل وای |

**د لغاتو حل:** مرد (سړی / نارینه)؛ زن (ښځه)؛ دَور (زمانه). یوز (پړانګ)؛ هجران (بېلتون)؛ آهو (هوسۍ)؛ عیش (ژوند)؛ فگند (وغورځوله)؛ شیر (زمری)؛ غمخوار (غمخور / خواخوږی). یافته (موندل / پیدا کول)؛ در (دروازه)؛ بار (مطلب د داخلېدلو اجازه)؛ ګدا (فقیر).

**لنډیز:** ... د مصر د یوسف (حضرت یوسف علیه السلام) ښکلا او ښایست ته چي به نر او ښځي حیران او ګوته په غاښ وه، کاش چي زه هم په د هغه په زمانه کي وای. د هجران پړانګ زما د ژوند هوسۍ له پښو وغورځوله، کاش چي د یار د وصل زمری زما ملګری وي. اې محموده (عاشقه) د هغه باچا (معشوق) پر دروازه هر څوک د ننوتلو اجازه لري، خو کاش چي دې فقیر هم دا اجازه لرلای.

## د محمود نامې پای

# ما قال استاذي

## پښتو شرح

## د پنـــج گـنج

د پنج گنج شلورم کتاب

# پند نامه

مصنف: شیخ فرید الدین عطار رح

# پندنامه شیخ فرید الدین عطار

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

د زیات مهربان پوره رحم لرونکي الله په نامه

## در حمد باری تعالی

### د الله تعالی په ثناء او صفت کي

| | |
|---|---|
| حمد بیحد مر خدای پاک را | آنکه ایمان داد مشت خاک را |
| ثنا ده بې اندازې خاص خدای تعالی لره | هغه چي ایمان يې ورکړ يوه موټ خاورو لره |
| آنکه در آدم دمیده روح را | داد از طوفان نجات او نوح را |
| هغه چي په آدم کي يې پوکړه روح | ور يې کړ له طوفان څخه خلاصون هغه نوح لره |
| آنکه فرمان کرد قهرش باد را | تا سزائی داد قوم عاد را |
| هغه چي حکم وکړ قهر د ده باد لره | تر څو سزا ورکړي قوم د عاد لره |
| آنکه لطف خویش را اظهار کرد | با خلیلش نار را گلذار کرد |
| هغه چي مهرباني خپله يې ښکاره کړه | خپل خلیل ته يې اور باغ کړ |

**د لغاتو حل:** حمد (ثناء او صفت)؛ بیحد (بې اندازې)؛ مر (خاص)؛ مشت (موټ)؛ خاک (خاوري). دمیده (پو يې کړه)؛ روح (ساه)؛ داد (ور يې کړ)؛ نجات (خلاصون). فرمان (حکم)؛ لطف (مهرباني)؛ اظهار (څرگندونه / ښکار کول)؛ خلیل (دوست).

**لنډيز:** شيخ فريد الدين عطار رحمة الله عليه د خپل کتاب په پيل کي د الله تعالى حمد ته ځای ورکړی دئ او همداسي يې د الله جل جلاله د ستر قدرت ځيني نښې د شعر په ژبه بيان کړي دي، فرمايي چي هغه خدای پاک ثناء او صفت بيانوم چي يو موټ خاورو ته يې ايمان ورکړ، يعني حضرت آدم عليه السلام يې له خاورو څخه پيدا کړ او بيا روح او ايمان ورکړ. هغه خدای پاک چي په حضرت آدم عليه السلام کي يې روح پو کړه او ژوند يې ورکړ، هغه خدای پاک چي حضرت نوح عليه السلام يې له ستر طوفان څخه وژغوری. هغه خدای پاک چي قهر يې باد ته امر وکړ چي د عاديانو سرکښه قوم ته سزا ورکړي. هغه خدای پاک چي په خپلي مهرباني سره يې حضرت ابراهيم خليل الله ته د نمرود ستر اور په ښکلي باغ بدل کړ...

| | |
|---|---|
| آن خداوندی که هنگام سحر | کرد قوم لوط را زیر وزبر |
| هغه خدای تعالى چي په وخت کي د سهار | کړی يې قوم د لوط تباه او برباد |
| سوئ او خصمی که تیر انداخته | پشهٔ کارش کفایت ساخته |
| پر طرف د هغه دښمن چي غشي وغورځول | غوماشي کار د هغه کافي جوړ کړ |
| آنکه اعدا را بدریا . در کشید | ناقه را . از سنگ خار را بر کشید |
| هغه چي دښمنان يې په درياب کي را کش کړل | اوښه يې له ډبري کلکي څخه را وايستله |
| چون عنایت قادر قیوم کرد | در کف داؤد آهن موم کرد |
| کله چي مهرباني قادر تل پاتي ذات وکړ | په لاس کي د داؤد يې اوسپنه نرمه کړه |

**د لغاتو حل:** خداوندی (هغه خدای)؛ هنگام (وخت)؛ سحر (سهار)؛ زير (لاندي)؛ زبر (لوړ)؛ زير وزبر (تباه او برباد). سوئ (طرف)؛ خصم (دښمن)؛ تير (غشی). پشه (غوماشه)؛ ساخته (جوړ کړ). اعدا (دښمنان)؛ دريا (سمندر / درياب)؛ ناقه (اوښه)؛ سنگ (ډبر)؛ خار (تينگه / کلکه). عنايت (مهرباني). قادر (قدرت لرونکی)؛ قيوم (تل تر تله ژوندی)؛ کف (ورغوی)؛ آهن (وسپنه)؛ موم (نرمه).

**لنډيز:** ... هغه خدای پاک چي د سهار په وخت کي د حضرت لوط عليه السلام قوم له منځ يووړی. هغه دښمن چي د آسمان لوري ته يې له خدای پاک سره د جنگېدلو په موخه غشي غورځول، د هغه دښمن

لوري ته یې یوه غوماشه راواستوله او هغه یې په ختم کړ. هغه خدای پاک چې خپل او د حضرت موسی علیه السلام دښمنان (فرعون او لکښر یې) په دریاب کې غرق کړل. او له سختي او كلكې ډبرې څخه یې د حضرت صالح علیه السلام پر لاس د هغه قوم اوښه را وایستله. هغه جل جلاله چې خپله مهرباني یې ښکاره کړه او د حضرت داؤد علیه السلام په لاس کې یې وسپنه نرمه کړه...

| | |
|---|---|
| با سلیمان داد ملک وسروری | شد مطیع خاتمش دیو وپری |
| و سلیمان ته یې ورکړه باچاهي او سرداري | سوه تابعداره د گوتمۍ دده دېبان او پیریان |
| ازتن صابر به کرمان قوت داد | هم زیونس لقمهٔ باحوت داد |
| له بدن د صابر یې وچنجیانو ته روزي ورکړه | هم یې له یونس څخه گوله و ماهي ته ورکړه |
| آن یکے را اره برسر می کشد | دیگرے را تاج برسر می نهد |
| هغه یوه لره اره پر سر را کش کړه | بل لره یې تاج پر سر کښېښووی |
| اوست سلطان هرچه خواهد آن کند | عالمی را دردمی ویران کند |
| هغه دئ باچا هر څه چې غواړي هغه کوي | تول عالَم په یوه گړي کې خراب کوی |

**د لغاتو حل:** مطیع (تابع / فرمان منونکی)؛ خاتم (گوتمۍ). صابر (صبر کوونکی)؛ کرمان (چنجیان)؛ قوت (روزي / خواړه)؛ لقمه (گوله / مړی)؛ حوت (ماهی). ویران (ویجاړ / خراب).

**لنډیز:** ... هغه خدای پاک چې حضرت سلیمان علیه السلام ته یې داسي سلطنت او باچاهي ورکړه چې آن دېبان او پیریان هم د هغه د گوتمۍ تابع سول. د صابر (حضرت زکریا علیه السلام) له بدن څخه یې چنجیانو ته روزي ورکړه او همدا ډول یې حضرت یونس علیه السلام د ماهي یوه گوله جوړه کړه. هغه خدای پاک چې د یوه پر سر اره راکشوي او د بل پر سر بیا تاج ږدي. هغه باچا دئ، هر څه چې وغواړي هغه کوي، هغه په یوه شېبه کې ټول جهان هم رنگولای سي...

| | |
|---|---|
| هست سلطانے مسلم مرورا | نیست کس را زهرهٔ چون وچرا |
| ده باچاهي ثابته خاص هغه لره | نه سته یوچا لره توان د څنگه او ولي |

| | |
|---|---|
| آن یکے را گنج و نعمت میدهد | دیگرے را رنج و زحمت میدهد |
| هغه یوه لره خزانې او نعمتونه ورکوي | بل لره رنځ او زحمتونه ورکوي |
| آن یکے را زر دو صد همیان دهد | دیگرے در حسرت نان جان دهد |
| هغه یوه لره سره زر دوه سوه همیانۍ ورکوي | بل په غم کې د ډوډۍ روح ورکوي |
| آن یکے بر تخت باصد عز و ناز | دیگرے کرده دهان از فاقه باز |
| هغه یو پر تخت له سلو عزتونو او نازونو سره (کښېنوي) | بل کړې ده خوله له لوږې څخه وازه |

**د لغاتو حل:** سلطانی (باچاهي)؛ مسلم (ثابته / منلې)؛ زهره (توان). گنج (خزانه)؛ رنج (تکلیف / درد). همیان (پټاکیدانه / د پیسو بسته)؛ حسرت (غم)؛ نان (ډوډۍ). فاقه (لوږه). باز (وازه / خلاصه).

**لنډيز:** ... هغه خدای پاک چې باچاهي خاص هغه لره ثابته ده، له هغه سره هیڅوک د ولې او څنګه ویلو توان نه لري. هغه خدای پاک چې یوه ته خزانې او نعمتونه ورکوي، خو بل ته بیا تکلیف او خوارۍ ورکوي. یوه ته بې شمېره شتمنۍ ورکوي او بل بیا د وچې ډوډۍ په غم کې روح ورکوي. یو په ډېر ناز او نواز سره د باچاهۍ پر تخت کښېنوي او بل بیا له لوږې څخه وازه خوله پرېږدي...

| | |
|---|---|
| آن یکے پوشیده سنجاب و سمور | دیگرے خفته برهنه در تنور |
| هغه په یوه اغوستي دي سنجاب او سمور | بل بیده وي لوڅ لېړ په تنور کې |
| آن یکے بر بستر کمخواب و نخ | دیگرے بر خاک و خواری بسته یخ |
| هغه یو پر بستر د کمخاب او نخ (پرېپستلی وي) | بل پر خاورو او په خوارۍ کې یخ نیولی وي |
| طرفة العینے جهان برهم زند | کس نمے آرد که آنجا دم زند |
| د سترګو په رپ کې جهان یو تر بله وهي | هیڅوک نه سي کوای چې دلته استراحت ووهي |
| آنکه با مرغ هوا ماهی دهد | بندگان را دولت و شاهی دهد |
| هغه چې د مرغه ته د هوا ماهیان ورکوي | بندګانو لره دولت او باچاهي ورکوي |

**د لغاتو حل:** پوشیده (اغوستې)؛ سنجاب (د یوه ډول حیوان له پوست څخه جوړې سوې جامې چې ډېرې نرمې او پستې وي)؛ سمور (دا هم د یوه حیوان له پوست څخه جوړې سوې جامې دي)؛ خفته (بیده)؛ برهنه (لوڅ). کمخواب (د وریښمو جامه)؛ نخ (یو ډول نرمه جامه)؛ بسته (ترلی / نیولی).

**لنډیز:** هغه خدای پاک چې په یوه یې د سنجاب او سمور نرمې جامې اغوستې وي او بل یې لوڅ په تنور کې بیده کړی وي. هغه چې یو د کمخاب او نخ پر نرمو بسترو بیدوي او بل په خاورو کې یخ وهلی بیدوي. هغه خدای پاک د سترګې په رپ کې جهان له منځه ورای سي چې هېڅوک بیا پکښې د آرام ساه نه سي اخیستلای. هغه خدای پاک چې د هوا مرغانو ماهیان ورکوي او بندګانو دولت باچاهي ورکوي...

| | |
|---|---|
| بے پدر فرزند پیدا او کند | طفل را در مهد گویا او کند |
| بې پلاره زوی پیدا هغه کوي | ماشوم په ځانګو کې خبرې کوونکی هغه کوي |
| مردهٔ صد ساله را حی میکند | این بجز حق دیگرے کی میکند |
| مړی د سلو کالو ژوندی کوي | دا ماسوا له خدای څخه بل څوک کله کولای سي |
| صانعی کز طین سلاطین میکند | نجم را رجم شیاطین میکند |
| داسې جوړونکی چې له خټو باچاهان جوړوي | ستوري ویشتونکي د شیطانانو کوي |
| از زمین خشک رویاند گیاه | آسمان را بیستون دارو نگاه |
| له مځکې وچې څخه شنه کوي وابنه | آسمان یې بې له ستنې ساتلی دئ |
| هیچکس در ملک او انباز نے | قول او را لحن نے آواز نے |
| هېڅوک په باچاهۍ کې د ده شریک نه سته | قول د ده لره بږغ نه سته او آواز نه سته |

**د لغاتو حل:** پدر (پلار)؛ فرزند (زوی)؛ طفل (ماشوم / کوچنی)؛ مهد (ځانګو). مده (مړی)؛ حی (ژوندی)؛ کی (کله). طینِ (ختې)؛ نجم (ستوري). زمین (مځکه)؛ خشک (وچه)؛ گیاه (وابنه). انباز (شریک)؛ لحن (بږغ).

**لنډیز:** هغه خدای پاک چې له پلار پرته زوی پیدا کوي او ماشوم په ځانګو کې پر خبرو راولې (لکه

حضرت عیسی علیه السلام چې دا دواړې معجزې په هغه کې موجودې وې). همدا ډول د سلو کلونو پخوانی مړی راژوندی کوي (لکه عزیر علیه السلام چې بې ژوندی کړ) دا هر څه له خدای پاک پرته بل څوک کله کولای سي؟ هغه داسې پیدا کوونکی دئ چې له ختو څخه باچاهان جوړوي او په ستورو سره شیطانان ولي. له وچې مځکې څخه زرغونه وابښه شنه کوي او دومره لوی آسمان یې په فضا کې بې له کومې ستنې او بې له کومې پایې ځوړند ساتلی دئ.

# در نعت پیغمبر صلی الله علیه وسلم

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ستاینه کي

| بعد ازین | گوئیم | نعت مصطفی | آنکه عالم | یافت | از نورش | صفا |
|---|---|---|---|---|---|---|
| وروسته تر دې | وایو | صفت د مصطفی | هغه چې عالَم | پیدا کړه | له نور څخه د ده | صفایي |
| سید | الکونین | ختم المرسلین | آخر | آمد | بود | فخر الاولین |
| سردار | د دوو کونینو | او خاتم د رسولانو | وروستی | راغلی | دئ | (لېکن) ویاړ د اولنو دئ |
| آنکه | آمد | نُه فلک | معراج او | انبیاؤ | اولیا | محتاج او |
| هغه چې | راغله | نهه آسمانونه | معراج د ده | نبیان | او ولیان | محتاج د ده |
| شد | وجودش | رحمة للعالمین | مسجد او | شد همه | روئ | زمین |
| سو | وجود د ده | رحمت له پاره د عالمونو | مسجد د ده | سو تول | مخ | د مځکې |

**د لغاتو حل:** نعت (صفت / ستاینه)؛ نُه (نهه = ۹).

**لنډيز:** د الله جل جلاله تر حمد او ستاینې وروسته مصنف رحمة الله علیه د رسول الله صلی الله علیه وسلم ستاینه کوي او پر هغه باندې درود وایي، فرمایي: تر حمد وروسته د مصطفی صلی الله علیه وسلم نعت او ستاینه کوم، هغه چې له نور څخه یې تول عالم صفایي ترلاسه کړه. هغه صلی الله علیه وسلم د دواړو

جهانونو سردار او د رسولانو پای ته رسوونکی دئ، په وروستي زمانه کې راغلی دئ، لېکن د اولنيو پېغمبرانو فخر او وياړ دئ. نهو آسمانونو ته پورته سو او تول انبياء او اولياء يې محتاج دي. د هغه صلی الله عليه وسلم وجود د عالمونو له پاره رحمت جوړ سو او د ځمکي مخ تول د هغه صلی الله عليه وسلم له پاره مسجد وګرځول سو...

| | |
|---|---|
| صد هزاران رحمت جان آفرين | بروی وبر آل پاک طاهرين |
| سل زره رحمتونه دي وي د روح پيدا کوونکي | پر ده او پر پاکه کورنۍ چي پاکان دي |
| آنکه شد يارش ابوبکر وعمر | از سر انگشت اوشق شد قمر |
| هغه چي سو ملګری د ده ابو بکر او عمر | له سر څخه د ګوتي د ده خيري سوه سپوږمۍ |
| آن يکی اورا رفيق غار بود | وان دگر لشکرکش ابرار بود |
| هغه چي يو ده لره ملګری د غار وو | او هغه بل سپه سالار د نېکانو وو |
| صاحبش بودند عثمان وعلی | بهر آن گشتند درعالم ولی |
| ملګري د ده وه عثمان او علي | په وجه د هغه وګرځېدل په عالَم کي وليان |

**د لغاتو حل:** هزاران (زرګونه)؛ آفرين (پيدا کوونکی / خالق / خدای پاک)؛ انگشت (ګوته)؛ قمر (سپوږمۍ)؛ رفيق (ملګری)؛ ابرار (نېکان / سپېځلي)؛ ولی (دوست).

**لنډيز:** ... د الله تعالی سل زره رحمتونه دي وي پر هغه صلی الله عليه وسلم او د هغه پر پاک اهل بيت باندي. هغه چي حضرت ابو بکر او حضرت عمر رضي الله عنهما يې ملګري سوه او د ګوتي په يوې اشارې سره يې سپوږمۍ دوه ځايه سوه. هغه چي حضرت ابو بکر رضي الله عنه يې د غار (ثور) ملګری وو او حضرت عمر رضي الله عنه په سپېځلتيا او تقوا کي ساری نه درلود. حضرت عثمان او حضرت علي رضي الله عنهما يې هم ملګري وه چي د هغه صلی الله عليه وسلم په وجه په جهان کي ستر وليان وګرځېدل...

| | |
|---|---|
| آن یکی کان حیا و حلم بود | وان دگر باب مدینه علم بود |
| هغه یو د کان حیا او صبر وو | او هغه بل دروازه د ښار د علم وو |
| آن رسول حق که خیر الناس بود | عم پاکش حمزه و عباس بود |
| هغه رسول د خدای چي غوره د خلګو وو | اکا پاک د ده حمزه او عباس وو |
| هردم از ما صد درود و صد سلام | بر رسول و آل و اصحابش تمام |
| هر ګړی زما له خوا سل درودونه او سل سلامونه | پر رسول او پر کورنی او په ملګرو د ده تولو |

**د لغاتو حل:** کان (معدن / خزانه)؛ حلم (بردباري / زغم)؛ باب (دروازه)؛ مدینه (ښار).

**لنډیز:** ... هغه چې یو (حضرت عثمان رضي الله عنه) یې د حلم او زغم کان وو او بل (حضرت علي رضي الله عنه) یې د علم د ښار دروازه ګڼل کېدله. هغه الهي استازی چې تر تولو خلګو غوره وو، حضرت حمزه او حضرت عباس رضي الله عنهما یې اکاګان وه. زما له لوري دي هره شېبه پر هغه صلی الله علیه وسلم او د هغه پر اهل بیتو او پر تولو ملګرو سل دوردونه او سل سلامونه وي.

# در فضیلت ائمه مجتهدین

## د مجتهدینو امامانو په فضیلت کي

| | |
|---|---|
| آن امامانے که کردند اجتهاد | رحمت حق بر روان جمله باد |
| هغه امامان که یي کړی وو اجتهاد | رحمت د خدای دي پر روح د تولو وي |
| بو حنیفه بود امام باصفا | آن سراج امتان مصطفیٰ |
| ابو حنیفه وو امام با صفا | هغه څراغ د امتونو د مصطفی |
| باد فضل حق قرین جان او | شاد باد ارواح شاگردان او |
| وي دي فضل د خدای نږدې روح ته د ده | خوشحاله دي وي روحونه د شاګردانو د ده |

| صاحبش بویوسف قاضی شده | وز محمد ذو المنن راضی شده |
|---|---|
| ملگری ده  ابو یوسف  قاضي  سوی دئ | او له محمد څخه  خدای تعالی  راضي  سوی دئ |

**د لغاتو حل:** اجتهاد (هڅه / کوښښ)؛ روان (روح)؛ جمله (ټوله)؛ سراج (ځراغ)؛ قرین (نیږدې / ملگری)؛ ذو المنن (خاوند د احسانو، خدای پاک).

**لنډیز:** تر حمد او درود وروسته مصنف رحمة الله علیه د مجتهدینو امامانو د فضیلت او غوراوي اړوند څه نا څه بحث کوي، فرمایي چي پر هغو امامانو باندي دي د خدای پاک رحمتونه وي چي په دین کي یې اجتهاد کړی وو چي یو امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه دئ چي د مسلمه امت ځراغ گڼل کیږي، د خدای پاک فضل دي وي پر هغه رحمة الله علیه او د هغه پر شاگرانو باندي. د هغه رحمة الله علیه ملگري یا شاگردان یو حضرت یوسف رحمة الله علیه وو چي قاضي تېر سوی دئ او بل حضرت محمد رحمة الله علیه وو چي ډېر ستر شخصیت وو...

| شافعی ادریس و مالک با زفر | یافت زیشان دین احمد زیب وفر |
|---|---|
| امام شافعي ادریس او امام مالک له امام زفر سره | پیدا کړی دئ له دوی څخه  دین د احمد ښایست او برم |
| احمد حنبل که بود او مرد حق | در همه چیز از همه برده سبق |
| امام احمد حنبل  چي وو دی سړی  د حق | په ټولو شیانو کي یې  له ټولو څخه وړی وو  وړاندي والی |
| روح شان در صدر جنت شاد باد | قصر دین از علم شان آباد باد |
| روح ددوی دي  په بلندۍ کي  د جنت خوشحاله  وي | ماڼۍ د دین دي  له علم څخه د دوی  ودانه  وي |

**د لغاتو حل:** زیب (ښکلا)؛ سبق (وړاندي والی / پرمختگ) شاد (خوشحاله).

**لنډیز:** ... دویم امام شافعي رحمة الله علیه وو چي نوم یې ادریس دئ، دریم امام مالک رحمة الله علیه وو او څلورم امام زفر رحمة الله علیه او پنځم امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه وو چي د حق سړی وو او په هر څه یې سبقیت (وړاندي والی) ترلاسه کړی وو. د دوی روح دي د جنت په بلندۍ کي خوشحاله وي او د دین ماڼۍ د دوی له علم څخه ودانه او جوړه وي.

# مناجات بجناب مجیب الدعوات

## د دعاګانو د قبلوونکي ودربار ته مناجات

| | |
|---|---|
| بادشاها جرم ما را درگذار | ما گنهگاریم وتو آمرزگار |
| اې باچا! ګناه زموږ را معاف کړه | موږ ګناهکاران يو او ته بخښونکی يې |
| تو نیکوکارے وما بد کرده ایم | جرم بے اندازه بیحد کرده ایم |
| تو نېکو کاره يې او موږ بد کړي دي | ګناه بې اندازې بې حده موږ کړي ده |
| سالها دربند عصیان گشته ایم | آخر از کرده پشیمان گشته ایم |
| کلونه په فکر کي د ګناه ګرځېدلي يو | آخر له کړو څخه پښېمان ګرځېدلي يو |
| دائما درفسق وعصیان مانده ایم | همقرین بنفس وشیطان مانده ایم |
| تل په فسق او ګناه کي پاته يو | ملګري له نفس او شيطان سره پاته يو |

**د لغاتو حل:** جرم (ګناه)؛ ګذار (تېرېدل)؛ سالها (کلونه)؛ در بند (په فکر کي)؛ دائماً (همېشه).

**لنډيز:** اوس مصنف رحمة الله عليه د الله جل جلاله دربار ته مناجات او دعاء کوي، فرمايي چي اې مهربانه خالقه! موږ ګناهکاران يو او ته د ګناهونو بخښونکی يې، نو زموږ ګناهونه وبخښه. موږ خطاکاران يو او بې اندازې ګناهونه مو کړي دي، په کلونو - کلونو د ګناهونو په فکر کي را باندي تېر سوي دي، تل په فسق او فساد کي شکېل پاته سوي يو او د نفس اماره او شيطان ملګري يو، خو اې مهربانه خدايه! اوس پر خپلو کړو ډېر پښېمانه يو...

| | |
|---|---|
| روز وشب اندر معاصی بوده ایم | غافل زامر ونواهی بوده ایم |
| ورځ او شپه په ګناهونو کي اخته يو | ناخبره له امر او نهيو څخه يو |

| | |
|---|---|
| بے گنه نگذشت برما ساعتی | با حضور دل نه کردم طاعتی |
| بې له گناه نه تیرېږي پر موږ یو ساعت | په حضور سره د زړه مو نه دئ کړی یو طاعت |
| بردر آمد بندهٔ بگریخته | آبروئ خود زعصیان ریخته |
| پر دروازه راغلی دئ غلام تښتېدلی | عزت خپل بې په گناه سره توی کړی دئ |
| مغفرت دارد امید از لطف تو | زانکه خود فرمودهٔ لا تقنطوا |
| د بخښني لري امید له مهربانۍ څخه ستا | ځکه چي تا خپله فرمایلي دي چي مه ناامیده کېږئ |

**د لغاتو حل:** بنده (غلام / مریی)؛ بگریخته (تښتېدلی)؛ ریخته (توی سوی / توی کړی).

**لنډیز:** ... موږ خو شپه او ورځ په گناهونو کي بوخت او مصروف یو او ستا له اوامرو او نواهیو څخه ناخبره او غافل یو، یو گړی هم راباندي له گناه پرته نه تیرېږي او نه مو ستا یو طاعت د زړه په حضور کړی دئ، نو دا تښتېدلی مریی بیرته ستا خوا ته راگرځېدلی دئ او خپل عزت یې د گناهونو په وجه له منځه وړی دئ، خو بیا هم ستا د فضل او مهربانۍ امید لري، ځکه چي تا خپله فرمایلي دي: "تاسي د الله تعالی له رحمت څخه مه ناهیلي کېږئ".

| | |
|---|---|
| بحر الطاف تو بے پایان بود | نا امید از رحمتت شیطان بود |
| دریاب د مهربانیو ستا بې اندازې دئ | نا امیده له رحمت څخه ستا شیطان دئ |
| نفس وشیطان زد کریما راه من | رحمتت باشد شفاعت خواه من |
| نفس او شیطان ووهله اې مهربانه لار زما | رحمت ستا به وي شفاعت غوښتونکی زما |
| چشم دارم کزگنه پاکم کنی | پیش ازان کاندر لحد خاکم کنی |
| امید لرم چي له گناه څخه مي پاک کړې | مخکي تر هغه چي په لحد کي مي خاوري کړې |
| اندرآن دم کزبدن جانم بری | ازجهان بانور ایمانم بری |
| په هغه ساعت چي له بدن څخه مي روح اخلې | له دینا څخه مي له نور سره د ایمان یوسه |

**د لغاتو حل:** الطاف (د لطف جمع ده یعني مهرباني)؛ زد (وهلې ده)؛ آن دم (هغه گړی).

**لنډیز:** مصنف بیا هم خپل مناجات ته دوام ورکوي او وایي چي اې مهربانه او بخښونکې خدایه! ستا د فضل او مهرباني دریابونه بې پایانه دي، موږ ستا له رحمت څخه نه ناهیلي کېږو، ځکه ستا له رحمت څخه شیطان ناهیلی سو، نو د ټول عمر محرومیت او ذلت یې په برخه سو. نفس اماره او شیطان زما لار وهلې ده، خو بیا هم ستا د رحمت غوښتونکی یم. امید لرم چي له ټولو گناهونو څخه مي مخکې تر هغه پاک او صفا کړې چي په لحد کي توري خاوري کېږم. اې لویه څښتنه! په داسي حال کي مي روح واخله چي د ایمان نور راسره ملگری وي. یعني آخیره خاتمه مي پر ایمان کړه.

# در بیان مخالفت نفس اماره

## د نفس اماره د مخالفت په بیان کي

| عاقل آن باشد که او شاکر بود | وانگهی بر نفس خود قادر بود |
|---|---|
| هوښیار هغه وي چي هغه شاکر وي | او بیا پر نفس خپل قادر وي |
| هر که خشم خود فرو برد ای جوان | باشد او از رستگاران جهان |
| هر چا که قهر خپل کښته یووړی اې خوانه | وي به هغه له خلاصو سوو څخه د جهان |
| آن بود ابله ترین مردمان | کز پئ نفس وهوا باشد دوان |
| هغه دئ ډېر کم عقله د خلگو | په وروسته پسي د نفس او خواهشاتو وي ځغستونکی |
| وانگهی پندارد آن تاریک رائی | خواهد آمرزیدنش آخر خدائی |
| او بیا به گمان کوي هغه تاریک فکره | چي وي به بخښونکی د ده آخر خدای |

**د لغاتو حل:** عاقل (هوښیار / عقل لرونکی)؛ شاکر (احسان منونکی / شکر کوونکی)؛ فرو (کښته)؛ ابله ترین (ډېر زیات کم عقل)؛ آمرزیدن (بخښونکی).

**لنډیز:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د نفس اماره (په بدیو امر کوونکي نفس) سره د مخالفت او

جگړې کولو بیان کړی دی، فرمایلي یې دي چې په خلگو هوښیار هغه څوک دی چې د الله تعالی د نعمتونو شکر کوونکی وي او پر خپل اماره نفس باندې قدرت او واک لري. اې انسانه! څوک چې خپل نهر او غوسه په واک او کنترول کې ولري، هغه به په دنیا او آخیرت کې خلاصون او نجات پیدا کړي. په دنیا کې تر ټولو خلگو زیات کم عقل او احمق هغه دی چې د خپل نفس او خواهشاتو تابع وي او بیا هم له الله تعالی څخه د رحمت او مغفرت امید لري...

| | |
|---|---|
| گرچه درویشی بود سخت ای پسر | هم ز درویشی نباشد خوبتر |
| که څه هم — فقیري وي — سخته — اې هلکه | همداسې — له فقیرۍ څخه — نه وي — بل ښه شی |
| هر که او را نفس توسن رام شد | از خردمندان نیکونام شد |
| هر چا لره چې د هغه نفس سرکښه تابع سي | له هوښیارانو څخه به — ښېک نومی — سي |
| بر مراد نفس تا گردی اسیر | صبر بگزین وقناعت پیشه گیر |
| په — مراد — د نفس — چې وګرځې — بندي | صبر غوره کړه — او قناعت — عادت — وګرځوه |
| در ریاضت نفس بد را گوشمال | تا نیندازد ترا اندروبال |
| په ریاضت کې — نفس بد لره — غوږ وپېچه | تر څو — ونه غورځوي — تا — په بلا کې |

**د لغاتو حل:** درویشی (ملنگي / فقیري)؛ خوبتر (ډېر ښه / زیات غوره)؛ توسن (سرکښه)؛ رام (تابع / تسخیر)؛ خردمند (عقلمند / هوښیار)؛ بگزین (غوره کړه)؛ ریاضت (له نفساني خواهشاتو سره مخالفت کول او د تقوی په لاره کې زیات کوښښ کول / د نفس تزکیه کول). گوشمال (ترټنه / غوږ پېچنه).

**لنډیز:** ... اې انسانه! دا سهي ده چې فقیري او ملنگي سخته ده، لېکن تر فقیرۍ بل ښه شی سته هم نه. څوک چې خپل سرکښه نفس تابع او کنترول کړي، هغه به په هوښیارانو کې نوم یوسي، ځکه چې دنیا او آخیرت به یې سم سي. کله چې ستا څخه ستا نفس د یوې گناه غوښتنه وکړي، نو صبر وکړه او له گناه څخه ځان وساته. په ریاضت سره نفس وترټه او کمزوري یې کړه، تر څو دومره ځواک پکښې پاته نه سي چې تا له سمې لارې واړوي او په گناهونو کې دې راگیر کړي...

**هر که خواهد تا سلامت ماند او | از جمیع خلق رو گرداند او**

هرڅوک چې غواړي تر څو سلامت پاته سي هغه | له ټولو خلګو څخه دي مخ وګرځوي هغه

**مردمان را سر بسر در خواب دان | گشت بیدار آنکه او رفت از جهان**

خلګو لره سر پر سر په خوب کې وبوله | کېږي بیدار هغه چې دی ولاړ سي له دنیا څخه

**آنکه رنجاند ترا عذرش پذیر | تا بیابی مغفرت بروی مگیر**

هغه چې په تکلیف کړي ته عذر د هغه ومنه | تر څو چې ومومې بخښنه مه یې نیسه

**حق ندارد دوست خلق آزار را | نیست این خصلت یکی دیندار را**

خدای تعالی نه لري خوښ خلګ زهیروونکی | نه دئ دا خوی د یوه دینداره انسان

**د لغاتو حل:** ماند (پاته سي)؛ رنجاند (ورنځوي / په تکلیف کړي)؛ پذیر (منل / قبلول)؛ خلصت (خوی / عادت / صفت)؛ دیندار (تقوا لرونکی / سپېڅلی).

**لنډیز:** ... څوک چې غواړي چې سلامت او له هره غمه خلاص پاته سي، نو له ټولو خلګو څخه دي ځان جلا کړي. د دنیا ټول خلګ بیده دي یوازې هغه وخت بیداره کېږي چې له دنیا څخه ولاړ سي. کوم څوک چې تا ته کوم تکلیف ورسوي، یا دي زهیر کړي، نو د هغه عذر ومنه او بخښنه ورته وکړه، تر څو مهربانه خدای تا ته هم ستا د غلطیو بخښنه وکړي. یو دینداره او ښه انسان خلګ نه آزاروي او څوک چې خلګ آزاروي له هغه څخه د خلګو بد راځي او لیري ځني ګرځي...

**از ستم هر کو دلے را ریش کرد | آن جراحت بر وجود خویش کرد**

له ظلم څخه هر څوک چې یو زړه زخمي کړي | دغه زخم یې پر وجود خپل جوړ کړ

**آنکه در بند دل آزاری بود | در عقوبت کار او زاری بود**

هغه چې په فکرکې د زړه زهیروني وي | په انجام کې به کار د هغه زاري وي

**اے پسر قصد دل آزاری مکن | وز خدای خویش بیزاری مکن**

| | |
|---|---|
| اې هلکه نیت د زړه زهیروني مه کوه | او خدای خپل شخه بېزراي مه کوه |
| **خاطر کس را مرنجان ای پسر** | **ورنه خوردی زخم بر جان و جگر** |
| زړه د یو چا مه خواشینی کوه اې هلکه | که نه نو وبه خورې زخم پر روح اوزړه باندي |

**د لغاتو حل:** ستم (ظلم)؛ ریش (زخمي)؛ عقوبت (انجام / پای / پایله)؛ خاطر (احساسات / زړه).

**لنډیز:** ... څوک چي د نورو خلګو زړونه آزاروي، دا په حقیقت کي له خپل ځان سره ظلم کوي. د چا چي کار د خلګو زړونه آزارول وي، په آخر کي به يې کار زاري کول وي، خو څه به لاسته نه ورځي. اې انسانه! هیڅکله د زړونو د آزارولو فکر مه کوه او له خپل مهربانه خدای څخه ځان مه لیري کوه، هیڅکله د چا زړه مه ماتوه، که نه نو خپل ځان ته به ډېر زیان ورسوې...

| | |
|---|---|
| **نام مردم جز به نیکوئی مبر** | **گر همی خواهی که گردی معتبر** |
| نوم د خلګو ماسېوا له نېکی شخه مه اخله | که چیري همداسي غواړې چي وګرځې معتبر |
| **قوت نیکی نداری بد مکن** | **بر وجود خود ستم بیحد مکن** |
| که توان د نېکی نه لرې بد مه کوه | پر وجود خپل ظلم بې اندازې مه کوه |
| **رو زبان از غیبت مردم به بند** | **تا نه بینی دست و پای خود به بند** |
| خه! ژبه له غیبت شخه د خلګو بنده کړه | تر څو ونه وینې لاس او پښه خپل تړلي |
| **هر که از غیبت زبانش بسته نیست** | **آن چنان کس از عقوبت رسته نیست** |
| دهرچا چي له غیبت شخه ژبه د ده تړلې نه وي | دا ډول څوک له عذاب شخه خلاص نه وي |

**د لغاتو حل:** معتبر (د اعتبار وړ / ارزښتمن)؛ زبان (ژبه)؛ به بند (تړلي / بسته)؛ رسته (خلاص).

**لنډیز:** ...که چیري غواړې چي په ټولنه یو معتبر او با ارزښته شخص جوړ سې، نو هیڅکله د یو چا نوم په بدو مه یادوه. که چیري د ښو او نېکیو توان او وس نه لرې، نو بدي هم مه کوه او پر خپل ځان باندي ظلم مه کوه. ژبه دي د خلګو له غیبت کولو څخه بنده وساته، تر څو لاسونه او پښې دي خلاص پاته وي، ځکه څوک چي د خلګو غیبت کوي، د هغه لاسونه او پښې بند او تړلي وي. څوک چي د خلګو

غیبت کوي، هغه ته به په قیامت کې خامخا سخت عذاب ورکول کیږي.

# در بیان فوائد خاموشی

## د چپه خوله والي د فائدو په بیان کې

| | |
|---|---|
| ای برادر گر تو هستی حق طلب | جز بفرمان خدا مکشائ لب |
| اې وروره! که چیرې ته یې خدای طلبوونکی | ماسېوا له فرمانه د خدای مه خلاصوه شونډې |
| گر خبرداری زحی لا یموت | بر دهان خود بنه مهر سکوت |
| که چیرې خبر لرې له ژوندي نه مړه کېدونکي ذات څخه | پرخوله خپله کښېږده تاپه د چوپوالي |
| ای پسر پند و نصیحت گوش کن | گر نجاتے بایدت خاموش کن |
| اې هلکه! پند او نصیحت ته غوږ کړه | که چیرې خلاصون په کار وي ستا چوپ سه |
| هر کرا گفتار بسیارش بود | دل درون سینه بیمارش بود |
| هر چا لره چې خبرې ډېرې د ده وي | زړه دننه په سینه کې د ده بیمار وي |

**د لغاتو حل:** برادر (ورور)؛ لب (شونډې)؛ مهر (تاپه)؛ پسر (زوی / هلک)؛ بیمار (ناروغ / مرضمن).

**لنډیز:** په دې باب کې شیخ فرید الدین عطار رحمة الله علیه د چوپوالي او پټه خوله اوسېدلو ځینې ګټې او فائدې بیانوي، وایي چې اې انسانه! که چیرې ته له الله تعالی سره د محبت غوښتونکی یې، نو د هغه جل جلاله له فرمان پرته بل څه له خولې مه راباسه. که چیرې ته خپل ستر پالونکی پېژنې چې تل تر تله ژوندی او هیڅکله نه مر کېدونکی دی؛ نو پر خپله خوله باندې د چوپوالي تاپه ووهه او تل چوپ اوسه.
اې انسانه! که چیرې غواړې چې په دنیا او آخیرت کې نجات او خلاصون ترلاسه کړې، نو زما دا نصیحت په غوږ کې ونیسه او چوپ او پټه خوله اوسه. ځکه څوک چې ډېرې او بې ځایه خبرې کوي، د هغه زړه په سینه کې دننه نارغ او مرضمن وي...

| | |
|---|---|
| عاقلان را پیشه خاموشی بود | پیشه جاهل فراموشی بود |
| هوښیارانو لره خوی چوپوالی وي | خوی د ناپوه هېرول وي |
| خامشی از کذب و غیبت واجبست | ابلهست آن کو بگفتن راغب ست |
| چوپ والی له درواغو او غیبت څخه واجب دئ | کم عقل دئ هغه څوک چې خبرو ته لېواله وي |
| ای برادر جز ثنای حق مگو | قول خودرا ازبرائ دق مگو |
| اې وروره! ما سېوا له ثنا څخه د خدای مه وایه | خبرې خپلې له پاره د تنګولو مه وایه |
| هرکه دربند عمارت میشود | هرچه دارد جمله غارت میشود |
| هر څوک چې په فکر کې د آبادۍ کېږي | هر څه چې لري ټوله لوټ کېږي |

**د لغاتو حل:** پیشه (خوی / عادت)؛ جاهل (ناپوه / بې علمه)؛ فراموشي (هېره)؛ ابله (کم عقل)؛ دق (تنګول / په تکلیف کول)؛ عمارت (آبادي / رغونه)؛ غرات (لوټ / چور).

**لنډیز:** ... د هوښیارانو کار پټه خوله اوسېدل وي، څوک چې پند او نصیحت له یاده باسي او هېروي یې، هغه ناپوه او کم عقل وي. له درواغو ویلو او غیبت کولو څخه ځان ساتل او پټه خوله اوسېدل واجب دي، یو احمق او ناپوه انسان له زیاتو خبرو سره مینه لري. اې انسانه! د الله جل جلاله له ستاینې او ذکر او نورو ښو خبرو پرته له خولې هیڅ خبرې مه راباسه او دا ډول خبرې خو ښځې مه کوه چې خلګو ته تکلیف او آزار په رسېږي. څوک چې د ابادۍ او جوړونې په فکر کې وي، نو کومې شتمنۍ او جایدادونه چې لري، ټول یې له لاسه وسي...

| | |
|---|---|
| دل ز پر گفتن بمیرد در بدن | گرچه گفتارش بود دُرّ عدن |
| زړه له ډېرو خبرو مري په بدن کې | که څه هم خبرې د ده ملغلرې وي د عدن |
| آنکه سعی اندر فصاحت میکند | چهرهٔ دل را جراحت میکند |
| هغه چې کوښښ په فصاحت کې کوي | مخ د زړه زخمي کوي |

| | |
|---|---|
| رو زبان را دردهان محبوس دار | وز خلائق خویش را مایوس دار |
| څه ! ژبه په خوله کې بندي ولره | له خلګو څخه خان ناهیلی ولره |
| هرکه او بر عیب خود بینا بود | روح او را قوتی پیدا شود |
| هر څوک چې هغه پر عیب خپل بینا وي | روح د هغه لره یو قوت پیدا کیږي |

**د لغاتو حل:** بمیرد (مړ کیږي)؛ دُر (ملغلري)؛ سعی (کوښښ)؛ محبوس (بندي)؛ مایوس (نا امیده)؛ عیب (نیمګړتیا)؛ بینا (لیدونکی).

**لنډیز:** ... د ډېرو خبرو په کولو سره د انسان زړه مړ کیږي، که څه هم خبري یې د ملغلرو په څېر ارزښتمني وي. څوک چي د خبرو له پاره د الفاظو په را ټولولو کې کوښښ کوي او غواړي چي په ډېر فصاحت سره وینا وکړي، هغه په حقیقت کې پر خپل زړه باندي زخم جوړوي. اې انسانه! خپله ژبه دې په خوله کې دننه بندي کړه او ډیري خبري مه کوه او ځان دې له خلګو څخه ناهیلی ولره او له هیچا څخه د هیڅ شي تمه مه لره. کوم څوک چي خپل عیبونهویني او په اصلاح کولو کې یې هڅه او کوښښ کوي، د هغه روح ته الله جل جلاله یو ډول قوت او ځواک وربخښي.

# دربیان عمل خالص

## د خالص عمل په بیان کې

| | |
|---|---|
| هرکه باشد اهل ایمان ای عزیز | پاک دارد چارچیز از چارچیز |
| هر څوک چې وي خاوند د ایمان اې ګرانه! | پاک لري څلور شیان له څلورو شیانو |
| ازحسد اول تو دل را پاک دار | خویشتن را بعد ازان مومن شمار |
| له حسد څخه اول ته زړه پاک ولره | خپل ځان وروسته تر دې مومن وشمېره |
| پاک دار از کذب واز غیبت زبان | تاکه ایمانت نیفتد در زیان |
| پاکه ولره له دروغو او له غیبت څخه ژبه | ترڅو چي ایمان ستا ونه لویږي په زیان کې |

| پاک گرداری عمل را از ریا | شمع ایمان ترا باشد ضیا |
|---|---|
| پاک که چېرې ولرې عمل له ریا څخه | څراغ د ایمان ستا به وي روښانه |

**د لغاتو حل:** خالص (صفا / سوتره / له هر ډول ککړتیاؤ څخه پاک)؛ کذب (درواغ)؛ زیان (تاوان / نقصان).

**لنډیز:** اوس مصنف رحمة الله علیه د عمل خالص په بیان کوي، عمل خالص هغه ته ویل کیږي چې خاص او خاص د ښېګنې په موخه د الله تعالی د رضا له پاره کیږي، بل هیڅ دنیوي موخه او مقصد پکښې نه وي. مصنف رحمة الله علیه فرمایي: څوک چې د ایمان څښتن وي یعنې مومن وي، نو څلور شیان له څلورو شیانو څخه پاک ساتي: ۱- لومړی زړه له حسد او کینې څخه پاک ساتي، بیا ځان ته مومن مسلمان وایي. ۲- ژبه له درواغو او غیبت څخه پاکه ساتي، تر څو ایمان ته یې زیان ونه رسیږي. ۳- عملونه له ریا او ځان ښوونې څخه پاک ساتي، تر څو د ایمان شمع یې همداسې روښانه پاتې وي...

| چون شکم را پاک داری از حرام | مرد ایمان دار باشی والسلام |
|---|---|
| کله چې نس پاک لرې له حرامو څخه | سړی ایماندار به اوسې او سلامت |
| هر که دارد این صفت باشد شریف | ورندارد دار ایمان ضعیف |
| هر څوک چې لري دا صفت وي شریف | که یې نه لري لري به ایمان کمزوری |
| هر که باطن از حرامش پاک نیست | روح اورا ره سوی افلاک نیست |
| دهرچاچې باطن د ده له حرامو څخه پاک نه وي | روح دده لره لار طرف ته د آسمانونو نه وي |
| چون نباشد پاک اعمال از ریا | هست بیحاصل چو نقش بوریا |
| چې نه وي پاک عملونه له ریا څخه | وي بې ګټې لکه نقش د بوریا |

**د لغاتو حل:** شکم (نس)؛ شریف (عزتمن)؛ باطن (دننه / نس)؛ ریا (ځان ښوونه).

**لنډیز:** ... ۴- نس له حرامو څخه پاک ساتي، تر څو ایماندار او سلامت واوسي. څوک چې په ځان کې دا صفتونه لري، هغه به شریف او عزتمن وي، خو څوک چې یې نه لري، هغه به د کمزوري ایمان څښتن وي. د چا چې نس له حرامو ډک وي، د هغه روح د آسمان لوري ته د تللو لار نه سي پیدا کولای. او د

چا چې عمل له ريا څخه خالي نه وي، نو دا عمل يې هيڅ گټه او فائده نه لري او د الله تعالی په دربار کې د قبول وړ نه وي...

| هر که دراعمال او اخلاص نیست | درجهان ازبندگان خاص نیست |
| --- | --- |
| د هرچاچې په اعمالو کې د ده اخلاص نه وي | په جهان کې له خاصو بندگانو څخه نه وي |
| هر که کارش ازبرای حق بود | کار او پیوسته با رونق بود |
| د هر چا چې کار له پاره د خدای وي | کار د ده به همېشه له رڼا سره وي |

**د لغاتو حل:** خاص (ځانگړي)؛ پيوسته (تل / همېشه)؛ رونق (ځلا / روښنايي).

**لنډيز:** ... همدا ډول څوک چې په خپلو عملونو کې اخلاص نه لري، نو هغه په دنيا کې له خاصو بندگانو څخه نه سې جوړېدای. خو د چا چې عملونه او کارونه د الله تعالی د ضا له پاره وي، هغه به تل پر سمه او سيده لاره وي.

# در سیرت ملوک

## د باچاهونو د ژوندانه په اړه

| چار خصلت ای برادر درجهان | بادشاهان را همی دارد زیان |
| --- | --- |
| خلور خویونه اې وروره په جهان کې | باچاهانو لره همداسي لري تاوان |
| بادشاه چون برملا خندان بود | بیگمان درهیبتش نقصان بود |
| باچا چې کله په ښکاره خند کوونکی وي | بې شکه به په هیبت کې د ده نقصان وي |
| باز صحبت داشتن باهر فقیر | بادشاهان را همی سازد حقیر |
| بیا مجلس کول له هر فقیرسره | باچهان همداسي جوړوي سپک |
| بازنان بسیار گر خلوت کند | خویشتن را شاه بی هیبت کند |
| له ښځو سره ډېر که چیري خلوت کوي | خپل ځان لره باچا بې هیبته کوي |

**د لغاتو حل:** سیرت (ژوند / د ژوندانه حالات)؛ ملوك (د ملك جمع ده یعني باچاه)؛ برملا (په ښکاره توګه)؛ هیبت (برم / عظمت / دبدبه / ستاره)؛ حقیر (سپک / بې وزنه)؛ خلوت (یو ځای والی).

**لنډيز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د باچاهانو د ژودانه اړوند ځیني لارښووني بیان کړي دي، فرمايي چې څلور شیان د باچاهانو باچاهۍ ته زیان رسوي: ۱- یو دا چې باچا په لوړ آواز او په ښکاره ډول خاندي، دا کار یې بې له کومه شکه د دبدبې او عظمت په زیان تماميږي. ۲- دویم دا چې له هر فقیر او ګدا سره مجلس کول، چې دا کار هم باچا سپکوي. ۳- دریم دا چې له ښځو سره زیات وخت یو ځای تېرول، چې کار هم باچا بې هیبته کوي...

| | |
|---|---|
| هر کرا فرّ جهان داری بود | میل او سوئ کم آزاری بود |
| هر چا لره چي برم د باچاهۍ وي | لېوالتیا د هغه طرف ته د بې آزارۍ وي |
| عدل باید بادشاهان را وداد | تا زعدلش عالمی گردند شاد |
| عدل ښايي باچاهانو لره او انصاف | تر څو له عدل څخه د ده عالَم وګرځي خوشحاله |
| گر کند آهنگ ظلمی بادشاه | سود نه کند مر ورا گنج و سپاه |
| که چیري وکړي قصد د ظلم باچا | ګټه نه کوي خاص ده لره خزانې او لښکر |
| با زنان شاهی که در خلوت نشست | دور نبود گر رود ملکش زدست |
| له ښځوسره یو باچا چي په خلوت کي کښېني | لیري به نه وي چي ولاړه سي باچاهي یې له لاسه |

**د لغاتو حل:** فَرّ (دبده / هیبت)؛ میل (شوق / لېوالتیا)؛ داد (انصاف)؛ سود (ګټه / فائده).

**لنډيز:** ... څوک چي د باچاهۍ برم او دبدبه لري، هغه هیڅکله خلګ نه آزاروي. باچا لره عدل او انصاف په کار دئ، تر څو رعیت یې خوښ او خوشحاله وي. که چیري یو باچا او واکمن ظالم وي، نو بیا یې د باچاهۍ په ساتلو کي خزانې او فوجونه هیڅ په درد نه خوري، یعني له خزانو او لښکرونو سره - سره به یې واکمني له منځه ځي. کوم باچا او واکمن چي زیات وخت له ښځو سره یو ځای تېروي، نو دا لیري نه ده چي ژر ت ژره یې باچاچي له لاسه ووزي...

**چونکه عادل باشد و میمون لقا ‖ باشد اندر مملکت شه را بقا**

کله چې عادل وي او مبارک دیداره ‖ وي به په مملکت کې باچا لره بقا

**چون کند سلطان کرم با لشکری ‖ بهر او بازند صد جان سرسری**

کله چې کوي باچا مهرباني له لښکرو سره ‖ له پاره دده به وهي سل روحه مفت

**د لغاتو حل:** میمون لقا (خوش طبیعته، چې له خلګو سره په ورین تندي مخ کیږي)؛ کرم (مهرباني / نرمي).

**لنډیز:** ... کوم باچا چې عادل او خوش اخلاقه وي، د هغه باچاهي به دوامداره وي. همدا ډول باچا چې کله له خپلو لښکریانو سره نرمي او مهرباني کوي، نو هغوی به د خپل باچا له پاره د ځانونو قربانولو ته هم تیار وي.

# در بیان حسن خلق

## د ښو اخلاقو په بیان کې

**چار چیز آمد بزرگی را دلیل ‖ هر که این دارو بود مرد جلیل**

څلور شیان راغله بزرګۍ لره دلیل ‖ هر څوک چې دا لري وي به سړی لوی

**علم را اعزاز کردن بیحساب ‖ خلق را دادن جواب باصواب**

علم لره عزت کول بې حسابه ‖ خلګو لره ورکول د جواب په نېکۍ سره

**هر که دارد دانش و عقل و تمیز ‖ اهل علم و حلم را دارد عزیز**

هر څوک چې لري پوهه او عقل او هوښ ‖ خاوندان د علم او د زغم لري عزتمن

**دیگر آن باشد که جوید وصل دوست ‖ زانکه از دشمن حذر کردن نکوست**

بل هغه دئ چې طلبوي وصال د دوست ‖ ځکه چې له دښمن څخه ځان ساتل ښه دي

**د لغاتو حل:** حسن خلق (غوره اخلاق)؛ بزرګی (لويي)؛ جلیل (ستر / لوی)؛ اعزاز (قدر / درناوی). حذر

گردن (ځان ساتل / لیرې اوسېدل).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د ښو اخلاقو اړوند څو خبرې کوي، وایي چې څلور شیان د لویۍ او بزرګۍ دلیل دئ، څوک چې دا شیان په ځان کې ولري، هغه به ستر شخصیت وي: ۱- لومړی د علم قدر او درناوی کول. ۲- خلګو ته په ښه او نېک ډول جواب ورکول. څوک چې عقل او هوښ لري هغه تل د عالمانو عزت او درناوی کوي. ۳- له دوستانو سره یو ځای اوسېدل. ۴- له دښمنانو څخه ځان ساتل او تل بیداره اوسېدل...

| | |
|---|---|
| ای برادر گر خبر داری تمام | نرم و شیرین گوئی با مردم کلام |
| اې وروره! که چیرې خبر لرې پوره | نرمي او خوږې وایه له خلګو سره خبرې |
| هر که باشد تلخگوی و ترشروی | دوستان ازوی بگردانند روی |
| هر څوک چې وي تریخ ویونکی او تروش مخی | دوستان له هغه څخه ګرځوي مخ |
| هر که از دشمن نباشد پر حذر | عاقبت بیند ازو رنج و ضرر |
| هرڅوک له دښمن څخه نه وي ځان ساتونکی | آخر به ویني له هغه څخه تکلیف او زیان |
| در میان دوستان مسرور باش | گر خبرداری ز دشمن دور باش |
| په منځ کې د دوستانو خوشحاله اوسه | که چیرې خبر لرې له دښمن څخه لیرې اوسه |

**د لغاتو حل:** تمام (بشپړ)؛ مسرور (خوښ / تازه / خوشحاله).

**لنډیز:** ... که پوهېږې او هوښیار یې نو له خلګو په نرمۍ او خوږې خبرې کوه. ځکه څوک چې په تندۍ خبرې کوي او تروش مخ یې نیولی وي، دوستان یې مخ ځني اړوي او یوازې یې پرېږدي. څوک چې دښمن ته بیداره نه وي او ځان خوندي نه ساتي، یوه ورځ به خامخا په مشکل کې راګیر سي. نو که هوښیار یې له دښمن څخه لیرې او د دوستانو په منځ کې اوسه...

| | |
|---|---|
| در جوار خود عدو را ره مده | از برای آنکه دشمن دور به |
| په ګاونډ کې خپل دښمن ته لار مه ورکوه | له پاره د دې چې دښمن لیرې ښه وي |

با محبان باش دائم همنشین | تا توانی روی اعدا را مبین

له دوستانو سره اوسه تل ناسته | تر څو چي کولای سي مخ د دښمنانو مه وینه

ای پسر تدبیر ره را توشه کن | پس حدیث این و آن یک گوشه کن

اې هلکه! انتظام د لاري د توښې وکړه | بیا خبري د دې او د هغه یو طرف ته کړه

**د لغاتو حل:** جوار (څنگ / گاونډ)؛ عدو (دښمن)؛ به (ښه)؛ اعدا (دښمنان)؛ ره (لاره)؛ گوشه (لیري).

**لنډیز:** ... هیڅکله دښمن ته په څنگ او گاونډ کي ځای او لار مه ورکوه، ځکه چي دښمن چي هر څومره لیري وي، ښه دئ. له خپلو دوستانو سره تل ملگری او یو ځای اوسه او څومره چي دي په وس کي وي، له دښمنانو سره مه مخامخ کېږه. کله چي په سفر روانېږې نو لومړی د لاري توښه او خرڅ برابر کړه.

# در بیان مهلکات

## د هلاکوونکو شیانو په بیان کي

چار چیز است ای برادر با خطر | تا توانی باش زینها پر حذر

څلور شیان دي اې وروره! له خطر سره | ترڅو کولای سې اوسه له هغو څخه ډک له بېرې

قربت سلطان والفت با بدان | رغبت دنیا وصحبت با زنان

نیژدېوالی د باچا او یو ځای والی له بدانو سره | مینه د دنیا او مجلس له ښځو سره

قرب سلطان آتش سوزان بود | با بدان الفت هلاک جان بود

نیژدېوالی د باچا اور سوځوونکی وي | له بدانو سره یو ځای والی هلاکت د روح وي

زهر دارد دردرون دنیا چو مار | گرچه بینی ظاهرش نقش ونگار

زهر لري په دننه کي دنیا لکه مار | که څه هم وینې ښکاره ددې نقش او نگار

**د لغاتو حل:** الفت (لېوالتیا / محبت)؛ سوزان (سوځونکی)؛ هلاک (هلاکت / بربادي).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کې د هغو شیانو بیان کوي چې انسان له هلاکت او بربادۍ سره مخ کوي، فرمایي چې څلور شیان له خطره ډک دي، تر څو چې کولای سې ځان لیرې ځني ساته. ۱- لومړی د باچا نیژدېوالی؛ ۲- دویم له بدو او غلطو خلګو سره ناسته ولاړه؛ ۳- له دنیا سره مینه؛ ۴- له ښځو سره مجلس کول او وخت ورسره تېرول. دا ځکه چې د باچا نیژدېوالی د سوځونکي اور په څېر دئ، که څه هم په ظاهره ښه معلومېږي، چې دا دئ ولا له باچا سره شناخت لرمه...

| | |
|---|---|
| می نماید خوب وزیبا درنظر | لیک اززهرش بود جانرا خطر |
| ښکارېږي ښه او ښکلې په نظر کې | لېکن له زهرو څخه یې وي روح لره خطر |
| زهر این مار منقش قاتل است | باشد ازوی دور هرکو عاقل است |
| زهر د دې مار رنګین وژونکي دي | وي له دې څخه لیري هر څوک .چې هوښیار وي |
| همچو طفلان منگر اندر سرخ وزرد | چوزنان مغرور رنگ بو مگرد |
| لکه د ماشومانو غوندي مه ګوره په سرو اوژړوکي | لکه ښځي تېروتلي په رنګ او بوی مه کېږه |
| زال دنیا چون عروس آراست ست | وردو روزی شوی دیگر خواست ست |
| بوډۍ د دنیا لکه ناوې سینګار سوې ده | په دوې ورځي کي سي د بل په غوښتنه ده |

**د لغاتو حل:** منقش (رنګین / نقاشي سوی)؛ منگر (مه ګوره)؛ سرخ (سور رنګ)؛ زرد (ژړ رنګ)؛ مغرور (متکبر / کبرجن / خطاوتلی)؛ زال (بوډۍ / زړه ښځه). عروس (ناوې).

**لنډیز:** ... دا دنیا په نظر کې ښکلې او ښایسته ښکاري، لېکن په حقیقت کې زهر دي چې انسان وژني. همدا ډول دنیا د ښکلي او ښایسته مار په څېر ده، څوک چې لږ څه عقل او هوښیاري ولري هغه له دې ښکلي مار څخه لیري ګرځي ځکه چې دا مار وژونکي زهر هم لري چې انسانان له منځه وړي. نو ته هم د ماشومانو په څېر په سرو او ژړو ځلېدونکو رنګونو پسې مه ځه او د ښځو په څېر په ښه رنګ او بوی مه خطاوزه. ځکه چې د دنیا بوډۍ د هغې سینګاري سوې ناوې په څېر ده چې په دوې ورځي کې تا پرېږدي او له نورو سره ځي...

| | |
|---|---|
| مقبل آن مردی که شد زین جفت طاق | پشت بروی کرد وداداش سه طلاق |
| بختور هغه سړی دی چې سي له دې څخه جلا | شا يې دې ته کړې ده او ورکړې يې دي درې طلاقه |
| لب به پیش شوی خندان میکند | پس هلاک از زخم دندان میکند |
| شوندان يې په مخ کې د خاوند خندا کوي | وروسته هلاک په زخم سره د غاښو کوي |

**د لغاتو حل:** مقبل (بختور)؛ پشت (شا)؛ دندان (غاښونه).

**لنډيز:** ... نو بختور به هغه څوک وي چې له دې خطا ايستونکي دنيا څخه ځان جلا کړي او داسې يې تر شا پرېږدي لکه څوک چې خپلې مېرمنې ته درې طلاقه ورکړي او بيا هيڅکله نه ورته راګرځي. ځکه چې دا دنيا د هغې مکارې او چمبازې مېرمنې په څېر ده چې مخامخ ورته خاندي خو کله چې يې د خاوند شا سي، نو په غاښونو غوښې شکوي.

# در بيان اهل سعادت

## د نېمکرغی د ښتنتان په بيان کې

| | |
|---|---|
| شد دلیل نیک بختی چار چیز | هر که این چارش بود باشد عزیز |
| سوه دليل د نېکبختۍ څلور شيان | هر څوک چې دا څلور لري وي به عزتمند |
| هر که در بند عمارت می شود | هرچه دارد جمله غارت میشود |
| هر څوک چې په فکر کې د آبادۍ کېږي | هرڅه چې لري توله لوټ کېږي |
| اصل پاک آمد دلیل نیک بخت | نیست بد اصلی سزای تاج و تخت |
| اصل پاک راغلی دليل د نېکبختۍ | نه دئ بد ذاته لائق د تاج او تخت |
| نیک بختان را بود رای صواب | آنکه بد رائیست باشد در عذاب |
| نېکبختانو لره وي فکر د نېکۍ | هغه چې بد فکره دئ وي به په عذاب کې |

**د لغاتو حل:** اهل سعادت (نېکمرغه کسان)؛ عمارت (آبادي)؛ بد اصلی (بد ذاتي)؛ سزای (لائق / ور).

**لنډيز:** دلته مصنف رحمة الله علیه د نېکمرغی او نېکمرغانو ځيني نښې او علامې بيانوي، تر څو ټول خلگ دا شيان په ځانونو کي راولي او ځانونو له بدمرغی وژغوري، فرمايي چي څلور شيان د نېکمرغی او سعادت نښې او علامې دي، څوک چي دا شيان په ځان کي ولري هغه به عزتمن وي. د يوه انسان چي ذات او رېښه پاکه او سوتره وي، يعني له ښه او غوره خاندان څخه وي، هغه نېکمرغه او نېکبخته وي. ځکه چي بد اصله او بد ذاته انسان د تاج او تخت وړتيا نه لري. نېکمرغه کسان تل د نېکی او ښېگڼي په فکر کي وي او فد فکره انسانان تل په عذابونو او ستونزو کي ښکېل وي...

| | |
|---|---|
| هر که ایمن از عذاب حق بود | نیست مومن کافر مطلق بود |
| هرڅوک چي بې غمه له عذاب څخه د خدای وي | نه دئ مومن کافر مطلق دئ |
| عمر دنیا چند روزی بیش نیست | غافلست آنکس که پیش اندیش نیست |
| عمر د دنيا څو ورځي ډېر نه دئ | غافل دئ هغه څوک چي په مخ کي فکرمن نه وي |
| ترک لذات جهان باید گرفت | دامن صاحبدلان باید گرفت |
| پرېښول د خوندونو د دنيا په کار دي نيول | لمن د ښو خلگو په کار دي نيول |
| درپئ لذات نفسانی مباش | دوستدار عالم فانی مباش |
| په طلب کي د خوندونو د نفس مه اوسه | خوښوونکی د دنيا فاني مه اوسه |

**د لغاتو حل:** ايمن (بې غمه / بې اندېښنې)؛ مطلق (په پوره توگه)؛ لذات (دنيوي خوندونه)؛ دامن (لمن).

**لنډيز:** ... کوم څوک چي د خدای پاک له عذاب څخه بې اندېښنې وي، هغه مومن نه دئ، بلکي کافر دئ. د دنيا عمر فقط يو څو ورځي دي، اصلي ژوند د آخيرت دئ چي تلپاتی دئ، نو څوک چي د دنيا په دې څو ورځي ژوند کي د آخيرت تلپاتي ژوند ته امادگي ونه نيسي، هغه غافل او ناخبره دئ. د دنيا لذتونه بايد شا ته پرېښوول سي او د ښو او نېکو خلگو لمن بايد ونيول سي. نو اې انسانه! ته د خپل نفس په خواهشاتو مه پسې کېږه او له دې له منځه تلونکي دنيا سره مينه او محبت مه ساته...

نیست حاصل رنج دنیا بردنت | عاقبت چون می بباید مردنت

نه سته گټه د رنځ د نیا په وړلو کي | آخر چي بنايي مړ کېدل تا لره

ازتنت چون جان روان خواهد شدن | خاک اندرا ستخوان خواهد شدن

له تن څخه چي کله روح وزي سي | خاوري به دي په هډوکو کي ولاړي سي

مرترا ازدادن جان چاره نیست | رهزنت جز نفسک اماره نیست

خاص تا لره له ورکولو څخه د روح چاره نه سته | لاروهونکی ستا ما سېوا له نفس اماره څخه بل نه دئ

**د لغاتو حل:** حاصل (لاسته راوړنه)؛ رنج (رنځ/ تکلیف / کړاو).

**لنډيز:** ...د دنیا له پاره ستونزي او تکلیفونه زغمل او خواری. کښل هیڅ گټه نه لري، ځکه چي آخر نه مرگ راځي او هر څه له منځه وړي. کله چي ستا له بدن څخه روح ووزي نو د وخت په تېرېدلو سره به دي هډونه لا خاوري سي. ته له مرگ څخه په هیڅ ډول خلاصېدلای نه سې. نو ښه دا ده چي خپل لار وهونکي ته، چي ستا نفس دئ، بیداره اوسې او اجازه ور نه کړې چي ژوند دي در تباه او برباد کړي.

# در بیان سبب عافیت

## د سلامتی د سبب په بیان کي

عافیت را گر بخواهی ای عزیز | میتوانش یافتن درچار چیز

سلامتي که چیري غواړې اې عزیزه! | پیدا کولای يې سې په څلورو شیانو کي

ایمنی و نعمت اندرخانه دان | تندرستی وفراغت بعد ازان

بې غمي او نعمت په کور کي وبوله | روغتیا او خلاصیت وروسته تر هغه

چونکه با نعمت امانی باشدت | عافیت را زو نشانی باشدت

کله چي له نعمت سره امان وي تا ته | سلامتی لره به له هغه څخه نښه وي تا لره

بادل فارغ چو باشی تندرست | دیگر از دنیا نباید هیچ جست

له زړه بې غمه سره چې اوسې روغ رمټ | نور نو له دنیا څخه په کار نه دي هیڅ لټول

**د لغاتو حل:** عافیت (سلامتي / خلاصون)؛ فارغ (بې اندېښنې)؛ تندرست (روغ جوړ).

**لنډيز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کې د سلامۍ د سببونو اروند بیان کوې چې عافیت او سلامتي په کومو سببونو سره ترلاسه کېږي، وایي چې که چیرې غواړې چې په دنیا کې سلامت او له ټولو ستونزو څخه بې غمه واوسې، نو په څلورو شیانو کې یې ترلاسه کولای سې: ۱- بې غمي؛ ۲- په کور ستنه نعمتونه؛ ۳- روغت صحت؛ ۴- فراغت. کله چې ته د نعمتونو څښتن یې او له هغه سره په امن او امان کې ژوند کوې، نو دا د عافیت او سلامتۍ نښه ده. همدا ډول کله چې دې زړه بې غمه وي او بدن دې روغ رمټ وي، نو له دنیا څخه تر دې نور ښه څه نه ترلاسه کېږي...

برمیاور تا توانے کام نفس | تا نیفتی ای پسر در دام نفس

مه پوره کوه ترخوچې کولای سې مقصد د نفس | تر څو ونه لوېږې اې هلکه په دام کې د نفس

زیر پا آور هوای نفس را | کم بدو ده بهرهای نفس را

لاندې تر پښو راوړه خواهشات د نفس | لږ ورکړه ده ته حصې د نفس

نفس وشیطان می برند از ره ترا | تا بیندازند اندر چه ترا

نفس او شیطان وړي له لارې څخه تا | تر څو وغورځوي په څا کې تا

نفس را سرکوب ودائم خواردار | تا توانی دورش ازمردار دار

نفس لره سر وټکوه او همېشه یې خوار ولره | ترخوچې کولای سې لیرې یې له مرداری څخه ولره

**د لغاتو حل:** کام (موخه / مقصد)؛ زیر (لاندې)؛ می برند (وړي)؛ چه (څا / کوهی).

**لنډيز:** ... تر خپله وسه پورې د نفس اماره غوښتنه مه منه، تر څو په دام کې ونه غورځوې. د نفس اماره غوښتنې ټولې تر پښو لاندې کړه او ډېره لږ برخه ورکوه. ځکه چې نفس او شیطان تا له سمې لارې څخه اړوي او د هلاکت په کنده کې دې غورځوي. نو ته هم خپل خوار او ذلیل ولره او تر خپله وسه یې له

مرداریو او چټلیو څخه لیرې وساته...

| نفس بد را هر که سیریش میکند | در گنه کردن دلیرش میکند |
| --- | --- |
| نفس بد چې څوک مړوي | په گناه کولو کې یې زړور کوي |
| حلق خود را دور دار از هر مزه | تا نیفتی در بلا و در بزه |
| ستونی خپل لیرې وله له هر خوند څخه | تر څو ونه لوېږې په بلا او په گناه کې |
| زآب و نان تا لب شکم را پر مساز | همچو حیوان بهر خود آخور مساز |
| له اوبو ډوډۍ څخه تر شونډو پورې نس مه ډکوه | لکه حیوان د ځان له پاره آخور مه جوړه |
| روز کم خور گرچه صائم نیستی | پر مخور آخر بهائم نیستی |
| د ورځې لږ خوره که څه هم روژاتی نه یې | ډېره مه خوره آخر حیوان خو نه یې |

**د لغاتو حل:** سیر (موړ)؛ دلیر (زړور / بهادر)؛ حلق (ستونی)؛ بهائم (چار پای / حیوان).

**لنډیز:** ... څوک چې خپل نفس مړوي، نو په گناه کولو کې یې نور بهادر او زړور کوي. خپل ستونی دې له ټولو دنیوي خوندونو څخه لیرې وساته تر څو په ستونزو او گناهونو کې ونه لوېږې. خپل نس دې له اوبو او ډوډۍ څخه تر پزې مه مړوه او د حیوانانو په څېر ځان ته آخور مه جوړه. که څه هم روژه دې نه وي، خوراک لږ کوه، ځکه ډېر خوراک د حیوانانو کار وي...

| ای که در خوابی همه شب تا بروز | بهر گور خود چراغی بر فروز |
| --- | --- |
| اې چې په خوب کې یې ټوله شپه تر ورځې پورې | له پاره د قبر خپل یو څراغ ولگوه |
| خواب و خور جز پیشهٔ انعام نیست | خفتگان را بهره از اِنعام نیست |
| خوب خوراک ما سوا له خوی څخه د حیوان نه دی؛ | بیدو لره حصه له نعمتونو څخه نه سته |
| ای پسر بسیار خواهی خفت خیز | گر خبر داری ز خود بیگفت خیز |
| اې هلکه! ډېر به بیده سې، پور ته سه | که چیرې خبرلرې له خپل ځانه بې خبرو پورته سه |

| دل درین دنیای دون بستن خطاست | دامن ازوی گرتو برچین رواست |
|---|---|
| زړه په دې دنیا ناکاره کې تړل غلطي ده | لمن له دې څخه که ته راټوله کړې ښه ده |

**د لغاتو حل:** گور (قبر)؛ انعام (حیوانان)؛ دون (ناکاره / بې کاره).

**لنډیز:** ... اې غافله انسانه! د شپې توله شپه تر سهاره بیده یې، قبر او لحد دې هېر دئ، هغه توره تیاره وې، ځراغ او رڼا ته ضرورت لرې، نو یو ځراغ ورته تیار کړه. خوب او خوراک د حیواناتو کار دئ او څوک چې بیده دې هغوی ته په نعمتونو کې هیڅ برخه نه ورکول کیږي. اې انسانه! پورته سه، په قبر کې به بیا ډېر خوب وکړې ایا ته په خپل ځان نه یې خبر چې مرې. په دې ناکاره دنیا زړه مه تړه، بلکې لمن ځنې راټوله کړه او تر شا یې پرېږده...

| از چه دل بندی بدنیائ دنی | چون نئ جاوید دروی بودنی |
|---|---|
| ولې زړه تړې په دنیا ناکاره پورې | چې نه یې همېشه په دې کې اوسېدونکی |
| ظاهر خود را میارا ای فقیر | تا که گردد باطنت بدر منیر |
| ظاهر تن خپل مه ښایسته کوه اې فقیره | تر څو چې وگرځي باطن ستا سپوږمۍ غوندې |
| طالب هر صورت زیبا مباش | در هوائ اطلس و دیبا مباش |
| طلب کوونکی د هر صورت ښایسته مه اوسه | په خیال کې د اطلس او دیبا مه اوسه |
| از هوا بگذر خدا را بنده شو | زندگی می بایدت در ژنده شو |
| له نفساني خواهشات تېر سه د خدای بنده سه | که ژوند در ته په کار وي په گوډړي کې سه |

**د لغاتو حل:** از چه (د څه له پاره)؛ جاوید (همېشه)؛ بدر منیر (سپوږمۍ). اطلس (وربښمینه نرمه جامه)؛ دیبا (دا هم یو ډول نرمه جامه ده)؛ ژنده (گوډړی / زاړه کالي).

**لنډیز:** ... په دې بې کاره دنیا ولې زړه تړې او اعتماد پر کوې، سره له دې چې تل همدلته نه اوسېږې. خپل ظاهر دې مه ښایسته کوه، بلکې باطن دې ښکلی او د سپوږمۍ غوندې جوړ کړه. د ښه او ښایسته صورت غوښتونکی مه اوسه او د اطلس او دیبا په خیال او سوچ کې مه کېږه. توبه وباسه الله تعالی ته

رجوع وکړه او نفساني خواهشات شا ته پرېږده، که غواړې چې سم او سوکاله ژوند وکړې، نو ځان ډېر مه سینګاروه، بلکې په زړو کالو کې واوسه...

خرقهٔ پشمینه را بردوش کن ‖ شربتی از نامرادی نوش کن

چپنه د وړیو پر اوږو کړه ‖ شربت د نامرادۍ وڅښه

ایکه در بر میکنی پشمینه را ‖ پاک ساز از کینه اول سینه را

اې چې اغوندې د وړیو کالي ‖ پاکه کړه له کینې څخه اول سینه

گر همی خواهی نصیب در آخرت ‖ رو بدر کن جامهای فاخرت

که چیرې غواړې حصه په آخیرت کې ‖ ځه! وباسه جامې د فخر

بی تکلف باش و آرائش مجوی ‖ ترک راحت گیر و آسایش مجوی

بې تکلیفه اوسه او ځان جوړونه مه لټوه ‖ پرېښوول د هوساینې ونیسه او آرامتیا مه لټوه

**د لغاتو حل:** خرقه (چپنه / بالا پوښ)؛ نصیب (برخه).

**لنډیز:** ... د وړیو چپنه پر اوږو کړه او د نامرادۍ شربت نوش کړه. که چیرې د وړیو کالي اغوندې، دا فائده نه کوې چې په زړه کې بغض او حسد موجود وي، نو ښه دا دئ چې لومړی له زړه څخه حسد وباسې. که چیرې غواړې چې په آخیرت کې د نعمتونو څښتن سې، نو د فخر او تکبر کالي وباسه. ځان مه سینګاروه او همداسې ساده واوسه، راحت او استراحت پرېږده او آخیرت ته امادګي ونیسه...

در برت گو کسوت نیکو مباش ‖ زیر پهلو جامه خوبت گو مباش

په غېږ کې ستا ووایه چې ښه کالي دي نه وي ‖ لاندې تراړخ دي جامه ښه ستا ووایه چې نه وي

همچو صوفی در لباس صوف باش ‖ وز صفتهای خدا موصوف باش

په مثال د صوفي په کالو کې د وړیو اوسه ‖ په صفتونو سره د خدای تعالی موصوفه اوسه

مرده را بوریا قالین بود | زانکه خشتش عاقبت بالین بود

سړي د لاري لره بوريا غالۍ وي | ځکه چي خښته به په آخر کي بالښت وي

مرد راه را بود دنیا سود نیست | هرگزش اندیشهٔ نابود نیست

سړي د لاري لره وي دنيا گټوره نه ده | هيڅکله به انديښنه د نېستى نه وي

**د لغاتو حل:** پهلو (لوري / طرف)؛ صوف (وړۍ)؛ بوريا (چټايي، لو لوخو څخه جوړ سوى فرش). مرد ره (سالک). خشت (خښته)؛ بالين (بالښت).

**لنډيز:** ... ښه او قيمتي جامې مه اغونده، بلکي د صوفي په څېر د وړيو کالي واغونده او په خان الهي صفتونو ځای پر ځای کړه. سالکانو لره چټايي د غالۍ په څېر وي او له خښتو څخه د بالښ کار اخلي، هغوى هيڅکله د نېستى په فکر کي نه وي، ځکه د هغوى په وړاندي دنيا هيڅ ارزښت نه لري.

# در بیان تواضع و صحبت درویشان

## د عاجزۍ او له فقيرانو سره د مجلس په بيان کي

گر ترا عقل ست با دانش قرین | باش درویش و بدرویشان نشین

که چيري تا لره عقل وي له پوهي سره ملګرى | اوسه فقير او له درويشانو سره کښېنه

هم نشینی جز بدرویشان مکن | تا توانی غیبت ایشان مکن

هم ناسته ماسيوا له فقيرانو څخه مه کوه | تر څو چي کولاى سې غيبت د دوى مه کوه

حُبِّ درویشان کلید جنت ست | دشمن ایشان سزای لعنت ست

محبت د فقيرانو کيلي د جنت ده | دښمن د دوى لائق د لعنت دئ

پوشش درویش غیر از دلق نیست | در پئ کام و هوای خلق نیست

کالي د فقير بې له گودړه (بل څه) نه دي | په لټون کي د مراد او د خواهشاتو د خلگو نه دي

**د لغاتو حل:** حب (مینه / محبت)؛ دلق (گودړ / زوړ توکر).

**لنډیز:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د عاجزۍ او له فقیرانو سره د ناستې ولاړې په اړه بیان کوي، فرمايي چې که چیرې ته عقل او هوښ لرې، نو خپله هم فقیر اوسه او ملګرتیا هم يوازې له فقیرانو سره کوه. له فقیرانو پرته له نورو خلګو سره ناسته ولاړه مه کوه او ځومره چې دې په وسه پورې وي د فقیرانو او سپېڅلو خلګو غیبت مه کوه. له فقیرانو او سپېڅلو خلګو سره محبت لرل د جنت کیلي ده، ځوک چې له فقیرانو سره دښمني کوي هغه د لعنت وړ وي. فقیران او سپېڅلي کسان هغه دي چې له زړو جامو پرته بل څه نه لري او هیڅکله د خلګو په غوښتنو او خواهشاتو پسې مه نه ګرځي...

| | |
|---|---|
| مردتا ننهد بفرق نفس پای | ره کجا یابد بدرگاه خدای |
| سړی ترخو کښې نهږدي پر تندي د نفس پښې | لاره کله پیدا کولای سي و دربارته د خدای تعالی |
| مرد ره دربند قصر وباغ نیست | دردل او غیردرد وداغ نیست |
| سړي د لاري په فکر کي د مانۍ او باغ نه دي | په زړه کي د هغه ماسېوا له درد او داغه نه وي |
| گرعمارت رابری برآسمان | عاقبت زیر زمین گردی نهان |
| که چیري آبادي ورسوې تر آسمانه | آخر به لاندي تر مځکي سې پټ |
| گرچو رستم شوکت وزرت بود | جائ چون بهرام درگورت بود |
| که څه هم لکه د رستم دي دبدبه او زور وي | ځای به لکه د بهرام په قبر کي وي |

**د لغاتو حل:** فرق (تندی / څټ)؛ عمارت (وداني / جوړونه)؛ عاقبت (پایله / انجام).

**لنډیز:** ... ځوک چې د نفس پر څټ پښه کښېږدي یعني نفس تر پښو لاندي نه کړي، الهي دربار ته لار نه سي پیدا کولای. د الهي لاري سالک (لاروی) د مانیو او باغونو په فکر کي نه وي او زړه یې هیڅکله د حقیقي عشق له درد او سوزش څخه نه خالي کیږي. د دنیا له پاره ستړیاوي او خواري ګالل هیڅ ګټه نه لري، که ته خپلې آبادۍ او ودانۍ تر آسمانه هم ورسوې، خو آخر پای به بیرته تر مځکي لاندي کیږې. که څه هم د رستم په څېر د شان او شوکت څښتن یې او زیاتي شتمنۍ ولرې، خو آخر به ته هم له د بهرام په څېر تر خاورو لاندي کیږې...

ای پسر از آخرت غافل مباش
اې هلکه! له آخیرت څخه غافل مه اوسه

بامتاع این جهان خوشدل مباش
په اسباب د دې جهان خوشحاله مه اوسه

دربلیات جهان صبار باش
په بلاگانو کي د جهان صبر کوونکی اوسه

گاه نعمت شاکر جبار باش
په وخت کي د نعمت شکرکوونکی د خدای اوسه

**د لغاتو حل:** غافل (نا خبره)؛ متاع (سامان / اسباب)؛ صبار (ډېر صبر کوونکی).

**لنډیز:** ... نو اې انسانه! د دې دنیا په سامانونو او اسبابو باندي زړه مه ښه کوه او له آخیرت څخه مه غافله کېږه. په دنیا کي پر ستونزو او مشکلاتو باندي صبر کوه او پر نعمتونو باندي د خدای پاک شکر ادا کوه.

# در بیان دلائل شقاوت

## د بدبختۍ د دلیلونو په بیان کي

چار چیز آثار بدبختی بود
څلور شیان نښې د بدبختۍ دي

جاهلی وکاهلی سختی بود
ناپوهي او سستي سختي ده

بی کسی وناکسی هرچار شد
ناتواني او نالائقي څلور سوه

بخت بدرا این همه آثار شد
بخت بد لره دا ټوله علامې سوې

آنکه دربند عبادت می شود
هغه چه په فکر کي د عبادت کېږي

بیشک از اهل سعادت می شود
بې شکه له خاوندانو څخه د نېکمرغۍ کېږي

برهوای خود قدم هرکو نهاد
پر خواهشاتو خپلو چي هر څوک پښه کښېږدي

کی تواند کرد با نفسک جهاد
کله کولای سي له نفس سره جهاد

**د لغاتو حل:** شقاوت (بدمرغي / بدبختي)؛ کاهلی (لټي / سستي)؛ آثار (نښې).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د بدمرغۍ ځیني نښې او علامې بیانوي، فرمایي چي څلور

شیان د بدمرغۍ علامې دي: ۱- ناپوهي؛ ۲- سستي او لټي؛ ۳- سختي؛ ۴- ناتواني او نالائقي. دا څلور د بد بخت نښې دي. څوک چې د الله تعالی د عبادت په فکر کې وي، هغه بدبخته نه وي، بلکې له نېکبختانو څخه وي. څوک چې د خپل نفس د غوښتنو د پوره کولو له پاره لاس په کار سي، هغه بیا هیڅکله له خپل اماره نفس سره جهاد نه سي کولای...

| | |
|---|---|
| هر که سازد درجهان باخواب وخور | درقیامت باشدش زآتش گذر |
| هر څوک چې جوړه وکړي په جهان کې له خوب او خوراک سره | په قیامت کې به وي د ده له اور څخه تېرېدل |
| رو بگردان ازمراد وآرزوئ | پس بدرگاه خدا می آر روی |
| مخ وگرځوه له مراد او آرزو څخه | وروسته و دربار ته د خدای راواړوه مخ |
| کامرانی سر به ناکامی کشد | مرد ره خط درنکونامی کشد |
| کامیابي سر و ناکامۍ ته کشوي | سړی د لاري خط پر نېک نامۍ کشوي |
| امر ونهی حق چوداری ولید | پس مرو دنبالهٔ نفس پلید |
| امر او نهي د خدای چې لرې اې دوسته! | نو بیا مه ځه په شا پسې د نفس پلید |

**د لغاتو حل:** دنباله (شا / په شا پسې)؛ پلید (ناوړه / ککړ).

**لنډیز:** ... څوک چې په دنیا کې خوب او خوراک خپل کار او کردار وګرځوي، په قیامت کې به خامخا د اور له عذاب سره مخ کېږي. نو له دنیوي مقاصدو او موخو څخه لاسه واخله او د الله تعالی لوري ته رجوع وکړه. کامیابي ځان ناکامۍ ته بیايي، د حق د لاري سالک نېک نامۍ ته هیڅ ارزښت نه ورکوي. که چېرې د الله جل جلاله اوامر پر ځای کوې او له نواهیو څخه یې ځان ژغورې، نو بیا ولې د نفساني خواهشاتو په پوره کولو بوخت او مصروف یې؟ دا کار پرېږده...

| | |
|---|---|
| هر که ترک کامرانی میکند | برخلافش زندگانی میکند |
| هرڅوک چې پرېښوول د کامیابۍ کوي | پر خلاف د هغه ژوندون کوي |

| امر لاتفرح زقرآن گوش دار | جائ شادی نیست دنیا هوش دار |
|---|---|
| حکم د لا تفرح ته له قرآن څخه غوږ ولره | ځای د خوشحالۍ نه دی دنیا هوښ ولره |

**د لغاتو حل:** لا تفرح (د آیت شریف یوه برخه ده، یعني مه خوشحاله کېږه).

**لنډیز:** څوک چي کامیابي پربېږدي نو ژوند یې پر خلاف تیرېږي. د قرآن کریم دا آیت ته غوږ سه چي وایي دنیا د خوښۍ ځای نه دئ، نو هوښیار اوسه او آخیرت ته تیاری ونیسه.

# در بیان ریاضت

## د ریاضت په بیان کي

| گر همی خواهی که گردی سربلند | ای پسر برخود دَرِ راحت بِه بند |
|---|---|
| که چیري داسي غواړې چي سې سرلوړی | اې هلکه پر خان دي د روازه د هوساینې وتړه |
| هرکه بربست او دَرِ راحت تمام | بازشد بروی دَرِ دارُالسلام |
| هر څوک چي وتړي دی دروازه د هوساینې پوره | خلاصه سوه پر ده باندي دروازه د جنت |
| غیرحق را هرکه خواند ای پسر | کیست درعالَم ازو گمراه تر |
| پرته له خدایه چي هر څوک رابولي اې هلکه! | څوک دئ په جهان کي تر هغه ډېر لار ورکی |
| ای برادر ترک عز وجاه کن | خویش را شائیستهٔ درگاه کن |
| اې وروره! پرېښوول د عزت اودمرتبې وکړه | خپل خان دي لائق د دربار کړه |

**د لغاتو حل:** ریاضت (د نفس د اصلاح کولو له پاره هڅه کول)؛ شائیسته (لائق / وړ).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کي د ریاضت اړوند بیان کوي، فرمایي چي که چیري تاسي غواړئ چي سرلوړي او عزتمن واوسئ، نو پر ځانونو باندي د هوساینې دروازه وتړئ، یعني په دنیا کي هوساینه او استراحت مه غواړئ، ځکه څوک چي پر ځان باندي د راحت دروازه بنده کړي، نو د هغه پر مخ باندي د جنت دروازه خلاصیږي. خو څوک چي له خدای پاک پرته له نورو څخه د مرستي او کومک

غوښتنه کوي، نو تر هغه به لوی گمراه څوک وي؟ نو اې انسانه! دبدبه او عزت شا ته پرېږده او څان د الهي دربار وړ او لائق وگرځوه...

| | |
|---|---|
| عز و جاه سر به پستی میکشد | مر ترا بر تن پرستی میکشد |
| عزت او مرتبه دي سر و پستۍ ته کشوي | خاص تا و خان پرستۍ ته کشوي |
| خوار گردد هر که باشد جاه جوئ | ای برادر قرب آن درگاه جوئ |
| خوار گرځي هر څوک چي وي دبدبه لټوونکی | اې وروره! نیژدېوالی دهغه دربار لټوه |
| نفس در ترک هوا مسکین بود | گوش مال نفس نادان این بود |
| نفس په پرېښوولو کي د خواهشاتو مسکين دئ | ترټل د نفس ناپوه همدا دي |
| چون دلت از یاد حق ایمن بود | نفسک اماره کی ساکن بود |
| چي زړه دي له یاد څخه د خدای بې غمه وي | نفس اماره کله پر قراره وي |

**د لغاتو حل:** پستی (ټيټ والی / وروسته والی)؛ تن پرستی (ځان لمانځنه)؛ ساکن (آرام).

**لنډیز:** ... څکه چي دبدبه او عزت انسان ټيټ والي او ځان لمانځني یا خود غرضۍ ته راکاږي. څوک چي دبدبه او مرتبه ترلاسه کول غواړي، هغه تل خوار او ذلیل گرځي، نو اې انسانه! تر مرتبې او دبدبې تېره سه او الهي دربار ته نیژدېوالی وغواړه او خپل نفس وترټه، کله چي د نفس خواهشات ونه منې، نو په دې سره هغه خوار او ليله گرځي او همدا د نفس دېر ښه ترټل دي. خو کله چي ستا زړه د الله تعالی له یاد څخه غافل او ناخبره وي، نو بيا دي کله اماره نفس همداسي آرام پاتېږي...

| | |
|---|---|
| هر که او را تکیه بر صانع بود | در جهان با لقمهٔ قانع بود |
| د هر چا چه تکیه پر جوړوونکي وي | په دنیا کي په یوې گولې سره قانع وي |
| اکتفا بر روزئی هر روزه کن | گر نداری از خدا دریوزه کن |
| کفایت پر روزۍ د هري ورځي کوه | که يې نه لرې له خدای څخه یوغوښتنه کوه |

**د لغاتو حل:** صانع (جوړوونکی / رامنځ ته کوونکی)؛ قانع (کفایت کوونکی / په لږ څه غاړه ایستونکی).

**لنډیز:** ... د چا چي پر ستر خالق باندي پوره ایمان او باور وي، هغه په لږ څه هم قناعت کوي. نو ته هم پر ورځني روزق باندي بسنه او قناعت وکړه او که چیري څه نه لرې، نو له الله تعالی څخه یې وغواړه.

# در بیان مجاهدت نفس

## د نفس د مجاهدې په بیان کي

| | |
|---|---|
| نفس نتوان کشت الا باسه چیز | چون بگویم یادگیرش ای عزیز |
| نفس نه وژل کیږي مگر په درو شیانو سره | چي زه یې وایم یاد یې ونیسه اې عزیزه |
| خنجر خاموشی وشمشیر جوع | نیزهٔ تنهائی وترک هجوع |
| چاره د چوپوالی او توره د لوږي | نېزه د یوازیوالي او پرېښوول د خوب |
| هرکرا مرتب نبود این سلاح | نفس او هرگز نیاید باصلاح |
| هر چا لره چي مرتبه نه وي دا وسله | نفس د هغه هیڅکله نه راځي و اصلاح ته |
| چونکه دل بی یاد اللّٰهت بود | دیو ملعون یار وهمراهت بود |
| کله چي زړه بې له یاده د خدای ستا وي | شیطان لعین به یار او ملگری ستا وي |

**د لغاتو حل:** مجاهده (جنگېدل)؛ نیزه (یو ډول اوږده وسپنه ده چي تېره سر لري او جنگ په کول کیږي).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه له نفس سره د جنگېدلو او مجاهدې بیان کوي، وایي چي اماره نفس په درو شیانو سره وژل کیږي چي زه یې اوس درته وایم: ۱- د چوپ والي په خنجر سره؛ ۲- د لوږي په توره سره؛ ۳- د یوازیتوب په نېزه سره؛ ۴- د خوب په پرېښوولو سره. څوک چي په دې وسله سنبال نه وي د هغه نفس هیڅکله نه اصلاح کیږي. همدا ډول کله چي د چا زړه د الله تعال له یاد او ذکر څخه خالي وي، نو شیطان لعین تل له هغه سره ملگری وي...

| | |
|---|---|
| اهل دنیا را چو زر سیم آیدش | لقمهای چرب وشیرین بایدش |
| د دنیا خاوندانو لره چي سره اوسپین زرپه لاس ورسي | گولې غوړي او خوږې ورته په کار دي |

| | |
|---|---|
| هر که او در بند سیم و زر بود | در عقوبت عاقبت مضطر بود |
| هرڅوک چي هغه په فکر کي د سپینواوسرو زرو وي | په عذاب کي به آخر بې قراره وي |
| آنکه بهر آخرت کارش بود | از خدا تشریف بسیارش بود |
| هغه چي له پاره د آخرت کار د ده وي | له خدای څخه به عزت ډېر د ده وي |
| مال دنیا خاکساران را دهند | آخرت پرهیزگاران را دهند |
| مال د دنیا خاکسارانو لره ورکوي | نعمتونه د آخیرت پرهېزگارانو لره ورکوي |

**د لغاتو حل:** اهل دنیا (د دنیا اوسېدونکي)؛ چرب (غوړه)؛ لقمهای (ګولې). خاکساران (دا په اصل کې د عاجزۍ له پاره استعمالېږي، لېکن دلته يې مراد بې قدره او بې ارزښته خلګ دي)

**لنډيز:** ... د دنیا ښتنانو ته چي کله سره او سپین زر په لاس ورسي نو غوړې او خوږې دي خوري. څوک چي د سرو او سپینو زرو په فکر کي وي، نو په آخیرت به په عذاب کي راګیر وي. او چا چي کارونه د آخیرت د سمسورولو له پاره وي، نو الله تعالی به ورته ډېر عزت ورکړي. الله تعالی په دنیا کي دنیوي شتمۍ بې قدرو کسانو ته ورکوي، پاته سوه خاص خلګ چي متقیان او پرهېزګاران دي، نو هغوی د آخیرت نعمتونه ورکوي...

| | |
|---|---|
| هست شیطان ای برادر دشمنت | غل آتش خواهد اندر گردنت |
| دئ شیطان اې وروره دښمن ستا | ځنځیرد اور غواړي په غاړه کي ستا |
| مدبری کو رو بدنیا آورد | بهره کی از عالم عقبی برد |
| هغه بدبخته څوک چي مخ دنیا ته کړي | حصه به کله له عالم عقبی څخه يوسي |
| ای پسر با یاد حق مشغول باش | وز خلائق دور همچون غُول باش |
| اې هلکه په ذکر سره د خدای بوخت اوسه | او له خلګو څخه لیري په مثال د پېري اوسه |

**د لغاتو حل:** غل (ځنځير)؛ مدبری (بدمرغي / کم بختي)؛ عقبی (آخیرت)؛ غُول (پېری).

**لنډيز:** ... اې انسانه! شیطان ستا سخت دښمن دئ او غواړي چي په غاړه کي دي د اور طوق او ځنځير

دروا چوي. نو بيداره اوسه او متابعت يې مه کوه. هغه بدبخته انسان چې دنيا ته مخه کړي، په آخيرت کي به کله برخه او حصه ترلاسه کړي، يعني څوک چې دنيا غوره کړي له اخروي نعمتونو څخه بې برخي کيږي. نو اې انسانه! تل د الله تعالی په ذکر او ياد بوخت اوسه او خلگو څخه ليري او گوښه گرځه.

# در بیان فقر

## د فقر په بيان کي

| | |
|---|---|
| فقر خود را پیش کس پیدا مکن | محنت امروز را فردا مکن |
| فقيري خپله په مخ کي د چا ښکاره مه کوه | کار د نن ورځ سبا ته مه کوه (مه پرېږده) |
| مر ترا آنکس که فردا جان دهد | غم مخور آخر که آب و نان دهد |
| خاص تا لره کوم ذات چي سبا ته روح در کوي | غم مه خوره آخر چي اوبه او ډوډۍ به درکوي |
| تا بکی چون مور باشی دانه کش | گر تو مردی فاقه را مردانه کش |
| تر څو به لکه مېږی اوسې دانه کشوونکی | که چيري ته سړی يې لوږه په مړاني کش کړه |
| بر توکُّل گر بود فیروزیت | حق دهد مانند مرغان روزیت |
| پرتوکل که چيري وي کامیابي ستا | خدای درکوي په مثال د مرغانو روزي ستا |

**د لغاتو حل:** فقر (غريبي / بېچارگي / نېستي)؛ فيروزي (بريالیتوب / کامیابي).

**لنډيز:** د پند نامې مصنف رحمة الله عليه په دې باب کي د فقر او نېستۍ په اړه بيان کوي، فرمايي چي خپله فقيري او نېستي چا ته مه ښکاره کوه او همداسي د نن ورځي کار سبا ورځي ته مه پرېږده. څکه تا ته چي سبا ورځ کوم ذات روح درکوي، هماغه ذات درته اوبه او ډوډۍ هم درکوي. تر څو به د مېږي په څېر خواري کاږې او دانه به کشوې، که ته نارينه يې نو په مړاني سره لوږه وزغمه. که چيري پر الله تعالی باندي پوره توکل ولرې، نو هغه جل جلاله به داسي روزي درکړي لکه مرغانو ته يې ورکوي...

از خدا شاکر بود مرد فقیر | گر دهد قوتش لب نان فطیر
له خدایه شکر کوونکی وي سړی فقیر | که څه هم ورکوي خوراک څنډي د ډوډۍ فطیري

خم مشو پیش توانگر همچو طاق | تا نگردی جفت با اهل نفاق
ټیټ مه سه به مخ کي د شتمن په مثال د طاق | تر څو ونه ګرځې یو ځای له منافقانو سره

مرد ره را نام و ننگ از خلق نیست | نفرتش از جامهای دلق نیست
سړي دلاري لره عار او شرم له خلګو څخه نه وي | نفرت یې د کالو څخه د ګوډړ نه وي

هر کرا ذوق نکونامی بود | خاص مشمارش که او عامی بود
هر چا لره چي خوند د نېک نامۍ وي | خاص یې مه شمېره څکه چي هغه عام وي

**د لغاتو حل:** خم (سر ټیټول / غاړه کږول)؛ مرد ره (د لاري سړی، مطلب سالک).

**لنډیز:** ... فقیر او غریب انسان تل د الله تعالی شکر اداء کوونکی وي، که څه هم د فطیري ډوډۍ څنډي ورته ورسیږي. د شمتنو خلګو په مخ کي د پیسو په تمه سر مه ټیټوه، تر څو له منافقانو څخه ونه شمېرل سې. سالک له خلګو څخه شرم نه کوي او په څیرو او زړو جامو نه شرمیږي. کوم څوک چي د نوم او شهرت غوښتونکی وي، هغه له عامو خلګو څخه یو تن دئ، کوم خاص شخصیت نه ګڼل کیږي...

گر ترا دل فارغ از زینت بود | کی هوای مرکب و زینت بود
که چیري تا لره زړه بې غمه له زینت څخه وي | کله به خیال د آس او د زینت وي

روی دل چون از هوا برتافتی | بعد ازان میدان که حق را یافتی
مخ د زړه چي له خواهشاتو څخه واړوې | وروسته تر دې پوه سه چي خدای به پیدا کړې

**د لغاتو حل:** فارغ (بې غمه)؛ زینت (ښایست / ښکلا)؛ برتافتی (وپېچې / واړوې).

**لنډیز:** ... چي دي زړه له ښایست او ښه والي څخه خالي او بې فکره وي، نو د سپرلي او ښایست له خواهشاتو څخه به خلاص یې. کله چي دي زړه له خواهشاتو څخه خالي کړې، هلته نو پوه سه چي الله تعالی ته به ورسېږې.

# در بیان دریافتن حقیقت نفس اماره

## د نفس اماره د حقیقت (اصلیت) د پېژندلو په بیان کې

| | |
|---|---|
| چون شترمرغی شناس این نفس را | نی کشد بار و نه پرد بر هوا |
| لکه شتر مرغ وپېژنه دغه نفس | نه کشوي بار او نه الوزي په هوا |
| گر بپر گوئیش گوید اشترم | ور نهی بارش بگوید طائرم |
| که چیرې ورته وایې چې وازوله وایي زه اوښ یم | که ږدې بار ورباندې وایي چې زه مرغه یم |
| چون گیاه زهر رنگش دلکش ست | لیک طعمش تلخ و بویش ناخوش ست |
| په مثال د وښو د زهرو رنګ زړه راکښونکی دئ | لېکن خوند یې تریخ او بوی یې نا خوښه دئ |
| گر بطاعت خوانیش سستی کند | لیک اندر معصیت چستی کند |
| که چیرې طاعت ته را بولې سستي کوي | لېکن په ګناه کې چستي کوي |

**د لغاتو حل:** شتر مرغ (اوښه مرغه، یو ډول مرغه دئ چې په جوړښت کې اوښ ته ورته دئ).

**لنډیز:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د نفس اماره د اصلیت په اړه بیان کوي، وایي چې نفس د شتر مرغ په څېر دئ. شتر مرغ یا اوښ مرغه نه الوزي او نه بار وړي. څکه که چیرې ورته ووایې چې والوزه، نو وایي چې زه خو اوښ یم او اوښ نه سي الوتلای. خو که چیرې ورته ووایې چې بار یو سه، څکه اوښ بار وړي، نو وایي چې زه مرغه یم او مرغان بار نه وي. همدا ډول نفس د هغه زهرجنو وښو په څېر دئ چې په ظاهره ښکلي او ښایسته معلومېږي، لېکن په خوند کې تریخ او بد بویه وي. نفس ته که ووایې چې طاعت او عبادت وکړه، نو سستي کوي، خو کله چې ځای د ګناه سي، نو بیا ډېر چټک او ګړندی وي...

| | |
|---|---|
| نفس را آن به که در زندان کنی | هرچه فرماید خلاف آن کنی |
| نفس لره دا ښه ده چې په زندان کې یې کړې | هر څه چې وایي مخالفت د هغه وکړې |

کام نفس بد برآوردن خطاست | زانکه دشمن را بپروردن خطاست

مقصد د نفس بد تر لاسه کول تېروتنه ده | ځکه چې دښمن لره ساتل تېروتنه ده

نیست درمان بجز جوع و عطش | تا که ساز رام اندر طاعتش

نه سته دوا ما سېوا له لوږې او تندې څخه | ترڅو که جوړ سي تابع په طاعت کې دی

چون شتر در راه درای و بارکش | بار طاعت بردر جبار کش

په مثال د اوښ په لار کې راسه او بار کش کړه | بار د طاعت پردروازه د خدای کش کړه

**د لغاتو حل:** کام (مقصد / موخه)؛ درمان (علاج / درملنه).

**لنډیز:** ... د نفس اماره له پاره ښه دا ده چې په بند کې یې وساتې او هر څه چې وایي د هغه مخالفت وکړې. ځکه چې د نفس اماره غوښتنه منل غلطي ده او د دښمن پالل تېروتنه ده. د نفس د اصلاح کېدلو ښه علاج لوږه او تنده ده، په همدې توگه نفس ځان طاعت ته اماده کوي. نو د اوښ په څېر پر لاره سه او د الله تعالی د عبادت بار کش کړه، همداسې ستا کامیابي ده...

بار ایزد را بجان باید کشید | ورنه همچون سگ زبان باید کشید

بار د خدای په روح سره باید کش کړل سي | که نه په مثال د سپي ژبه باید کش کړل سي

هر که گردن میکشد زین بارها | باشد از نفرین بروانبارها

هر څوک چې غاړه کشوي له دې بارونو څخه | وي به له پېغورونو څخه پر هغه انبارونه

چون شترمرغ آنکه ازبارش گریخت | از گلستان حیاتش بر بریخت

په مثال د شترمرغ څوک چې له باره خپل وتښتېدی | له باغ څخه د ژوند یې مېوه توی سوه

هر که بارش را تحمل می کند | در جهان جانش تجمل می کند

هر څوک چې بار خپل تحمل کوي | په دنیا کې روح خپل ښایسته کوي

**د لغاتو حل:** ایزد (خدای پاک)؛ تحمل (برداشت / زغمل)؛ تجمل (سینگارول / ښکلی کول).

**لنډيز:** ... د الله تعالى د عبادت بار وړل په کار دي، که نه نو د سپي په څېر بايد ژبه را وايستل سي. څوک چي له دې بارونو څخه غاړه غړوي او ځان کاږي، نو له هغه څخه خلګ کرکه او نفرت کوي. څوک چي د شتر مرغ په څېر له خپله بار څخه تښتي، نو د ژوند د باغ مېوه به يې توله ورژېږي او څوک چي خپل بار زغمي او تر منزله يې رسوي، نو په دنيا کي خپل ځان او روح ښايسته کوي...

| | |
|---|---|
| کردۀ بار امانت را قبول | از کشیدن پس نباید ملول |
| کړی دي دئ بار د امانت قبول | له کشولو څخه يې وروسته نه ښايي خپه کېدل |
| روز اول خود فضولی کردۀ | وان فضولی از جهولی کردۀ |
| په اوله ورځ دي خپله ناپوهي کړې ده | او دغه ناپوهي له جهل څخه کړې ده |
| جنبشی کن ای پسر غافل مباش | چون بلی گفتی بتن تنبل مباش |
| حرکت وکړه اې هلکه غافل مه اوسه | کله چي دي هو ويلي دي په تن سست مه اوسه |
| هر که اندر طاعتش کسلان بود | حاصلش گراهی وخذلان بود |
| څوک چي په طاعت کي د ده سستي وي | حاصل د ده به لاروركي او شرمندګي وي |

**د لغاتو حل:** ملول (خوابدی / خواشيني)؛ فضولی (زياتی / کم عقلي)؛ خذلان (شرمندګي).

**لنډيز:** ... دا چي د امانت بار دي پر غاړه واخيست او قبول دي کړ، نو بيا په کار نه ده چي وروسته پښېماني وکړې او له امانت څخه سمه ساتنه ونه کړې. په لومړۍ ورځ دي خپله له خپلي ناپوهۍ څخه زياتی وکړ او دا درونډ بار دي پر اوږو واخيست. اوس نو حرکت وکړه او بېغوري او غفلت مه کوه، ځکه کله چي دي د الست په ورځ هو وويل، اوس نو سستي او تنبلي مه کوه. څوک چي په طاعت او عبادت کي سستي او لټي کوي، نو په آخيره کي به ګمراهي او شرمندګي په لاس ورځي...

| | |
|---|---|
| وقت طاعت تیز رو چون باد باش | وزهمه کار جهان آزاد باش |
| په وخت کي د طاعت چټک څه په مثال د باد اوسه | او له ټولو کارونو څخه د دنيا خلاص اوسه |

| | |
|---|---|
| راه پر خوف ست ودزدان در کمین | رهبری برتا نمانی در زمین |
| لار ډکه له بېرې ده / او غله / په کمین کې دي | یو لارښود بوزه / تر څو پاته نه سې / په مځکه کې |
| منزلت دور ست وبارت بس گران | کوششی کن پس ممان از دیگران |
| منزل دي / لیري / دئ / او بار دي / ډېر / دروند | کوشش کوه / وروسته / مه پاته کېږي / له نورو څخه |
| هرکه در ره ازگران باران بود | هردمش از دیده خون باران بود |
| هر څوک چي په لاره کي / د دروند / بارونو وي | هر گړی د ده / له سترگو څخه / ویني / بهېدونکي وي |

**د لغاتو حل:** کمین (مورچه)؛ رهبر (لارښوونکی / رهنما)؛ گران (دروند).

**لنډیز:** ... د طاعت او عبادت په وخت کي د باد په څېر چټکي او تلوار کوه او له تولو دنیوي کارونو څخه ځان خلاصوه. ځکه چي د سفر لاره دي له خطره ډکه ده او غله درته په کمین او مورچو کي اماده ناست دي، نو له ځان سره یو لاره ښوونکی او رهنما ملگری کړه. منزل دي لیري دئ او بار دي دروند دئ، نو ډېره هڅه او کوښښ وکړه چي تر نورو شا ته پاته نه سې، ځکه چي په لاره کي چي د چا بار ډېر دروند وي، نو هره شېبه یې له سترگو څخه د اوښکو پر ځای ویني څاځي...

| | |
|---|---|
| لاشهٔ داری سبک کن بار خویش | ورنه در ره سخت بینی کار خویش |
| ضعیف وجود لرې / سپک کړه / بار خپل | که نه نو / په لار کي / به سخت وویني / کار خپل |
| چیست بارت جیفهٔ دنیای دون | کزپئ آن گشته خوار وزبون |
| څه دئ / بار ستا؟ / مرداره د دنیا / ناکاري | چي له پاره د هغې / سوی یې خوار / او ذلیل |

**د لغاتو حل:** لاشه (کمزوری وجود / ضعیف جسم)؛ جیفه (د مردار سوي حیوان جسد).

**لنډیز:** ... وجود او جسم دي کمزوری دئ، نو د گناهونو بار دي هم سپک کړه، که نه نو په لاره کي به دي تنگ ډېر سخت وي. ستا بار څه دئ؟ بس د مرداري دنیا مړ جسد دئ چي د همدې له پاره دي ځان خوار او ذلیل گرځولی دئ.

# در بیان ترک خود آرائی و خود ستائی

## د ځان سینګارونې او ځان ستاینې د پرېښوولو په بیان کې

| | |
|---|---|
| سرچه آرائی بدستار ای پسر | تاتوانی دل بدست آر ای پسر |
| سر څه له ښایسته کوې په لنګوته اې هلکه! | ترخوچې کولای سې زړه په لاس راوړه اې هلکه! |
| تانگیری ترک عزومال وجاه | از همه برسر نیائی چون کلاه |
| ترڅوونه نیسې پرېښوول د عزت او مال او مرتبې | د ټولو پر سر به رانه سې په مثال د تاج |
| نیست مردی خویش را آراستن | قصد جان کرد هرکه او آراست تن |
| نه دئ سړیتوب د ځان سینګارول | قصد د روح د هلاک یې وکړ هر چا چې سینګار کړ تن |
| نیست برتن بهتر از تقوی لباس | در تکلف مردرا نبود اساس |
| نه دئ پر تن ډېر ښه له تقوی ښخه لباس | په تکلیف کې سړي لره نه وي محکم والی |

**د لغاتو حل:** خود آرائی (ځان سینګارول / ځان جوړول)؛ خود ستائی (ځان ستاینه / ځان ښوونه).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د ځان سینګارولو او ځان ستایلو په اړه بیان کوي، چې اې انسانه! دا مهمه نه ده چې لنګوټه وتړې او ځان سره ساټ باټ کړې، بلکې مهمه دا ده چې د خلګو زړونه وګټې. تر څو چې عزت، شتمنې او دبدبه پرې نهږدې، نو له دې شیانو سره یو ځای د تاج غوندې پر سر نه سې راتلای. یعنې لوړېدلای نه سې. د ځان ښایسته کول سړیتوب او مړانه نه ده، ځکه څوک چې ځان سینګاروي په حقیقت کې ځان هلاکوي. پر بدن باندې تر تقوا او سپېڅلتیا بل غوره لباس نه سته، ځکه چې په تکلیف او ځان ښایسته کولو کې سړی بې بنیاده او بې اساسه وي...

| | |
|---|---|
| هرکه او دربند آرایش بود | درجهان فرزند آسایش بود |
| هر څوک چې دغه په فکر کې د سینګار وي | په جهان کې زوی د هوساینې دئ |

| | |
|---|---|
| عاقبت جز نامرادی نبودش | بهره از عیش وشادی نبودش |
| حر به بی ما سهوا له ناکامی څخه (بل څه) نه وي | حصه د ښادی او خوشحالی نه وی ده لره |
| خودستائی پیشه شیطان بود | هر که خود را کم زند مرد آن بود |
| خان ستایل خوی د شیطان دئ | هر څوک چي خان کم گڼي سړی هغه وي |
| گفت شیطان من ز آدم بهترم | تا قیامت گشت ملعون لاجرم |
| وویل شیطان چي زه له آدم څخه ښه یم | تر قیامته سو ملعون خامخا |

**د لغاتو حل:** آرایش (سینگار)؛ فرزند (زوی)؛ ملعون (د لعنت وړ / له رحمت څخه بې برخي).

**لنډیز:** ... څوک چي د خان سینگارولو په فکر کي وي، هغه په دنیا کي د هوسایني زوی وي، یعني په هوساینه پسي خي او آخیرت یې هېر وي. خو آخر به یې ناکامي په برخه کېږي او هیڅکله به خوشحالي ترلاسه نه کړي. همدا ډول د خان ستایل او صفت کول د شیطان کار دئ، سړی هغه دئ چي خان تر نورو کم وگڼي. شیطان وویل چي زه تر حضرت آدم علیه السلام غوره یم، له همدې امله د تل له پاره له الهي دربار څخه وشړل سو او له الهي رحمت څخه محروم پاته سو...

| | |
|---|---|
| از تواضع خاک مردم می شود | نور نار از سرکشی گم می شود |
| له عاجزی څخه خاوري سړی کېږي | رڼا د اور له سرکښی څخه ورک کېږي |
| رانده شد ابلیس از مستکبری | گشت مقبل آدم از مستغفری |
| وشړل سو شیطان له مغروری څخه | سو مقبول آدم له بخښي غوښتني څخه |
| شد عزیز آدم چو استغفار کرد | خوار شد شیطان چو استکبار کرد |
| سو عزتمن آدم چي بخښنه یې وغوښته | ذلیل سو شیطان چي مغروري یې وکړه |
| دانه پست افتد زبردستش کنند | خوشه چون سر بر کشد پستش کنند |
| ــــــ لوېږي پورته یې کړي | وږی چي کله سرپورته کش کړي چیت یې کړي |

**د لغاتو حل:** مقبل (بختور / د قبول وړ)؛ مستکبری (مغروري / تکبر / لويي)؛ استکبار (ځان لوی ښوول).

**لنډيز:** ... په عاجزۍ کولو سره له خاورو څخه سرې جوړ سو، خو اور چي کله تکبر وکړ، نو لمبې او رنا يې په هوا کي ورکه سوه. شيطان له تکبر کولو څخه وترټل سو او له الهي دربار څخه وشړل سو، حضرت آدم عليه السلام چي عاجزي وکړه، نو په الهي دربار کي يې توبه قبوله سوه. حضرت آدم عليه السلام چي استغفار وغوښت نو عزتمن سو، خو ابليس چي تکبر وکړ، نو خوار او ذليل سو. د غنم دانه چي کله پر مځکه ولوېږي، نو په همدې عاجزۍ سره شنه سي او له مځکي څخه را پورته سي، نو وړدی چي کله سر جک ګړي، نو خلګ يې وربېي.

# در بیان آثار ابلهان

## د کم عقلانو د علامو په بيان کي

| | |
|---|---|
| چارچیز آمد نشان ابلہے | باتو گویم تا بیابی آگہے |
| خلور شیان راغله علامې د کم عقلۍ | و تا ته وایم ترڅو پیدا کړې خبرتیا |
| عیب خود را بد نبیند در جہان | باشد اندر جستن عیب کسان |
| عیب خپل بد نه ویني په جهان کي | وي په لټولو کي د عیبونو دنورو کسانو |
| تخم بخل اندر دل خود کاشتن | انگه امید سخاوت داشتن |
| تخم د بخل په زړه کي خپل کرل | بیا امید د سخاوت لرل |
| هر که خلق از خُلق او خوشنُود نیست | هیچ قدرش بردر معبود نیست |
| هر څوک چي خلګ له اخلاقو څخه د ده راضي نه وي | هیڅ قدر یې پر دربار د معبود نه سته |

**د لغاتو حل:** ابلهی (کم عقلي / احمقتوب)؛ کاشتن (کرل)؛ خوشنود (خوښ / راضي).

**لنډيز:** شيخ فريد الدين عطار رحمة الله عليه په دې باب کي د کم عقلانو او ناپوهانو خلګو د نښو او علامو په اړه بيان کوي، فرمايي چي څلور شيان کم عقلۍ علامې دي چي زه اوس درته بيانوم، کم عقل

سړی خپل عیبونه نه ویني، لېکن د نورو خلګو په عیبونو پسې ګرځي، په زړه کي د بخل او کنجوسی تخم کرل، خو امید د سخاوت لرل کم عقلي ده. د کوم چا له اخلاقو څخه چي خلګ خوښ او راضي نه وي، هغه د الله تعالی په دربار کي هیڅ قدر او عزت نه لري...

هر که اورا پیشهٔ بدخوئی بود | کار او پیوسته بدروئی بود

هر څوک چي هغه لره عادت بد اخلاقي وي | کار د هغه همېشه بدمخی وي

خوئ بد درتن بلای جان بود | مردم بدخو نه از انسان بود

بد خوی په تن کي بلا د روح وي | سړی بد خویه له انسانانو څخه نه وي

بخل شاخی از درخت دوزخ ست | وان بخیلک از سگان مسلخ ست

بخل یو ښاخ له وني څخه د دوږخ دئ | او هغه بخیلګی له سپیانو څخه د قصابخانې دئ

روی جنت را کجا بیند بخیل | پشهٔ افتاده زیرپای پیل

مخ د جنت کله ویني بخیل | یوه غوماشه به پرته وي لاندي تر پښې د پیل

**د لغاتو حل:** پیشه (کار / خوی / عادت)؛ بد خو (بد خویه / بد اخلاقه)؛ مسلخ (قصابخانه).

**لنډیز:** ... د چا چي بد اخلاقي عادت وي، د هغه کار ټول عمر بدمخی او خراب وي. په بدن کي بد خوی د روح له پاره د بلا په څېر وي او بد خویه انسان په انسانانو کي نه شمېرل کېږي. بخل د دوږخ له وني څخه یو ښاخ دئ او بخیل داسي مثال لري لکه د قصابخانې سپی. بخیل د جنت مخ هم نه سي لیدلای، بلکي بخیل داسي وي لکه یوه غوماشه چي د پیل تر پښې لاندي پرته وي.

## در بیان عافیت

### د سلامتی په بیان کي

از بلا تا رسته گردی ای عزیز | باز باید داشتن دست از دو چیز

څخه تر څو خلاص سې اې ګرانه! | لېري ښایي لرل د لاس له دوو شیانو څخه

| | |
|---|---|
| زود دست از نفس ودنیا دور دار | تا بلاها را نباشد باتو کار |
| ژر لاس له نفس او له دنیا لیري لره | ترڅو بلاوو لره نه وي ستا سره کار |
| گر بحرص وآز گردی بتلا | باتو رو آرد زهر سو صد بلا |
| که چیري په حرص او چوستوب کي سې اخته | و تا ته به مخ واړوي له هر لوري څخه سل بلاوي |
| آنکه نبود هیچ نقدش درمیان | هر کجا باشد بود اندر امان |
| د چاچي نه وي هیڅ نغده په همیانۍ کي | هر چیري چي وي، وي به په امان کي |

**د لغاتو حل:** حرص (سرابنتوب / په لږ څه نه قانع کېدل)؛ میان (همیانۍ / پټاکیدانه / بټوه).

**لنډیز:** په دې باب کي حضرت عطار رحمة الله علیه د سلامتیا او عافیت په اړه بیان کوي، فرمایي چي که چیري ته غواړې چي له بلاؤ او مصیبتونو څخه خوندي پاته سې، نو باید له دوو شیانو څخه ځان وساتې، ژر تر ژره له نفس او دنیا څخه لاس واخله، تر څو ستا سره د غمونو او بلاؤ کوم کار پاته نه سي. که چیري په حرص او چوستوب اخته سې، نو په سلگونو بلاوي به ستا پر خوا درسي، یعني له سل دوله ستونزو سره به مخ سې. څوک چي له ځان سره پیسې او شتمني نه لري، نو په هر ځای کي چي وي په امن او امان کي به وي، ځکه چي تر تولو ستره بلا او لویه ستونزه همداسي شتمني ده...

| | |
|---|---|
| نفس ودنیا را رها کن ای پسر | تا رهی از هر بلاؤ هر خطر |
| نفس او دنیا پرېږده اې هلکه! | تر څو خلاص سې له هري بلا او هر خطر څخه |
| ای بسا کس کز برائ نفس زار | در بلا افتاد وگشت از غم نزار |
| اې! ډېر کسان چي له پاره د نفس دي عاجزه | په بلا کي لوېدلي اوسوي دي له غمه څخه ناتوانه |
| از برائ نفس مرغ نامراد | آمد ودر دام صیاد اوفتاد |
| له پاره د نفس مرغه نامراده | راغلی او په دام کي د ښکاري ولوېدی |

| | |
|---|---|
| تا دولت آرام باید ای پسر | بود و نا بود جهان یکسان شمر |
| تر څو زړه کې آرام پیدا کړې اې هلکه! | سته او نا سته د دنیا یو ډول وګڼه |

**د لغاتو حل:** رها کردن (پرېښوول)؛ رهی (وژغورل سې)؛ نزار (عاجز / ناتوانه)؛ یکسان (یو رنګه / برابر).

**لنډیز:** ... نو اې انسانه! نفس او دنیا تر شا پرېږده تر څو له هرې بلا او هر خطر څخه وژغورل سې. ځکه ډېرې کسان چې ځانونه يې نفس ته په واک کې ورکړي دي، په ستونزو او مشکلاتو کې راګیر دي. د همدې نفس له پاره نامراده مرغه راغلی او د ښکاري په دام کې بند پاته سو. که غواړې چې زړه دې په دنیا کې آرام او قرار وي، نو د دنیا هر سته او نا سته څه یو ډول وګڼه، یعني کوم څه چې سته، هغه هم داسې وګڼه له نه چې وي...

| | |
|---|---|
| از عذاب و قهر حق ایمن مباش | در پئ آزار هر مومن مباش |
| له عذابه او له قهره د خدای بې غمه مه اوسه | په وروسته پسې د آزارولو د هر مومن مه اوسه |
| در بلا یاری مخواه از هیچ کس | زانکه نبود جز خدا فریادرس |
| په تکلیف مې مرسته مه غواړه له هیچا څخه | ځکه چې نه دئ ماسېوا له خدای تعالی څخه فریاد منونکی |
| هر کرا رنجانده‌ٔ عذرش بخواه | تا نباشد خصم تو در عرصه گاه |
| هر چا لره چې دې تکلیف ورکړی عذر ځني وغواړه | تر څو نه وي دښمن ستا په عرصات کې |
| هر که خَلق از خُلق او خوشنود نیست | هیچ قدرش بر در معبود نیست |
| هرڅوک چې خلګ له اخلاقو څخه د ده راضي نه وي | هیڅ قدر يې پر دربار د معبود نه سته |
| گر غنا خواهد کسے از ذوالمنن | در قناعت میتوانش یافتن |
| که چېرې غنا غواړې یو څوک له خدای تعالی څخه | په قناعت کې يې کولای سې چې پیدا يې کې |

**د لغاتو حل:** ذو المنن (خاوند د احساناتو، مطلب خدای تعالی)؛ عرصه گاه (د عرصات میدان).

**لنډیز:** ... د الله تعالی له قهر او عذاب څخه هیڅکله مه بې غمه کېږه او هیڅکله مومنان مه آزاروه. په ستونزو او مشکلاتو کې له الله تعالی پرته له بل هیچا څخه مرسته مه غواړه، ځکه چې له الله تعالی پرته

هیڅوک مرسته نه سي درسره کولای. هر چا ته چي دي تکلیف ورکړی وي، نو ورسه او بخښنه څني وغواړه، تر څو په آخیرت کي دعوه دربانديي ونه کړي. ځکه له چا څخه چي خلګ خوښ او راضي نه وي، هغه د الله تعالی په دربار کي هيڅ قدر او عزت نه لري. که څوک له الله تعالی څخه غنا او شتمنتوب غواړي، نو قناعت دي غوره کړي.

# در بیان عقل و عاقلان

## د عقل او عقلمندو په بیان کي

| | |
|---|---|
| هر کرا عقل ست و دانش ای عزیز | دور باید بودنش از چار چیز |
| هر چا لره چي عقل دئ او پوهه اې گرانه | ليري ښايي کېدل د ده له څلورو شيانو څخه |
| کار خود با ناسزا نکند رها | مردمی نکند بجای ناسزا |
| کار خپل دي و نالائق ته نه پرېږدي | او خواني دي نه کوي پر ځای د نالائق |
| عقل داری میل بدکاری مکن | زین چو بگذشتی سبکساری مکن |
| که عقل لرې مینه د بدکارۍ مه کوه | تر دې چي تېر سوې سپکوالی مه کوه |
| هر کرا از عقل دل روشن بود | در زمانه با صلاح تن بود |
| هر چا لره چي له عقل څخه زړه روښانه وي | په زمانه کي له صلاح سره د تن وي |

**د لغاتو حل:** عقل (هوښ)؛ دانش (علم)؛ سبگساری (سپکوالی / حقارت).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د عقل او د عقلمندو (هوښيارو) انسانانو په اړه بيان کوي، فرمايي چي څوک چي څه اندازه عقل او علم ولري، نو بايد له څلورو شيانو څخه ليري واوسي، دا چي خپل کار نالائقه ته ونه سپاري او له نالائقه سره څواني ونه کړي. که عقل لرې نو بدو کارونو ته لېوالتيا او شوق مه کوه او همدا ډول سپک - سپک مه کېږه. د هر چا په عقل سره زړه روښانه وي، نو بدن يې هم اصلاح سوی وي...

تا شوی پیش از همه از روزگار ‌‌ ‌ دست برنان ونمک بکشاده وار

تر څو سې مخکي له ټولو څخه په زمانه کي ‌ ‌ لاس پر دوډۍ او مالګه خلاص لره

تا تو باشی در زمانه دادگر ‌ ‌ زیردستان را نکودار ای پسر

تر څوچي ته سې په زمانه کي سخي ‌ ‌ تر لاس لاندي کسانو لره ښه لره اې هلکه

هرکه برپند خود آمد استوار ‌ ‌ پند اورا دیگران .بهبندکار

هرڅوک چي پر نصیحت خپل راغلی محکم ‌ ‌ نصیحت د ده لره به نور کسان عمل کوي

هرکه او ازگفتار خود باشد ملول ‌ ‌ قول اورا دیگری نه کند قبول

هر څوک چي هغه له خبري خپلي وي خواشینی ‌ ‌ وینا د هغه نور کسان نه کوي قبوله

**د لغاتو حل:** کشاده (خلاص / پرانیستی)؛ زیر دستان (تر لاس لاندي کسان، لکه اولادونه، کاریګر او...).

**لنډیز:** ... که غواړې چي په دنیا کي تر نورو خلګو مخکي سې او ښه نوم ولرې، نو لاس دي پر مالګه او ډوډۍ خلاص لره، یعني د دې دوو شیانو په خیراتولو کي بخل مه کوه. او که غواړې چي په دنیا کي په سخي سره ونومول سې، نو له هغو کسانو سره ښه چلند کوه او تنګي مه پر راوله چي ستا تر لاس لاندي دي، لکه اولادونه او نور... چي ستا لاس ته ګوري. کوم څوک چي په خپل نصیحت باندي عمل نه کوي، نو نور خلګ به چیري د هغه په نصیحت عمل وکړي، څکه څوک چي خپله ښوونه او نصیحت نه عملي کوي، نو نور کسان به یې چیري عملي کړي...

هرچه باشد در شریعت ناپسند ‌ ‌ دورباش ازوی چو هستی هوشمند

هر څه چي وي په شریعت نا خوښه ‌ ‌ لیري اوسه له هغه څخه که یې هوښیار

تا صواب کار بینی سربسر ‌ ‌ برمراد خود مکن کار ای پسر

تر څو ښه کار ووینې سراسر ‌ ‌ پر مراد خپل مه کوه کار اې هلکه

**د لغاتو حل:** هوشمند (عقلمند / هوښیار)؛ صواب (ښه / حق / پر شریعت برابر).

**لنډیز:** ... له هر هغه شي او کار څخه لیري اوسه چي په شریعت کي بد ګڼل کیږي. که چیري غواړې

چي کارونه دي سم او ښه مخ ته ولاړ سي، نو پر خپل سر او يوازي د خپل مقصد له پاره کار مه کوه.

# در بیان رستگاری

## د خلاصون په بیان کي

هست بیشک رستگاری در سه چیز ‖ با تو گویم یادگیرش ای عزیز

دئ بې له شکه خلاصون په درو شيانو کي ‖ و تا ته وايم ياد يې ونيسه اې گرانه!

آن یکی ترسیدنست از ذو الجلال ‖ دوم آمد جستن قوت حلال

يو له هغه څخه ببرېدل دي له ذو الجلال څخه ‖ دوهم راغلی طلب کول د رزق حلال

سومی رفتن بود بر راه راست ‖ رستگار ست آنکه اینخصلت وراست

درېيم تلل دي پر لار سمه باندي ‖ خلاص دئ هغه چي دغه خويونه هغه لره دي

گر تواضع پیش گیری ای جوان ‖ دوست دارندت همه خلق جهان

که چيري عاجزي مخ کي ونيسې اې خوانه ‖ دوست به لري تا توله خلگ د دنيا

**د لغاتو حل:** رستگاری (خلاصيت / نجات / خونديتوب)؛ ذو الجلال (د لويي خاوند، خدای تعالی).

**لنډيز:** په دې باب کي مضنف رحمة الله عليه د خلاصون او خوندي پاته کېدلو په اړه بيان کوي، فرمايي چي خلاصون او نجات په درو شيانو کي دئ چي زه يې اوس درته بيانوم: ۱- يو له الله تعالی څخه ببرېدل دي. ۲- د حلال رزق ترلاسه کول دي. ۳- تل پر سمه لار باندي تلل دي. په چا کي چي دا درې شيان موجود وي، نو هغه به خلاصون او نجات تر لاسه کړی وي. اې انسانه! که چيري ته عاجزي غوره کړې، نو د دنيا توله خلگ به دي دوستان سي...

سر مکن در پیش دنیادار پست ‖ ور کنی بیشک رود دینت زدست

سر مه کوه په مخ کي د شتمن ټيټ ‖ اوکه يې کوې بې له شکه ځي دين ستا له لاسه

هر که اورا حرص دنیادار شد | بیگمان از وی خدا بیزار شد

هر څوک چي هغه له حرص څخه دنیادار سو | بې له شکه له هغه څخه خدای بېزاره سو

بهر زر مستای دنیادار را | تا چه خواهی کردن این مردار را

له پاره د زرو صفت مه کوه د دنیاداره | څه به وکړي په دې مرداره (دنیا)

مردگانند اغنیائی روزگار | ای پسر با مردگان صحبت مدار

مړه دي شتمن د زمانې | اې هلکه! له مړو سره مجلس مه لره

مال وزر بیحد بدست آورده گیر | بعد ازان در گور حسرت برده گیر

مال او زر بې اندازې په لاس راوړې فرض کړه | وروسته تر دې به په قبر کي ارمان وړې، فرض کړه

**د لغاتو حل:** پست (کښته / ټیټ)؛ مستای (مه ستایه / ستاینه مه کوه)؛ گیر (ونیسه، مطلب فرض کړه).

**لنډیز:** ... هیڅکله د شتمنیو له پاره د شتمنو خلگو په وړاندي سر مه ټیټوه، که نه نو دین ته دي زیان رسیږي او له لاسه دي وزي. څکه څوک چي د شتمنتوب او مالدارۍ حرص ولري، له هغه څخه خدای تعالی بېزاره او ناراضه کیږي. نو د دنیا او پیسو له پاره د شتمنو خلگو ستاینه او صفت مه کوه، څکه دا دنیا د مردار جسد غوندي ده، نو څه گټه به څني ترلاسه کړي. غنیان او شتمن خلگ ټول مړه وي، نو مړو سره هیڅکله د مجلس کولو هڅه مه کوه. ته داسي فرض کړه چي بې اندازې شتمنۍ او پیسې دي ترلاسه کړې، نو تر مرگ وروسته به په قبر کي څه به وکړې. هلته به ارمانونه کوې، خو څه به لاس ته نه درځي.

# در بیان فضیلت ذکر

## د ذکر په فضیلت کي

• باش دایم ای پسر در یاد حق | گر خبرداری زعدل وداد حق

اوسه همېشه اې هلکه په یاد کي د خدای | که چیري خبر لرې له عدل او انصاف څخه د خدای

| | |
|---|---|
| زنده دار از ذکر صبح وشام را | در تغافل مگذران ایام را |
| ژوندي لره له ذکر څخه سهار او ماښام | په غفلت کي مه تېروه ورځي |
| یاد حق آمد غذا این روح را | مرهم آمد این دل مجروح را |
| ذکر د خدای راغلی خوراک د دې روح | درمل راغله دې دغه زړه زخمي لره |
| یاد حق گر مونس جانت بود | کے هوائ کاخ وایوان بود |
| ذکر د خدای که چیري ملگری د روح ستا وي | کله به خواهش د ماڼۍ او د بنگلې تا لره وي |

**د لغاتو حل:** فضیلت (غوره والی / غوراوی / ښه والی)؛ تغافل (ځان ناخبره اچول).

**لنډیز:** په دې باب کي حضرت عطار رحمة الله علیه د الله تعالی د ذکر او یادوني د فضیلت اړوند بیان کوي، فرمایي چي اې انسانه! همېشه د الله تعالي ذکر کوه، ځکه الله تعالی ډېر عادل ذات دئ. سهار او ماښام د هغه جل جلاله ذکر کوه او په ورځ کي هم د هغه جل جلاله له ذکر څخه ځان ناخبره مه نیسه، ځکه چي ذکر د روح غذا او د زخمي زړه مرهم او دوا ده. که چیري همېشه د الله تعالی ذکر کوې، نو له زړه څخه دي د ماڼیو او هوسایني خواهش لیري کیږي...

| | |
|---|---|
| گر زمانی غافل از رحمان شوی | اندر آندم همدم شیطان شوی |
| که چیري لږ وخت غافل له رحمان څخه سوې | په همدغه ساعت کي ملگری د شیطان سوې |
| مومنا ذکر خدا بسیار گوی | تا بیابی در دو عالم آبروی |
| اې مومنانو! ذکر د خدای ډېر وایاست | تر څو ومومئ په دواړو عالمونو کي عزت |
| ذکر بر سه وجه باشد بے خلاف | تو ندانی این سخن را از گزاف |
| ذکر پر درې ډوله دئ بې له اختلافه | ته ونه گڼې دا خبره له درواغو څخه |
| ذکر را اخلاص می باید نخست | ذکر بے اخلاص کی باشد درست |
| ذکر لره اخلاص ښایي اول | ذکر بې له اخلاصه کله وي صحیح |

**د لغاتو حل:** گزاف (درواغ / بې دليله يا بې اساسه خبره)؛ نخست (په لومړي قدم کې / اول وار).

**لنډيز:** ... که چيرې لږ وخت هم د الله تعالی له ذکر څخه غافل سې، نو په همدې لږ وخت کې به د شيطان ملگری سوی يې. نو اې مومنه وروره! د الله تعالی ذکر ډېر کوه تر څو په هم په دنيا او هم په آخيرت کې عزتمن واوسې. د الله تعالی ذکر پر درې ډوله کيږي او دا خبره بې اساسه او بې دليله نه ده. لومړی خو بايد له ذکر سره اخلاص موجود وي، ځکه چې له اخلاص پرته ذکر هيڅ فائده نه لري...

| | |
|---|---|
| عام را نبود بجز ذکر زبان | ذکر خاصان باشد از دل بیگمان |
| عامو لره نه وي بې له ذکره څخه د ژبي | ذکر د خاصو وي له زړه څخه بې له شکه |
| ذکر خاص الخاص ذکر سِر بود | هر که ذاکر نیست او خاسر بود |
| ذکر د خاص الخاص ذکر پټ وي | هر څوک چې ذکر کوونکی نه وي هغه تاواني دئ |
| ذکر بی تعظیم گفتن بدعت ست | واندران یک شرط دیگر حرمت ست |
| ذکر بې تعظيمه ويل بدعت دئ | او په هغه کې يو شرط بل د عزت دئ |
| هست مر هر عضورا ذکر دگر | هفت اعضا هست ذاکر ای پسر |
| دئ خاص هر اندام لره ذکر بل | اووه اندامونه دي ذکر کوونکي اې هلکه! |

**د لغاتو حل:** خاص (هغه کسان چې تر عوامو په درجه کې څه اندازه لوړ وي)؛ خاص الخاص (هغه سپېڅلي کسان دي چې د سپېڅلتيا درجې يې تر خاصو کسانو هم لوړې وي).

**لنډيز:** ... نو د ذکر درې ډوله په دې ډول دي چې لومړی د عامو خلگو ذکر دئ، دويم د خاصو کسانو ذکر دئ او دريم د خاص الخاص ذکر دئ. د عامو خلگو ذکر يوازې په ژبه سره وي، يعني په ژبې سره د الله تعالی يادونه او ستاينه کوي. د خاصو خلگو ذکر له ژبې سره - سره په زړه سره هم وي، يعني څنگه چې په ژبه سره د الله تعالی ذکر کوي په زړه کې يې هم يادوي او د خاص الخاص، چې اولياء کرام او شيخان مبارکان دي، د هغوی ذکر پټ وي، يعني يوازې په زړه کې د الله تعالی ذکر کوي چې نور خلگ نه ورباندې پوهيږي. همدا ډول په ذکر کې يو شرط دا دئ چې عزت او درناوی به ورسره مل وي، يعني بې له درناوي او احترامه ذکر کول هيڅ گټه نه لري. همدا ډول د بدن هر اندام لره بېل بېل اذکار سته چې

د انسان په بدن کې اووه اندامونه داسې دي چې د الله تعالی ذکر کوي...

| | |
|---|---|
| ذکر چشم از خوف حق بگریستن | باز . در آیات او نگریستن |
| ذکر د سترګو له بېرې څخه د خدای ژړل دي | بیا په نښانو (د قدرت) کې د هغه کتل دي |
| یاریٔ هر عاجز آمد ذکر دست | ذکر پا خویشان زیارت کردن ست |
| مرسته د هر عاجز راغلی ذکر د لاس | ذکر د پښې د خپلوانو دیدن کول دي |
| استماع قول رحمن ذکر گوش | تا توانی روز و شب در ذکر کوش |
| اورېدل د قول د خدای ذکر د غوږ دئ | تر څو کولای سې ورځ او شپه په ذکر کې کوشش کوه |
| اشتیاق حق بود ذکر دلت | کوش تا این ذکر گردد حاصلت |
| شوق د خدای دئ ذکر د زړه ستا | کوشش کوه تر څو دغه ذکر سي حاصل تا ته |

**د لغاتو حل:** بگریستن (ژړل / اوښکې تویول)؛ اشتیاق (شوق / مینه / محبت / لېوالتیا).

**لنډیز:** ... ۱- د سترګو ذکر د الله تعالی له بېرې او خوف څخه ژړل او د الله تعالی د قدرت نښو ته کتل او نکر پکښې کول دي. ۲- د لاس ذکر له هر غریب او بېچاره سره مرسته او کومک کول دي. ۳- د پښو ذکر قریبانو او دوستانو ته ورتلل او پر هغوی پوښتنه کول دي. ۴- د غوږونو ذکر د الله تعالی د کلام (قرآن کریم) اورېدل دي. نو څومره چې دي وس وي د الله تعالی په ذکر کولو کې کوښښ کوه. ۵- د زړه ذکر له الله تعالی سره مینه او محبت لرل دي. کوښښ وکړه چې دا ذکر دې په برخه سي، څکه دا ډېر غوره ذکر دئ...

| | |
|---|---|
| آنکه از جهلست دائم در گناه | کے حلاوت یابد از ذکر اله |
| هغه چې له ناپوهۍ څخه همېشه په ګناه کې وي | کله خوند پیدا کوي له ذکر څخه د خدای |
| خواندن قرآن بود ذکر لسان | هر کرا این نیست هست از مفلسان |
| لوستل د قرآن دئ ذکر د ژبې | هر چا لره چې دا نه وي دئ له مفلسانو څخه |

| | |
|---|---|
| شکر نعمتهای حق می کن مدام | تا کند حق بر تو نعمتها تمام |
| شکر د نعمتونو د خدای کوه همېشه | تر څو کړي خدای پر تا باندې نعمتونه پوره |
| حمد خالق بر زبان دار ای پسر | عمر تا برباد ندهی سر بسر |
| حمد د پیدا کوونکي پر ژبه لره اې هلکه! | تر څو عمر دې برباد نه سي سراسر |
| لب مجنبان جز بذکر کردگار | زانکه پاکان را همین بودست کار |
| شونډې مه ښوروه بې له ذکر څخه د خدای پاک | ځکه چې پاکانو لره همدغه وو کار |

**د لغاتو حل:** اِله (پروردگار، خدای تعالی)؛ مفلس (هغه چې په لاس کې هیڅ نه لري / غریب).

**لنډيز:** ... څوک چې ټول عمر په گناهونو کې مصروف وي، هغه کله د الله تعالی د ذکر په خوند پوهېږي.

٦- د ژبې ذکر د الله تعالی د ستر کلام (قرآن کریم) تلاوت کول دي. څوک چې له دې ذکر څخه برخمن نه وي، هغه مفلس او بېچاره دئ. له مفلس مراد د پیسو غریب نه دئ، بلکې له دیني اړخه څخه غریب دئ. تل د الله تعالی د نعمتونو شکر اداء کوه، تر څو الله تعالی نور هم نعمتونه درباندې زیات کړي. د الله تعالی حمد او ستاینه تل پر ژبه ولره، تر څو عمر دې بې ځایه تېر نه سي. خپلې شونډې د الله تعالی له ذکر پرته مه خلاصوه، ځکه چې د پخوانیو سپېڅلو کسانو همدا کار وو.

# در بیان عمل چهار چیز

## د څلورو شیانو د عمل په بیان کې

| | |
|---|---|
| بر همه کس نیک باشد چار چیز | با تو گویم یادگیرش ای عزیز |
| پر ټولو کسانو ښه وي څلور شیان | و تا ته وایم یاد یې ونیسه اې عزیزه! |
| اول آن باشد که باشی دادگر | هم ز عقل خویش باشی باخبر |
| اول دا دئ چې اوسې عادل | هم له عقل خپل څخه اوسې باخبره |

باشکیبائی تقرب کردنست | حرمت مردم بجا آوردنست

له صبر سره نیژدېکت کول دي | عزت د خلګو پر ځای راوړل دي

**د لغاتو حل:** دادګر (ورکوونکی، مطلب سخي)؛ شکیبائی (صبر / زغم / قناعت). حرمت (درناوی / قدر).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کي د څلورو داسي شیانو بیان کوي چي د ټولو له پاره ګټور دي، فرمایي چي څلور شیانو د هر چا له پاره غوره دي چي زه یې اوس درته بیانوم او تاسي یې یاد وساتئ: لومړی دا چي ته سخي اوسې، دویم دا چي په خپل عقل او استعداد خبر اوسې، درېیم دا چي تل صبر کوونکی او قانع واوسې او څلورم دا چي د ټولو خلګو عزت او درناوی وکړې.

# در بیان خصلت ذمیمه

## د بدو خویونو په بیان کي

چارچیز دیگر ای نیکو سرشت | هست از جمله خلائق نیک زشت

څلور شیان نور اې نېک ذاته | دي له ټولو خلګو څخه ډېر ناکاره

زان چهار اول حسد کینی بود | زان گذشتی عجب وخود بینی بود

له هغو څلور څخه اول حسد کینه ده | تر دې چي تېر سې عجب او ځان لیدنه ده

خشم را دیگر فرو ناخوردن است | خصلت چارم بخیلی کردن است

بل قهر لاندي نه خوړل دي | خوی څلورم بخیلي کول دي

ای پسر کم گرد گرد این خصال | از برای آنکه زشتست این فعال

اې هلکه! مه ګرځه پر شاوخوا د دې خویونو | له پاره د دې چي ناکاره دي دا کارونه

**د لغاتو حل:** خصلت (خوی / عادت) ذمیمه (بد ګڼل سوی / ناوړه)؛ خصال (د خصلت جمع ده). عجب (مغروري / تکبر)؛ خود بیني (ځان لیدنه، مطلب دا چي څوک یوازي ځان ښه او غوره ګڼي).

**لنډیز:** په دې باب کي شیخ عطار رحمة الله علیه د څلورو داسي خویونو یا صفتونو بیان کوي چي ډېر

بد او ناوړه دي او د هر چا له پاره په زیان تمامیږي، فرمايي چي څلور شیان د هر چا له پاره ډېر بد او ناوړه دي چي له هغو څخه لومړی يې حسد او کينه ده، دويم يې عجب او خود بيني ده. درېيم د قهر او غوسې نه زغمل دي او څلورم بخل او کنجوسي ده. نو اې انسانه! د دې څلورو ناوړه خويونو پر شا وخوا لا مه ګرځه، ځکه چي دا ډېر بد او ناوړه شيان دي...

| | |
|---|---|
| غل وغش بگذار چون زر پاک شو | پیش ازانکه خاک گردی خاک شو |
| خیري پرېږده په مثال د زرو پاک سه | مخکي تر دې چي خاوري کېږې خاوري سه |
| حرص بگذار وقناعت پیشه کن | آخر ازمردن یکے اندیشه کن |
| حرص پرېږده او قناعت عادت کړه | آخر له مړ کېدلو څخه خو يو وار اندېښنه وکړه |

**د لغاتو حل:** غل وغش (هغه خيره يا کچره مواد چي له زرو سره ګډ وي). حرص (سرابښتوب / چوستوب).

**لنډيز:** ... نو له خيرو او کچره موادو څخه ځان پاک او سوتره کړه او مخکي له دې چي خاوري کېږې، ځان د خاورو په څېر له تکبر او لويي څخه عاجز جوړ کړه. حرص او سرابښتوب پرېږده او قناعت غوره کړه، آخر له مرګ څخه خو يو څه بېره او وهم ولره.

# در بیان سعادت و نصیحت

## د نېکمرغی او خیرخواهی په بیان کي

| | |
|---|---|
| بر سعادت چار چیز آمد دلیل | شرح این هر چار بشنو ای خلیل |
| پر نېکمرغي څلور شيانو راغله دليل | بيان د دې څلورو سرو واوره اې دوسته! |
| از سعادت هر کرا باشد نشان | باشدش تدبیرها با دوستان |
| له نېکمرغی څخه چي هر چا لره وي علامه | وي به هغه لره تدبيرونه سره له دوستانو |
| هر کرا باشد سعادت رهنمای | صبر دارد ازجفای ناسزای |
| هر چا لره چي وي نېکمرغي لارښوونکې | صبر لري له ظلمه د نالائقو |

| هر که را بخت وسعادت گشت یار | درجهان باشد بدشمن سازگار |
|---|---|
| هر چا لره چي بخت او نېکمرغي سوې وي ملګري | په دنیا کي به وي له دښمن سره موافق |

**د لغاتو حل:** نصیحت (خیر خواهي / خیر غوښتنه)؛ شرح (تفصیل / بیان / وضاحت).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د نصیحت او نېکبختی اروند بیان کوي، فرمايي چي څلور شیان د نېکمرغی او سعادت علامې دي چي زه يې درته په تفصیل سره بیانوم: څوک چي له نېکمرغی څخه يوه ښه ولري، نو هغه په هر کار کي له دوستانو او خپلوانو سره مشوره کوي، یعني هېڅ کار پرته له مشورې او پر خپل سر نه کوي. همدا ډول څوک چي نېکمرغه او سعید وي، هغه د نالائقو او کوڅه ډبو کسانو پر زهیروني او تکلیف باندي صبر کوي. همدا ډول د چا چي نېکمرغي او بخت ملګری وي، نو له دښمنانو سره روغ او جوړه کوي او دښمني پای ته رسوي...

| گر تو خود نار هوارا کشتهٔ | دان که از اهل سعادت گشتهٔ |
|---|---|
| که چیري تا خپل اور د خواهشاتو وژلی وي | پوه سه چي له خاوندانوڅخه د نېکمرغی ګرځېدلی یې |
| گر بود با دوستان تدبیر تو | یار باشد دولت شبگیر تو |
| که چیري وي له دوستانو سره تدبیر ستا | ملګری به و دولت د شپې ستا |
| از سر خود هر که کاری میکند | بخت دولت زو فراری میکند |
| پر خپل سر چي هر څوک یو کار کوي | بخت او دولت له هغه څخه تېښته کوي |
| دشمن خودرا نباید زودتر | گر توانی کشت اورا باشکر |
| دښمن خپل لره نه ښايي وهل په تېر | که کولای سې مړ کړه هغه په خوږې سره |

**د لغاتو حل:** کشته (وژلی / مړ کړی)؛ تدبیر (سنجونه، مطلب سلا او مشوره).

**لنډیز:** ... که چیري تا د خپلو خواهشاتو اور وژلی وي، نو پوه سه چي له نېکمرغانو څخه يې. که چیري ته په خپلو چارو کي له دوستانو او ملګرو سره مشوره کوې، نو د شپې او ورځي به دولت او قدرت ملګری وي. څکه څوک چي کارونه پر خپل سر او پرته له مشورې کوي، له هغه څخه بخت او دولت تښتي. دا

ښه نه ده چي خپل دښمن دي په تبر یا کومه بله وسله ووژنې، بلکي ښه دا ده چي په مینه او خواخوږي یې خپل کړې او د ځان تابع یې کړې...

| | |
|---|---|
| تا توانی جور نا اهلان بکش | گر همی خواهی که یابی عیش خوش |
| ترخو چي کولای سې ظلم د نا اهلو وزغمه | که چیري داسي غواړې چي ومومې ژوند خوشحاله |
| چون ترا آید مقامی سازگار | بر نه بندی رخت زانجا زینهار |
| کله چي تا لره راسي یو مقام موفق | که ونه تړې سامان له هغه ځایه خامخا |
| در نصیحت آنکه نپذیرد سخن | با چنین کس پند خود ضائع مکن |
| په نصیحت کي هغه چي نه قبلوي خبره | له داسي کسانو سره نصیحت خپل ضائع مه کوه |
| خوی بد را نیک کردن مشکل ست | جهد کردن بهر او بیحاصل ست |
| عادت بد ښه کول مشکل دئ | کوښښ کول د دې له پاره بې ګټې دئ |

**د لغاتو حل:** جهد (هڅه او کوښښ)؛ بی حاصل (بې ګټې / بې فائدې).

**لنډیز:** ... تر څو چي کولای سې د غلطو او ناهله خلګو ظلمونه او تکلیفونه وزغمه، که چیري داسي وکړې، نو خوشحاله ژوند به ولرې. کله چي دي یو مقام له خوښۍ او غوښتني سره موافق په لاس درسي، نو هغه هیڅکله له لاسه مه ورکوه او مه یې پرېږده. کوم خلګ چي د چا نصیحت ته غوږ نه نیسي او نه یې مني، هغوی هیڅکله نصیحت مه کوه او وخت مه بربادوه. ځکه چي بد عادت په ښه عادت بدول ډېر سخت او مشکل کار دئ، او د دې له پاره هڅه او کوښښ هیڅ ګټه نه لري...

| | |
|---|---|
| بنده را گر نیست در کاری رضا | کی تواند باز گرداند قضا |
| بنده لره که چیري نه وي په یوه کار کي رضا | کله کولای سي رد کول د حکم الهي |
| هر که او استیزه با سلطان کند | کار خود را سر بسر ویران کند |
| هر څوک چي هغه جګړه له باچا سره کوي | کار خپل سر په سر خرابوي |

| هرکه او باغی شود از بادشاه | روز او چون تیره شب گردد سیاه |
|---|---|
| هر څوک چې هغه باغي سي له باچا څخه | ورځ د هغه په مثال د توري شپې ګرځي توره |

**د لغاتو حل:** استیزه (شخړه / جنګ / جګړه)؛ باغی (سرکښه / فرمان نه منونکی).

**لنډیز:** ... بنده تل باید له الهي تقدیر او قضا څخه خوښ او راضي واوسي، ځکه که چیري راضي نه سي، نو دا هغه ته له زیان پرته هیڅ کومه ګټه نه سي رسولای، ځکه چي الهي تقدیر هیڅکله د بنده په خوښه او ناخوښه نه بدلیږي. همدا ډول هر څوک چي له واکمن یا باچا سره مخالفت کوي، نو خپل کارونه په خپل لاس سره خرابوي، ځکه څوک چي د باچا له حکم څخه مخالفت وکړي او نافرمانه سي، نو د هغه ورځ به هم د توري شپې په څېر په تیاره کي ورباندي تېرېږي.

# در بیان علامات مدبری

## د بدبختۍ د علامو په بیان کي

| چارچیز آمد نشان مدبری | یادگیرش گرتو رُشن خاطری |
|---|---|
| څلور شیان راغلي دي علامې د بدبختۍ | یاد یې ونیسه که چیري ته یې روښان زړی |
| مدبری باشد بابله مشورت | پس بجاهل دادن سیم وزرت |
| بدبختي ده له ناپوه سره مشوره | بیا وناپوه ته ورکول د سپین اود سروزروستا |
| هرکه پند دوستان نکند قبول | در حقیقت مدبرست آن بو الفضول |
| هر څوک چي نصیحت د دوستانو نه کوي قبول | په حقیقت کي بدبخته دئ هغه پاګل |
| هرکه از دنیا نگیرد عبرتی | هست زان مدبر جهان را نفرتی |
| هر څوک چي له دنیا څخه نه اخلي عبرت | دئ له هغه بدبخته څخه دنیا لره نفرت |

**د لغاتو حل:** مدبری (بدمرغي / شقاوت / نحسیت)؛ نفرت (تښتېده / کرکه / بد ایسېدل).

**لنډیز:** په دې باب مصنف رحمة الله علیه د بدبختۍ او شقاوت د علامو او نښانو په اړه بیان کړی، فرمایي

چي څلور شيان د بدمرغۍ او بدبختۍ نښي او علامې دي، که د ښه زړه څښتن يې، نو ياد يې وساته، تر څو له بدبختۍ وژغورل سې. د بدبختۍ لومړۍ نښه له ناپوه او احمق انسان سره سلا او مشوره کول دي، دويم نا اهل او کم عقل انسان د شتميو او جايدادونو سپارل دي. دريم د دوستانو او خواخوږو نصيحت او مشوره نه منل، څکه څوک چي د دوستانو مشوره او نصيحت نه مني، هغه کم عقل او بد بخته دئ. څلورم له دنيا او په دنيا کي له اوسېدونکو څخه عبرت نه اخيستل، څکه څوک چي په دنيا کي هر څه په سترګوويني، خو بيا عبرت نه اخلي او نه هوښياريږي، نو هغه بدبخته دئ او خلګ نفرت څني کوي...

| | |
|---|---|
| مشورت هر کس که با ابله کند | ديو ملعونش سبک گره کند |
| مشوره هر څوک چي له ناپوه سره کوي | شيطان لعين به يې زر لار ورکۍ کړي |
| آنکه مال و زر دهد با جاهلان | آنچنان کس کے بود با مقبلان |
| هغه چي مال او زر ورکوي وناپوهانو ته | دا ډول کس کله وي له بختورو څخه |
| زر چو جاهل را همی آید بکف | میکند اسراف ومی سازد تلف |
| زر چي کله ناپوه لره داسي ورسي په لاس | کوي اسراف او کوي يې هلاک |
| نشنود از دوست مدبر پند را | از جهالت بگسلد پیوند را |
| نه اوري له دوست څخه بدبخته نصيحت | له ناپوهۍ څخه شکوي پيوند |

**د لغاتو حل:** ديو (دېب / پېرۍ، مطلب يې شيطان دئ)؛ اسراف (تر اندازې زيات مصرف).

**لنډيز:**... نو څوک چي په خپلو چارو کي له جاهل او احمق انسان سره مشوره کوي، نو ژر دئ چي شيطان به يې له لاري څخه واړوي، يعني بې لاري به يې کړي. همدا ډول څوک چي په کاروبار کي خپلي شتمنۍ او پيسې نا اهله او ناپوه انسانانو ته سپاري او باور پر کوي، نو دا کسان له بدبختانو څخه دي او تل به پکښي زيانمن او تاواني وي. څکه ناپوه او کم عقل انسان ته چي کله شتمنۍ او پيسې په لاس ورسي، نو بې ځايه يې مصرفوي او ځان له هلاکت سره مخ کوي. همدا ډول بدبخت انسان هيڅکله د دوستانو نصيحت په غوږ کي نه نيسي او عمل نه په کوي او له ناپوهۍ څخه د خپلوۍ او دوستۍ اړيکي له منځه وړي...

| | |
|---|---|
| عبرتی گیر از زمانه ای جوان | تا نباشی از شمار مدبران |
| پند واخله له زمانې څخه اې ځوانه! | تر نه سې له شمېر څخه د بدبختانو |
| هر کرا از عقل آگاهی بود | نزد او ادبار گمراهی بود |
| هر چا لره چي له عقل څخه خبر وي | په نزد د هغه بدبختي گمراهي وي |

**د لغاتو حل:** گمراهی (لار ورکي / بې لاري).

**لنډیز:** ... نو اې انسانه! له زمانې څخه پند او عبرت واخله، تر څو له بدبختانو څخه ونه شمېرل سې، څکه څوک چي لږ اندازه عقل هم ولري، نو د هغه په فکر او اند بدبختي گمراهي او بېلاري ده.

# در بیان آنکه چهار چیز را حقیر نباید شمرد

## په دې بیان کې چي څلور شیان باید سپک ونه گڼل سي

| | |
|---|---|
| چار چیز آمد بزرگ و معتبر | می نماید خرد لیکن در نظر |
| څلور شیان راغله لوی او معتبر | ښکارېږي کوچني مگر په فکر کي |
| زان یکی خصم ست و دیگر آتش ست | باز بیماری کزو دل ناخوش ست |
| له هغو څخه یو دښمن دئ او بل اور دئ | بیا ناروغي دي چي له دې څخه زړه ناخوښه دئ |
| چار می دانش که آراید ترا | این همه تا خرد ننماید ترا |
| څلورم عقل دئ چي ښایسته کوي تا | دا ټوله کوچني تر څو ښکاره نه سي تا لره |
| هر که در چشمش عدو باشد حقیر | از بلای او کند روزی نفیر |
| د هر چا چي په سترگو کي دښمن وي سپک | له بلا څخه د هغه به کوي یوه ورځ فریاد |

**د لغاتو حل:** حقیر (سپک / بې اهمیته / بې ارزښته)؛ معتبر (د اعتبار وړ / قدرمن / با ارزښته).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه څلورو هغو شیانو په اړه بیان کوي چي باید له پامه ونه

غورځول سي، فرمايي چي څلور شيان بايد تل په نظر کي ونيول سي او بې غوري ځني ونه سي، ځکه چي دا شيانو په نظر کوچني او بې ارزښته ښکاريږي لېکن په حقيقت کي ډېر ستر او د پام وړ شيان دي چي له هغو څخه يو دښمن دئ او دويم اور دئ، همدا ډول دريم ناروغي ده چي هيڅوک يې نه خوښوي. او څلورم يې علم او پوهه ده چي انسان په ښکلی کيږي. نو دا څلور شيان هيڅکله بايد کوچني او حقير ونه گڼې. ځکه څوک چي دښمن له پامه غورځوي، کمزوری يې گڼي او هيڅ يې په باک نه راوړي، نو يوه ورځ به خامخا له هغه څخه زيان او تاوان ويني...

| | |
|---|---|
| ذرهٔ آتش چو شد افروخته | بینی از وی عالمی را سوخته |
| يوه ذره اور چي سي بل | وبه وينې له هغه څخه دنيا سوځلې |
| علم گر اندک بود خوارش مدار | زانکه دارد علم قدر بی شمار |
| علم که څه هم لږ وي سپک يې مه لره | ځکه چي لري علم قدر بې حسابه |
| رنج اندک را بکن غم خوارگی | ور نه بینی عجز در بیچارگی |
| د ناروغۍ لږي وکړه غم خوردني | او که نه نو وبه وينې ناتواني په بېچاره‌گۍ کي |
| درد سر را گر نجوید کس علاج | خوف آن باشد که برگردد مزاج |
| درد د سر لره که چيري ونه لټوي يو څوک علاج | بېره د دې وي چي خراب سي مزاج |

**د لغاتو حل:** ذره (ډېره کوچنۍ توټه)؛ خوف (عربي لفظ دئ، يعني بېره / خطر / وهم).

**لنډيز:** ... همدا ډول د اور يوه کوچني بڅرکي ته که چيري پام ونه سي، نو ډېره زياته خرابي پېښولای سي آن توله کور سوځولای سي. همدا ډول علم او پوهه که څه هم لږ وي، نو سپک او بې ارزښته يې مه گڼه، ځکه چي علم ډېر زيات قدر او عزت لري. همدا رنگه ناروغي که څه هم ډېره لږه او کوچنۍ وي، خو بيا هم پر وخت يې بايد علاج او درملنه وکړې، که نه نو دا ناروغي به لويه سي او بيا به يې هيڅ درملنه نه کيږي. ځکه د سر د درد غوندي کوچنۍ ناروغي که څوک همداسي بې له درملني پرېږدي، نو د دې خطر او بېره ده چي له دې درد څخه يې دماغ او عصاب گډوډ او خراب سي...

باش ازقول مخالف پر حذر — پیش ازان کزپا درآئی ای پسر

اوسه له وینا څخه د دښمن ډک له بېري — مخکي تر دې چي تر پښو دي لاندي کړي اې هلکه!

آتش اندک توان کشتن بآب — وای آن ساعت که گیرد التهاب

اور لږ کېدای سي وژل په اوبو سره — افسوس هغه ساعت چي ونیسي لمبې

**د لغاتو حل:** مخالف (نا موافق / مقابل / دښمن)؛ التهاب (پاړسوب، مطلب زیاتېدل او لمبې کول دي).

**لنډیز:** ... نو بیداره اوسه او د دښمن خبري دي له پامه مه غورځوه، که نه نو یوه ورځ به قدرت ترلاسه کړي او تا به تر پښو لاندي کړي. همدا ډول تر خپله وسه پوري اور په اوبو سره وژنه، که څه هم یو بڅرکی یا یوه کوچنۍ سکروټه وي. ځکه هغه وخت بیا افسوس او پښېماني په درد نه خوري چي له همدې بڅرکي څخه لمبې پورته سي او ټوله کور دي در وسوځوي.

# در بیان مذمت خشم و غضب

## د قهر او غوسې د بد والي په بیان کي

ای پسر هر کس که دارد چارچیز — چار دیگر هم شود موجود نیز

اې هلکه! هر څوک چي لري څلور شیان — څلور نور هم کېږي موجود همداسي

عاقبت رسوائی آید ازلجاج — خشم را نکند پشیمانی علاج

آخر شرمیندګي راځي له جنګه — قهر لره نه کوي پښېماني علاج

بیگمان ازکبر خیزد دشمنی — حاصل آید خواری ازکاهل تنی

بې له شکه له کبر څخه خېږي دښمني — حاصل راځي ذلت له سستۍ څخه

چون لجوجی درمیان پیدا شود — بنده ازشومئی آن رسوا شود

کله چي جنجال په منځ کي پیدا سي — بنده له بدبختۍ څخه د هغه رسوا سي

**د لغاتو حل:** مذمت (بد والی / خرابي / شومتیا)؛ لجاج (جنگ / شخړه / جنجال).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د قهر او غوسې د بد والي او خرابیو په اړه بیان کوي، فرمایي چې هر څوک چې په ځان کې څلور شیان ولري، نو له همدې څلورو شیانو سره څلور شیان نور هم پیدا کیږي: لومړی دا چې له بې ځایه جنګ او جنجال څخه شرم او رسوایي پیدا کیږي. یعنې که څوک جنګ او جنجال کوي، نو آخر به یې شرمیندګي په برخه وي، او له بې ځایه قهر او غوسې څخه پښېماني رامنځ ته کیږي، لېکن دا پښېماني هیڅ ګټه او فائده نه کوي. همدا رنګه له تکبر او غرور څخه دښمني او عداوت را منځ ته کیږي. او همدا ډول له سستۍ او تنبلۍ څخه خواري ذلت پیدا کیږي. کله چې د خلګو په منځ بې ځایه شخړه او جنجال را منځ ته سي، نو انسان له خپلي بدبختۍ څخه رسوا او شرمنده سي...

| | |
|---|---|
| خشم خود را چون که راند جاهلی | جز پشیمانیش نبود حاصلی |
| قهر خپل چي چلوي یو ناپوهه | ماسوا له پښېمانۍ څخه نه وي حاصل |
| هر که گشت از کبر بالا گردنش | دوستان گردند آخر دشمنش |
| هر څوک چي سي له کبر څخه لوړ غاړه د ده | دوستان ګرځي آخر دښمنان د ده |
| کاهلی را هر که سازد پیشهٔ | آید از خواری بپایش تیشهٔ |
| سستي چي هر چاره جوړ سي خوی | راځي له ذلت څخه پر پښو د ده تېشه |
| خشم خود را گر فرو نخورد کسی | عاقبت بیند پشیمانی بسی |
| قهر خپل که چیري کنټرول نه کړي یو څوک | آخر به ووینی پښېماني ډېره |
| هر که او افتاده و تن پرور است | نیست آدم کمتر از گاؤ و خر است |
| هر څوک چي هغه لوېدلی او ځان پالونکی وي | نه دئ انسان، ډېر کم تر غوایي او خر دئ |

**د لغاتو حل:** کاهلی (لټي / سستي / تنبلي)؛ عقبت (انجام / پایله / پای)؛ تن پرور (ځان پالونکی / متکبر).

**لنډیز:** ... نو یو ناپوه او جاهل انسان چي هر وخت بې ځایه په قهر کیږي، هغه له پښېمانۍ پرته هیڅ په لاس نه سي راوړلای. همدا ډول څوک چي له کبر او لویي څخه غاړه لوړه - لوړه کوي، آخر یې توله

دوستان په دښمنانو بدلیږي. همدا ډول څوک چې لټي او تنبلي د ځان عادت جوړ کړي، نو آخر به خوار، ټیټ او ذلیل وګرځي. نو څوک چې خپل قهر او غوسه کنټرول نه کړي او زغم ونه لري، نو تل به پښېمانه وي. او څوک چې ځان پالونکی او مغروره وي، هغه انسان نه ګڼل کیږي، بلکې تر خره او غوایي هم په درجه او مرتبه کې ټیټ او کم دئ.

# در بیان بی ثباتی چهار چیز و پرهیز ازان

## د څلورو شیانو د بې ثباتۍ او له هغو څخه د ځان ساتنې په بیان کې

| | |
|---|---|
| چار چیز ای خواجه کم دارد بقا | گوش دار ای مؤمن نیکو لقا |
| څلور شیان اې صاحبه! نه لري بقا | غوږ ولره اې مومنه نېک مخه |
| جور سلطان را بقا کمتر بود | پس عتاب اصدقا کمتر بود |
| ظلم د باچا لره بقا ډېره لږ وي | بیا خوابدتیا د ملګرو ډېره لږ وي |
| دیگر آن مهری که بینی از زنان | بی بقا چون صحبت ناجنس دان |
| بل هغه محبت چې وینې یې له ښځو څخه | بې بقا لکه مجلس د نجسه وګڼه |
| با رعیت چون کند سلطان ستم | مر ورا باشد بقا در ملک کم |
| له عوامو سره چې کله کوي باچا ظلم | خاص ده لره وي بقا په ملک کې لږه |

**د لغاتو حل:** بی ثباتی (دوام نه لرل / ژر له منځه تلل / بې بقا)؛ پرهیز (ډډه / ځان ساتنه / لیرې ګرځېدل).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د څلورو هغو شیانو اړوند بحث کوي چې هیڅ ثبات او دوام نه لري، فرمایي چې څلور شیان هیڅ بقا او ثبات نه لري: لومړی د باچا ظلم او بې انصافي ده چې هیڅ وخت بقا او دوام نه کوي، دویم د ملګرو خوابدتیا ده چې تر لږ وخت وروسته له منځه وي او پخلا کیږي. درېیم د ښځو مینه او محبت دئ چې ډېر وخت نه پاته کیږي او څلورم د بې جنسو ملګریتوب او

مجلس دئ. یعني کله چي یو باچا پر خپل رعیت باندي ظلم کوي، نو لیري نه ده چي ژر تر ژره به يې باچاهي له منځه ولاړه سي...

| | |
|---|---|
| مر ترا از دوستان آید عتاب | کم بقا باشد چو خط بر روی آب |
| خاص تا لره له دوستانو څخه راځي خوابدتیا | لږ بقا وي په مثل د خط پر مخ د اوبو |
| گرچه باشد زن زمانی مهربان | چون کم آید بهره بگشاید زبان |
| که څه هم وي ښځه یو څه وخت مهربانه | کله چي لږه راسي حصه خلاصوي ژبه |
| چون بناجنسان نشیند آدمی | کمترک بیند ازیشان همدمی |
| کله چي له ناجنسانو سره کښېني انسان | ډېر لږ به ویني له هغوی څخه ملګریتوب |
| زاغ چون فارغ ز بوئ گل بود | نفرتش از صحبت بلبل بود |
| کارګه چي محروم له بوی څخه د ګل دئ | تېښته د ده له مجلس څخه د بلبل وي |

**د لغاتو حل:** عتاب (ترټنه / زهیرونه، مطلب يې خوابندي ده)؛ ناجنس (مختلف جنسه / هغه چي جنس يې سره بېل او جلا وي، لکه د لوړي او ټيټي رتبې کسان، یا لکه شتمن او غریب...).

**لنډيز:** ... همدا ډول کله چي ستا څخه کوم ملګری یا دوست خوابدی او خپه سي، نو دا خوابدتیا تر ډېره وخته دوام نه کوي، بلکي د اوبو پر مخ د خط په څېر ده چي ژر تر ژره بیرته له منځه ځي. همدا رنګه د ښځو مینه او محبت د څه وخت له پاره وي، خو کله چي د هغوی برخه کمه سي (په کوم څه کي تاواني سي) نو ژبه خلاصوي او له ځانه دي بېزاره کوي. همدا ډول له ناجنسانو سره ناسته ولاړه او ملګریتوب هم هیڅ بقا او دوام نه لري، څکه لکه څنګه چي کارګه (کارغه) د ګل له بوی څخه خوند نه اخلي او له دې نعمت څخه بې برخي دئ، له همدې امله له بلبل سره هیڅ کار نه لري، څکه چي د دوی دوو جنس سره بېل او جلا دئ...

| | |
|---|---|
| صحبت ناجنس جانکاهی بود | جمله را زین حال آگاهی بود |
| مجلس د ناجنس د روح کمول دي | ټولو لره له دې حال څخه خبرتیا ده |

| چون ترا ناجنس آید در نظر | ای پسر چون باد ازوی در گذر |
|---|---|
| کله چي تا له ناجنسه راسي په نظر کي | اې هلکه! په مثال د باد له هغه څخه تېرېږه |

**د لغاتو حل:** جانکاهی (د روح کمول، مطلب یې د عمر لنډول دي)؛ در گذر (تېرېدل / پرېښوول).

**لنډيز:** ... نو له ناجنس او مختلف الجنس سره ملګري د عمر کمول او لنډول دي او تول په دې خبره پوهېږي. نو کله چي دي کوم ناجنس په نظر درسي، نو لار ځني چپوه او ځني تېرېږه.

# در بیان آنکه چهار چیز از چهار چیز کمال می یابد

## په دې بیان کي چي څلور شیان له څلورو شیانو څخه کمال ترلاسه کوي

| چارچیز از چار دیگر شد تمام | چون شنیدن یاد میدار ای غلام |
|---|---|
| څلور شیان له څلورو نورو څخه سوه پوره | کله چي دي واورېده یاد یې ولره اې هلکه |
| دانش مرد از خرد گیرد کمال | از عمل دینت همی یابد جمال |
| پوهه د سړي له هوښیارۍ څخه نیسي پوره والی | له عمل څخه دین ستا همداسي پیدا کوي ښایست |
| دینت از پرهیز کامل می شود | نعمتت از شکر شامل می شود |
| دین ستا له پرهیز څخه پوره کېږي | نعمت ستا له شکر څخه شامل کېږي |
| هست دانش را کمالات از خرد | بی عمل را اهل دین کس نه شمرد |
| دي پوهي لره کمالات له هوښیارۍ څخه | بې عمله خاوند د دین څوک نه شمېري |

**د لغاتو حل:** جمال (ښکلا / ښایست)؛ شامل (داخل / یو ځای کېدل، مطلب یې ډېر والی دئ).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه په دې اړه بیان کوي چي څلور شیان له څلورو شیانو څخه کمال او بشپړتیا پیدا کوي، فرمایي چي څلور شیان له څلورو نورو شیانو څخه پوره کېږي، وایې وره او یاد یې وساته: لومړی علم او پوهه په عقل سره پوره کېږي؛ دین او ایمان په عمل کولو سره بشپړېږي. دینداري او سپېڅلتیا په تقوا او پرهېزګارۍ سره کمال ته رسېږي. او نعمت په شکر سره بشپړېږي او کمال

ته رسیږي. یعني پوهه په هوښیارۍ او عقل سره کمال پیدا کوي، که عقل نه وي، علم او پوهه ګټه نه لري، او څوک چي غوره او ښه اعمال نه ترسره کوي، هغه دینداره او پوره ایمانداره نه ګڼل کیږي...

شکر نعمت را کمالی می دهد | غافلان را گوشمالی می دهد
شکر نعمت لره پوره والی ورکوي | غافلانو لره غوږپیچنه ورکوي

شکر ناکردن زوال نعمت ست | بهرهٔ شاکر کمال نعمت ست
شکر نه کول زوال د نعمت دئ | برخه د شکر ګذاره پوره والی د نعمت دئ

علم را بی عقل نتوان کار بست | پیش بی عقلان نمی باید نشست
علم لره بې عقل نه سي کولای عمل | په مخ کي د بې عقلانو نه ښایي ناسته

بی خرد دانش وبال ست ای پسر | علم مرغ و عقل بال است ای پسر
بې هوښیارۍ پوهه وبال دئ اې هلکه | علم مرغه او عقل وزر دئ اې هلکه

هرکه علمی دارد و نبود بران | از طریق عقل باشد برکران
هر څوک چي علم لري او نه وي عمل | له لاري څخه د عقل به وي پر غاړه

**د لغاتو حل:** کمالی (بشپړتیا / پوره والی)؛ زوال (لیري والی / له منځه تلل / ختمېدل).

**لنډیز:** ... الهي نعمتونه په شکر اداء کولو سره پوره کیږي او نور هم زیاتیږي، څوک چي غافل او له شکر څخه ناخبره وي، هغوی له پوره نعمتونو څخه نه سي برخمن کېدلای. همدا ډول د شکر نه اداء کول نعمتونه کموي او له منځه یې وړي، پوره نعمتونه هغه چا ته رسیږي چي شکر اداء کوونکی وي. همدا ډول یو کم عقل او احمق انسان د علم څښتن نه سي جوړېدلای، که علم ترلاسه هم کړي، هیڅ ګټه نه سي ځني ترلاسه کولای، نو ښه دا ده چي له بې عقلانو سره ملګریتوب ونه کړل سي. ځکه چي له عقل پرته علم وبال او تکلیف دئ، ځکه چي علم د مرغه او عقل بې د وزرونو حیثیت لري چي مرغه له وزرونو پرته مرغه نه ګڼل کیږي. نو څوک بې عقل عالم هغه څوک دئ چي په خپل علم عمل نه کوي.

# در بیان آنکه باز گردانیدن آن محال است

## د هغه شیانو په بیان کي چي بیا راګرځېدل يې ناشوني دي

چارچیز است آنکه بعد از رفتنش
خلور شیان دي هغه چي وروسته له تللو څخه يې

از محالات است باز آوردنش
له ناممکنو څخه دي بېرته راوړل يې

چون حدیث رفت ناگه برزبان
کله چي خبره ولاړه سي ناڅاپه پر ژبه

یاکه تیری جست بیرون ازکمان
یا چي غشی ووزي دباندي له کمان څخه

بازچون آری حدیث گفته را
بیا څنګه راوړې خبره ویل سوې

کس نگرداند قضای رفته را
څوک نه راګرځوي فیصله تللې

بازکی گردد چوتیر انداختی
بیا کله راګرځي چي غشی وار کړې

همچنین عمری که ضائع ساختی
همداسي عمر چي بې ځایه تېر کړې

**د لغاتو حل:** محال (ناشونی / ناممکن / نه کېدونکی)؛ ضائع (بې ځایه / بې ګټي).

**لنډيز:** شیخ عطار رحمة الله علیه په دې باب کي د هغو شیانو په اړه بیان کوي چي که یو وار له لاسه ووزي او تر سره سي، بیا يې بیرته راګرځېدل.ناشوني او ناممکنه دي، فرمایي چي څلور شیان داسي دي چي تر تللو وروسته يې بیرته راتلل او راګرځېدل هیڅ امکان نه لري: یو دا چي کله یوه خبره له خولې څخه ووزي، د هغې بیرته را ګرځېدل ناشوني دي، دویم دا چي کله غشی له کمان ووزي، بیرته نه راګرځي. نو کړې خبره به بیرته څنګه راوګرځوې؟ درېیم دا چي کړې او عملي سوې پرېکړه هیڅکله نه راګرځي. څکه هیڅوک عملي سوي پرېکړه او فیصله نه سي راګرځولای. همدا ډول له کمان څخه وتلی او وار سوی غشی بیرته کله راګرځېدلای سي؟ څلورم دا چي ضائع سوی او بې ځایه تېر سوی عمر بیرته نه راګرځي.

هرکه بی اندیشه گفتارش بود
هر څوک چي بې فکره خبري د ده وي

پس ندامتهای بسیارش بود
وروسته پښېماني ډېري د ده وي

تا نگفتی می توانی گفتنش | چون بگفتی کی توان بنهفتنش

تر څو چې دې نه وي ویلي کولای سې ویل د هغه | کله چې یې وواېې کله کولای سې پټول د هغه

**د لغاتو حل:** اندیشه (اندېښنه / فکر)؛ ندامت (پښېماني)؛ بنهفتن (پټول / نهامول).

**لنډيز:** ... څوک چې خپلو خبرو ته پام نه کوي او له ځان سره یې نه سنجوي، نو تل به پښېمانه وي، خو هیڅ به نه سي ترلاسه کولای. تر څو چې دې خبره نه وي کړې، نو کولای سې چې ویې کړې، نو که دې له خولې را وایسته، نو بیا یې نه سې پټولای.

# در بیان غنیمت دانستن عمر

## د عمر د غنیمت ګڼلو په بیان کي

عمر را میدان غنیمت هر نفس | چون رود دیگر نیاید بازپس

عمر وګڼه غنیمت هره ساه | کله چې ولاړ سي نور نه راځي بیا وروسته

هیچکس از خود قضا را رد نکرد | هرکه راضی از قضا شد بد نکرد

هیچا له خپل خانه قضا رد نه کړه | هر څوک چې رضي له قضا څخه سو بد یې ونه کړه

هرکه میخواهد که باشد در امان | مهر می باید نهادن بر زبان

هر څوک چې غواړي چې وي په امان کي | مُهر ښایي اېښوول بر ژبه

می سزد گر عمر را داری عزیز | چون رود پیشش نخواهی دید نیز

غوره ده که چیري عمر ولرې عزتمن | کله چې ولاړ سي وړاندي به یې ونه وینې همداسي

**د لغاتو حل:** دانستن (پېژندل / پوهېدل، مطلب یې ګڼل یا بلل دي)؛ عمر (ژوند / وخت).

**لنډيز:** حضرت عطار رحمة الله علیه په دې باب کي دا بیان کوي چې عمر باید غنیمت وګڼل سي او ګټه څني واخیستل سي. فرمایي چې اې انسانه! د خپل قیمتي عمر هره ساه غنیمت وګڼه، ځکه دا هره ساه چې دې له بدنه وزي او هره شیبه چې درباندي تېرېږي، دا بیرته هیڅکله بیا نه درته راګرځي. ځکه چې

هیڅوک له ځانه ښخه الهي قضا او پرېکړه نه سي ردولای، نو ښه هغه دئ چي له همدې الهي قضا ښخه خوښ او راضي وي. هر څوک چي غواړي چي بې غمه او په امان کي واوسي، نو پر خپله ژبه دي د چوپتیا تاپه ووهه او تل چوپ اوسه. ښه دا ده چي خپل عمر دي با ارزښته او عزتمن وګڼې، ځکه کله چي درڅخه ولاړ سیو بیا هیڅکله بیرته نه راګرځي.

# در بیان خموشی و سخاوت

## د چوپتیا او سخاوت په بیان کي

| | |
|---|---|
| حاصل آید چار چیز از چار چیز | یادگیر این نکته از من ای عزیز |
| په لاس راځي څلور شیان له څلورو شیانو ښخه | یاد ونیسه دا نکته زما ښخه اې عزتمنه |
| خامشی را هر که سازد پیشهٔ | گردد ایمن نبودش اندیشهٔ |
| چوپ والی هر څوک چي جوړ کړي عادت | ګرځي بې غمه نه به یې دي په اندېښنه کي |
| گر سلامت بایدت خاموش باش | گشت ایمن هر که نیکی کرد فاش |
| که چیري سلامتي په کار وي ستا چوپ اوسه | سو بې غمه هر چا چي نېکي کړه ښېره |
| از سخاوت مرد یابد سروری | شکر نعمت را دهد افزون تری |
| له سخاوت ښخه سړی پیدا کوي سرداري | شکر د نعمت ورکوي زیاتوب زیات |

**د لغاتو حل:** حاصل (ترلاسه کېدل / لاس ته راتلل)؛ نکته (باریکي / دقیقه خبره).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کي د خاموشی یعني چوپوالي او سخاوت په اړه بیان کوي، فرمایي چي څلور شیان له څلورو شیانو ښخه په لاس راځي او زما دا خبره تل یاد ساته: لومړی دا چي څوک چوپوالی عادت وګرځوي، نو تل به بې غمه او بې اندېښنې وي. نو که چیري غواړې چي تل سلامت واوسې، نو ښه خوله واوسه.

| | |
|---|---|
| هر که او شد ساکت و خاموش گرد | از سلامت کسوتی بر دوش کرد |
| هر څوک چي هغه سو چوپ او چوپ والی یې وکړ | له سلامتی څخه یې کالي پر اوږو کړه |
| گر همی خواهی که باشی در امان | رو نکوئی کن تو با خلق جهان |
| که چیري همداسی غواړې چي اوسې په امان کي | څه! نېکي کوه ته له خلکو سره د دنیا |
| هر کرا عادت شود جود و کرم | در میان خلق گردد محترم |
| هر چا لره چي عادت سي سخا او کرم | په منځ کي د خلگو گرځي د احترام وړ |
| هر که کار نیک یا بد می کند | آن همه میدان که با خود می کند |
| هر څوک چي کار ښه همیشه کوي | دا ټوله پوه سه چي له ځان سره کوي |

**د لغاتو حل:** ساکت (پټه خوله / چوپ)؛ محترم (د قدر وړ / عزتمن).

**لنډیز:** ... نو څوک چي پټه خوله سي او چوپوالی غوره کړي، نو سلامت به پاته سي. که چیري ته غواړې چي تل سلامت او بې خطره واوسې، نو له ټولو خلگو سره نېکي او ښېگڼه کوه. څکه څوک چي په سخا او مهرباني سره عادت سي نو د خلگو په منځ کي د قدر وړ او معزز گرځي. دا څکه چي هر څوک چي یو ښه یا بد کار کوي، له خپل ځان سره یې کوي...

| | |
|---|---|
| ای برادر بندهٔ معبود باش | تا توانی با سخا و جود باش |
| اې وروره! بنده د خدای تعالی اوسه | تر څو کولای سې له سخا او جود سره اوسه |
| باش از بخل بخیلان پر حذر | تا نسوزد مر ترا نار سقر |
| اوسه له بخل څخه د بخیلانو ډک له وهمه | تر څو ونه سوځي خاص تا اور د دوږخ |

**د لغاتو حل:** معبود (چي عبادت یې کیږي، یعني خدای تعالی)؛ سخا، جود وکرم (دا درې سره الفاظ د سخاوت په معنی دي او سخي هغه چا ته ویل کیږي چي پر خپل ځان او شتمنیو باندي بخل نه کوي).

**لنډیز:** ... نو اې انسانه! د الله تعالی مخلص بنده جوړ سه او څومره چي دي وس وي، سخا او کرم کوه. او له بخل او بخیلانو څخه لیري اوسه، تر څو په آخیرت کي د دوږخ له اور څخه نجات پیدا کړې.

# در بیان چیزی که خواری آرد

## د هغو شیانو په بیان کې چې ذلت راوړي

| | |
|---|---|
| چار چیزت بر دهد از چار چیز | نشنود این نکته جز اهل تمیز |
| څلور شیان تا ته درکوي له څلورو شیانو څخه | نه اوري دا نکته ماسېوا له هوښیاره څخه |
| هر که زو صادر شود این چار کار | بیند او چار دگر بی اختیار |
| هرڅوک چې له هغه څخه صادرېږي دا څلور کاره |ویني هغه څلور نور بې اختیاره |
| چون سوال آورد گردد خوار مرد | ماند تنها هر که استخفاف کرد |
| کله چې فقر کوي ګرځي ذلیله سړی | پاتېږي یوازي هر څوک چې سپکوالی وکړي |
| هر که در پایان کاری ننگرد | عاقبت روزی پشیمانی خورد |
| هر څوک چې پایلي ته د یوه کار نه ګوري | آخر به یوه ورځ پښېماني وخوري |
| هر که نکند احتیاط کارها | بر دلش آخر نشیند بارها |
| هر څوک چې نه کوي احتیاط په کارونو کې | پر زړه د هغه آخر کښېني بارونه |

**د لغاتو حل:** اهل تمیز (د ښه او بد تر منځ توپیر کوونکی / عاقل / هوښیار)؛ استخفاف (سپک ګڼل).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کې د هغو شیانو په اړه بیان کوي چې انسان ته خواري او ذلت په برخه کوي، فرمايي چې څلور شیان تا ته څلور نور شیان درکوي او په دې خبره یوازي هغه څوک پوهېږي چې هوښیار او عقلمند وي، کوم څوک چې دا څلور کارونه کوي، نو هغه به څلور نور شیان هم بې له اختیاره ترلاسه کوي: لومړی دا چې سوال او فقر کول انسان ته ذلت او خواري په برخه کوي؛ دویم دا چې هر څوک چې نور خلګ سپک ګڼي یا خپله سپک – سپک کېږي، نو آخیر یوازي پاته کېږي او نور خلګ ځني لیري کېږي. درېیم دا چې که څوک د خپلو کارونو پایلي او انجام ته پام او فکر نه کوي، نو په آخیر کي به له پښېمانی سره مخ کېږي. او څلورم دا چې که څوک په خپلو چارو او کارونو

کې له احتیاط څخه کار نه اخلي، نو آخر به یې پر زړه باندې غمونه او تکلیفونه ډېر سي او له کارونو او ژوند څخه به یې زړه موړ سي.

## در بیان آنچه آدمی را شکست آرد

### د هغو شیانو په بیان کې چې انسان ته ماتې راوړي

| مصراع اول | مصراع دوم |
|---|---|
| آدمی را چار چیز آرد شکست | با تو گویم یاد گیرش حق پرست |
| انسان لره خلور شیان راوړي ماتوالی | تا ته وایم یاد یې ونیسه اې حق پرسته |
| دشمن بسیار و وام بیشمار | جرم بیحد و عیال پر قطار |
| دښمن ډېر او پور بې حسابه | گناه بې اندازې او عیال ډک قطار |
| وائی مسکینے که غرق وام شد | هر دمش از غصه خون آشام شد |
| افسوس دئ هغه غریب چې غرق په پور کې سي | هر گړی یې له غوسې څخه ویني څېښونکی سي |
| هر که را بسیار باشد دشمنش | خیره گردد هر دو چشم روشنش |
| هر چا لره چې ډېر وي دښمنان یې | خړې گرځي دواړې سترگې روښانه د ده |
| هر که را اطفال بسیارش بود | در زمانه زاریٔ کارش بود |
| هر چا لره چې ماشوان ډېر د ده وي | په زمانه کې به خرابي د کار د ده وي |

**لغاتو حل:** شکست (ماتې / ناهیلي / ناتواني)؛ حق پرست (حق لمانځونکی / حق پلوه / حق پال)؛ وام ض / پور / دَین)؛ آشام (څېښونکی / نوشوونکی).

**بوز:** په دې باب کې فرید الدین رحمة الله علیه د ځینو هغو شیانو یادونه کوي چې انسان له ماتې او بلې سره مخ کوي، فرمایي چې څلور شیان انسان ته ناهیلي په برخه کوي، وایې وره او یاد یې وساته: ې ډېر دښمنان؛ دویم ډېر او بې حسانه پور؛ درېیم بې اندازې گناهونه؛ او څلورم ډېر اولادونه. هغه او بېچاره انسان د زړه سوي دئ چې تر پورونو لاندې سي او هره شېبه د زړه ویني څېښي. همدا

ډول د چا چي دښمنان ډېر سي، د هغه له ډېري بېري او غمه څخه روښانه سترګي خړي او بې ديده ګرځي. همدا رنګه چي د کوم مسکين او بېچاره انسان چي اولادونه ډېر وي، نو په ژوند کي يې هيڅ کار پر مخ نه ځي او برکت نه پکښي پيدا کېږي...

# در بیان صفت زنان و صبیان

## د ښځو او ماشومانو د صفاتو په بيان کي

| | |
|---|---|
| چار چیز است از خطاها ای پسر | گوش دارش با تو گویم سر بسر |
| څلور شيان دي له غلطيو څخه اې هلکه! | غوږ ولره ورته و تا ته وايم پر له پسې |
| اول از زن داشتن چشم وفا | ساده دل را بس خطا باشد خطا |
| اول له ښځي څخه لرل امید د وفا | ساده زړي لره ډېره خطا وي خطا |
| ایمنی زابله خطای دیگرست | صحبت صبیان ازینها بدترست |
| بې غمي له بې عقله څخه خطا بله ده | مجلس د هلکانو له دې څخه بدتر دئ |
| چارمی زمکر دشمن ایمنی | کی کند دشمن بغیر از دشمنی |
| څلورم له فريب څخه د دښمن بې غمي | کله کوي دښمن بې له دښمنۍ څخه |

**د لغاتو حل:** خطا (غلطي / تېروتنه / ګناه)؛ سر بسر (پر له پسې / يو په بل پسي / په تفصيل سره).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د ښځو او کوچنيانو د صفاتو په اړه بيان کوي، فرمايي چي زه نصيحت درته کوم په ياد يې ولره چي څلور شيانو له لويو تېروتنو او غلطيو څخه دي: لومړی له ښځو څخه د وفا او ميني اميد لرل؛ د ساده سړي لويه تېروتنه ده. دويم له کم عقل او احمق انسان څخه ځان بې غمه او بې خطره ګڼل؛ دريم د ماشومانو او کشرانو مجلس او ناسته ولاړه. او څلورم د دښمن له چمبازۍ څخه بې غمه او ډاډمن اوسېدل. ځکه چي دښمن هيڅکله له خپلي دښمنۍ څخه لاس نه اخلي.

# در بیان عطاهائے حق تعالی

## د خدای تعالی د مهربانیو په بیان کي

| | |
|---|---|
| چارچیز ست از عطاهای کریم | باتو گویم یادگیرش ای فهیم |
| څلور شیان دي له مهربانیو څخه د کریم (خدای) | تا ته وایم یاد یې ونیسه اې هوښیاره! |
| فرض حق اول بجا آوردنست | والدین از خویش راضی کردنست |
| فرض د خدای اول پر ځای راوړل دي | مور او پلار له خانه څخه راضي کول دي |
| حکم دیگر چیست باشیطان جهاد | چارمی نیکی بخلق نامراد |
| حکم بل څه دئ؟ له شیطان سره جهاد | څلورم نېکي له خلګو عاجزو سره |

**حل:** عطا (ورکړه / مهرباني)؛ فهیم (فهم لرونکی / ځیرک)؛ والدین (زېږوونکي، مطلب مور او پلار).

**تشریح:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د الله تعالي ځیني مهرباني بیانوي، فرمایي چې څلور شیان د الله تعالی له مهربانیو څخه دي: لومړی د الله تعالی فرائض پر ځای کول؛ دویم مور او پلار خوښ او راضي ساتل. دریم له شیطان سره جګړه او مخالفت کول؛ څلورم له خلګو سره نېکي او ښېګنه کول.

# در بیان آنکه عمر زیاده کند

## د هغه شیانو په بیان کي چې عمر زیاتوي

| | |
|---|---|
| می فزاید عمر مردم چارچیز | این نصیحت بشنو ای جان عزیز |
| زیاتوي عمر د خلګو څلور شیانو | دا نصیحت واوره اې روحه عزتمنه |
| اول آوردن بگوش آواز خوش | وانگهی دیدن جمال ماه وش |
| اول اورېدل دي په غوږ آواز ښه | او بیا لیدل د جمال ښایسته |

سوم آمد ایمنی از مال وجان — می فزاید عمر مردم را ازان

دریم راغله بې غمي د مال او د روح — زیاتیږي عمر د خلګو له دې څخه

آنکه کارش برمراد دل بود — دربقا افزوئیش حاصل بود

هغه چي کار يې پر مراد د زړه وي — په ژوند کي به زیاتوالی د ده حاصل وي

**د لغاتو حل:** می فزاید (زیاتوي / ډېروي)؛ وانګهی (او په دغه وخت کي / ورپسې)؛ ماه وش (ښکلی).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د څلورو داسي شیانو په اړه بیان کوي چي د انسان په عمر کي زیاتوب راولي، فرمايي چي د انسان عمر په څلورو شیانو سره زیاتیږي: لومړی دا چي په غوږونو ښه او ښکلی آواز اوري؛ دويم دا چي ښکلو او ښایسته شیانو ته ګوري. دریم دا چي له ځان او مال څخه بې غمه وي، یعني ځان او مال ته يې کوم خطر نه وي متوجې؛ څلورم دا چي هر کار يې د زړه له خوښي سره سم مخ ته ځي. د دا ډول انسان په عمر کي زیاتوب راځي.

## در بیان آنکه عمر را بکاهد

### د هغو شیانو په بیان کي چي عمر کموي

عمر مردم را بکاهد پنج چیز — یاددارش چون شنیدی ای عزیز

عمر د خلګو کموي پنځه شیان — یاد يې ولره چي دي واورېده اې عزیزه

شد یکی زان پنج درپیری نیاز — پس غریبی وانګهی رنج دراز

سو یو له دغو پنځو څخه په سپین ږدتوب کي احتیاج — بیا غریبي او ورپسې مرض اوږد

هرکه او برمرده اندازد نظر — عمر او بیشک بکاهد ای پسر

هر څوک چي هغه پر مړي باندي غورځوي نظر — عمر د هغه بې له شکه کموي اې هلکه!

| پنجم آمد ترس وبیم ازدشمنان | عمر را اینها همی دارد زیان |
|---|---|
| پنځم راغله بېره او وهم له دښمنانو څخه | عمر لره دغه شيان همداسي لري تاوان |

**د لغاتو حل:** بکاهد (کموي / لږوي/ لنډوي)؛ نیاز (اړ / محتاج / ضرورتمن)؛ دراز (اوږد / دوام لرونکی).

**لنډيز:** په دې باب کي د هغه شيانو يادونه کيږي چي د انسان عمر کموي، يعني پنځه داسي شيان دي چي د انسان په عمر کي کموالی راولي چي له هغو څخه يې يو په بوډاتوب او سپين ږرتوب کي احتياج او بل ته اړ کېدل دي؛ دويمه غريبي او مسکيني ده؛ دريمه اوږده او ډېر وخت پاته کېدونکي ناروغي ده. څلورم دا چي څوک مړي ته ډېر گوري، نو له شره پرته يې عمر کمېږي. پنځم له دښمن څخه وهم او بېره ده، چي د انسان عمر په دې پنځو شيانو سره کمېږي...

| هرکه او ازدشمنان ترسان بود | کار او هر لحظه دیگرسان بود |
|---|---|
| هر څوک چي هغه له دښمنانو بېرېدونکی وي | کار د هغه هره شېبه بل ډول وي |

| ازخدا ترس ومترس ازدشمنان | کز همه دارد خدایت در امان |
|---|---|
| له خدای څخه وبېرېږه او مه بېرېږه له دښمنانو څخه | چي له ټولو څخه لري خدای تا په امان کي |

**د لغاتو حل:** ترسان (بېرېدونکی / وهم لرونکی)؛ هر لحظه (هر گړی / هره شېبه / هر ساعت).

**لنډيز:** ... نو کوم څوک چي له دښمن څخه په بېره او خطر کي وي، د هغه حال گړی په گړی بل ډول وي او هيڅ آرام نه لري. نو له خدای پاک څخه وبېرېږه له خلگو څخه مه بېرېږه، ځکه چي له خدای تعالی دي له هر شي څخه خوندي ستي.

# دربیان باعث زوال سلطنت

## د باچاهۍ د له منځه تللو د سبب په بيان کي

| چارچیز آمد زوال بادشاه | باتو می گویم ولی دارش نگاه |
|---|---|
| څلور شيان . راغله تباهي د باچا | وتا ته وايم ياد يې ولره په نظر کي |

| | |
|---|---|
| اول اندر مملکت جور امیر | دیگر آن غفلت که باشد در وزیر |
| اول په مملکت کي ظلم د امیر | بل هغه غفلت چي وي په وزیر کي |
| رنج بادشاه باشد خیانت در دبیر | بد بود گر قوتي یابد اسیر |
| تکلیف د باچا وي خیانت په منشي کي | بد وي که چیري خواک تر لاسه کي بندي |
| چون کند در ملک شه میری ستم | بادشه را زین سبب باشد الم |
| کله چي کوي په ملک کي د باچا امیر ظلم | باچا لره له دې سببه وي درد |

**د لغاتو حل:** باعث (هڅوونکی / لامل / سبب / وجه)؛ زوال (له منځه تلل / هلاکېدل / ختمېدل).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د ځینو داسي شیانو یادونه کوي چي د باچاهۍ د له منځه تللو باعث او لامل جوړېږي، فرمایي چي څلور شیان د باچاهۍ د ختمېدلو لاملونه دي: لومړی په هیواد کي د امیر او واکمن ظلم او بې انصافي؛ دویم د وزیر غفلت او بط پروایي. درېیم د منشي یا میرزا خیانت، چي دا د باچا له پاره ډېر ستر خطر دئ؛ او څلورم دا چي بیدیان ځواک او قوت ترلاسه کړي. یعني کله چي په هیواد او وطن کي یو امیر ظلم کوي، نو دا د باچا له پاره درد او خطر دئ...

| | |
|---|---|
| چون بود غافل وزیر بی خبر | ملک شه از وی بود زیر و زبر |
| کله چي وي غافل وزیر بې خبره | ملک د باچا له ده څخه وي خراب تراب |
| گر خلل در کاتب دیوان بود | عاقبت رنج دل سلطان بود |
| که چیري گډوډی په لیکوال کي د دېوان وي | آخر به تکلیف د زړه د باچا وي |
| گر اسیران را شود قوت پدید | در ولایت فتنه ها گردد جدید |
| که چیري بندیانو لره سي خواک پیدا | په وطن کي فتنې وگرځي نوي |
| چون صلاحت در وجود شه بود | دست میران از ستم کوته بود |
| کله چي ورتیا په وجود کي د باچا وي | لاس د امیرانو له ظلم څخه لنډ وي |

**د لغاتو حل:** وزیر (هغه چي تر باچا یې رتبه ټیټه وي، خو تر نورو ټولو لوړ وي او د سیمي ټولي چاري سمبالوي)؛ کاتب (لیکونکی / لیکوال، مطلب یې میرزا یا منشي دئ چي د باچا بیانونه او فرمانونه لیکي).

**لنډیز:** ... کله چي وزیر غافل او بې باکه وي، نو د باچا باچاهي به د ده له لاسه له منځه ځي. همدا ډول که چیري منشي او میرزا خاین وي، دا هم د باچاهی د له منځه تللو ستر لامل ګڼل کیږي. همدا رنګه که چیري بندیان او قیدیان څواک او قوت ترلاسه کړي، نو د باچا پر ضد را پاڅیږي او باچاهي یې ختموي.

| | |
|---|---|
| گر نباشد واقف ودانا وزیر | بادشاه را زو بود رنج کثیر |
| که چیري نه وي پوه او هوښیار وزیر | باچا لره له ده څخه وي تکلیف ډېر |
| گر ندارد شه سیاست رابکار | ملک ویران گردد از هر نابکار |
| که چیري نه لري باچا سیاست په کار | وطن خراب ګرځي له هر نا په کاره څخه |

**د لغاتو حل:** واقف (باخبره / پوه)؛ کثیر (عربي لفظ دئ، یعني ډېر)؛ ملک (هیواد / وطن / مملکت).

**لنډیز:** ... که چیري وزیر ناپوه او کم عقل وي، نو دا د باچا باچاهي او واکمني له خطر سره مخ کوي. همدا ډول که چیري باچا سیاست په کار وا نه چوي، نو د هر لنډغر له لاسه به یې باچاهي او واکمني په خطر کي وي.

# در بیان آنکه آبرو را نریزد

## د هغه شیانو په بیان کي چي عزت نه تویوي

| | |
|---|---|
| دور باش از پنج خصلت ای پسر | تا نریزد آبرویت در نظر |
| لیري اوسه له پنځو شیانو څخه اې هلکه! | ترڅو توی نه سي عزت ستا په نظر کي |
| اولا کم گوی با مردم دروغ | زانکه گردی از دروغت بی فروغ |
| اول مه وایه و خلګو ته درواغ | څکه چي سې له درواغو څخه دي بد رنګه |

| | |
|---|---|
| هرکه استیزه کند با مهتران | آبروی خود بریزد بی گمان |
| هر څوک چې جنګ کوي له سردارانو سره | عزت خپل تویوي بې له شکه |
| پیش مردم هرکه را نبود ادب | گر بریزد آبرو نبود عجب |
| په مخ کې د خلګو هر چا لره چې نه وي ادب | که چیرې توی سي عزت نه به وي عجبه |

**د لغاتو حل:** آبرو (د مخ اوبه، مطلب له دې څخه عزت او وقار دئ)؛ استېزه (جنګ / مخالفت).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د هغو شیانو یادونه کوي چې د انسان عزت خوندي ساتي او له منځه یې نه وړي، فرمایي چې له پنځو عادتو او خویونو څخه لیرې اوسه، تر څو عزت او وقار دې پر خپل ځای او خوندي پاته وي: لومړی دا چې خلګو دروغ مه وایه، ځکه چې د دروغو په ویلو سره انسان بې عزته کیږي. همدا رنګه له غټو او لویو خلګو سره جنګ او مخالفت مه کوه. ځکه څوک چې له داسې خلګو سره مخالفت کوي، نو په لوی لاس خپل ځان بې عزته کوي. همدا ډول د خلګو په مخ کې با ادبه اوسه، ځکه څوک چې د خلګو په وړاندې بې ادبه وي، نو پخپله به د ځان عزته له منځه یوسي...

| | |
|---|---|
| از سبکساران مباش ای نیک خوی | کز سبکساری بریزد آبروی |
| له سپکو خلګو څخه مه اوسه اې نېک خویه | ځکه چې له سپکوالي څخه تویېږي عزت |
| ای پسر با مهتران کمتر ستیز | وز حماقت آبروئ خود مریز |
| اې هلکه! له سردارانو سره مه کوه جګړه | او له حماقت څخه عزت خپل مه تویوه |
| گر بعالم آبرو می بایدت | دائمًا خُلق نِکو می بایدت |
| که چیرې په عالَم کې عزت . په کار وي تا ته | همېشه اخلاق ښه ښایي تا ته |
| هرکه آهنگ سبکساری کند | زابروئ خویش بیزاری کند |
| هر څوک چې قصد د سپکوالي کوي | له عزت څخه خپل بېزاري کوي |

**د لغاتو حل:** سبکساران (سپک او کوچنۍ ډېره خلګ)؛ مهتران (سرداران / واکمن خلګ).

**لنډيز:** ... بل دا چي له سپکوالي او سپکوونکو خلگو څخه ليري اوسه، ځکه چي په سپکوالي سره د انسان ابرو او عزت له منځه ځي. نو اې انسانه! له لويو او واک لرونکو خلگو سره هيڅ وخت شخړه او جگړه مه کوه او په کم عقلي سره خپل عزت مه تويوه. که چيري غواړې چي تل با عزته او قدرمن واوسې، نو همېشه له خلگو سره په ښه اخلاق چلند کوه. څوک چي سپکوالى او سپکاوى کوي، نو په خپل لاس سره خپل عزت تر پښو لاندي کوي...

| | |
|---|---|
| جز حديث راست با مردم مگوی | تا نگردد آبرويت آب جوی |
| ماسپوا له خبرو رښتيا څخه وخلگو ته مه وايه | ترخوونه گرځي عزت ستا اوبه ولې |
| از خلاف وازخيانت باش دور | تا بود پيوسته در روی تو نور |
| له خلافه او له خيانت څخه اوسه ليري | تر څو وي همېشه په مخ کي ستا رڼا |
| گر همی خواهی که گوئيندت نکو | ای برادر هيچ کس را بدنگو |
| که چيري داسي غواړې چي خلگ درته ووايي ښه | اې وروره! هيچا لره بد مه وايه |
| تا نباشی در جهان اندوه گين | از حسد در روزگار کس مبين |
| تر څو نه سې په جهان کي اندېښمن | له حسد څخه په زمانه کي هيچا ته مه گوره |

**د لغاتو حل:** پيوسته (تل / همېشه / پر له پسې)؛ نور (رڼا / روښنايي / ځلا)؛ حسد (بغض / کينه).

**لنډيز:** ... هيڅکله درواغ مه وايه، تر څو چي تل باعزته او قدرمن واوسې، له درواغو او خيانت څخه ليري اوسه، تر څو مخ دي همېشه منور او ځلانده وي. که غواړې چي په خلگو کي په ښه والي مشهور سې، نو هيچا ته بد مه وايه. همدا ډول که غواړې چي په دنيا کي ادېښمن او فکرمن ونه اوسې، نو له هيچا سره حسد او کينه مه کوه.

# در بیان آنکه آبرو بیفزاید

## د هغه شیانو په بیان کې چې عزت زیاتوي

| | |
|---|---|
| می فزاید آبرو از پنج چیز | با تو گویم بشنو ای اهل تمیز |
| زیاتیږي عزت له پنځو شیانو څخه | تا ته وایم وایې وره اې هوښیاره |
| در سخاوت کوش گرداری غنا | تا فزاید آبرویت از سخا |
| په سخاوت کې کوښښ کوه که چیرې لرې شتمني | تر څو زیات سي عزت ستا له سخا څخه |
| بردباری ووفاداری گزین | زانکه آب روی افزاید ازین |
| زغم او وفاداري غوره کړه | ځکه چې عزت زیاتیږي له دې څخه |
| هر که او بر خلق بخشاید همی | بیشک آب روی آفزاید همی |
| هر څوک چې هغه پر خلگو بخښني کوي داسي | بې له شکه عزت زیاتیږي همداسي |

**د لغاتو حل:** اهل (د هوښ خاوند / عاقل)؛ گزین (غوره کول / خپلول / په ځان کي راوستل).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د هغو شیانو یادونه کوي چي د انسان عزت زیاتوي، فرمایي چي د انسان عزت په پنځو شیانو سره زیاتیږي: یو دا چي په سخاوت او کرم کي هڅه او کوښښ وکړې، په دې سره به دي عزت او وقار نور هم زیات سي. بل دا چي زغم او وفاداري غوره کړه، ځکه په دې سره هم په عزت کي زیاتوب راځي. همدا ډول څوک چي خلگو بخښنه کوي، له شک پرته چي په عزت او وقار کي یې زیاتوب راځي...

| | |
|---|---|
| چون بکار خویش حاضر بودهٔ | آبروئ خویش را افزودهٔ |
| کله چې په کار خپل حاضر یې | عزت خپل دي زیات کړی دئ |

از سخاوت آبرو افزون شود | وز بخیلی بی‌خرد ملعون شود

له سخاوت څخه عزت زیاتیږي | او له بخیلی څخه ناپوه معلون کیږي

هر که را بر خلق بخشایش بود | آبروی او در افزایش بود

هر چا لره چې پر خلګو باندې رحم وي | عزت د هغه په زیاتوب کې وي

باش دائم بردبار و باوفا | تا بروئ خویش بینی صد ضیا

اوسه همېش زغمونکی او وفاداره | ترڅو پر مخ خپل وویني سل څلاوې

**د لغاتو حل:** ملعون (لعنتي / ترټل سوی)؛ بردبار (زغمونکی / زغم لرونکی)؛ ضیا (ځلا / روښنایي).

**لنډیز:** ... کله چې پر خپل کار باندي حاضر یې، نو خپل عزت دي زیاتوې. همدا ډول له سخاوت څخه د انسان عزت زیاتیږي او له بخیلی څخه بې عقل انسان د کرکي او نفرت وړ ګرځي. هر څوک چې خلګو ورکړه کوي او هر څه بخښي، نو په خپل لاس خپل عزت زیاتوي...

تا بماند رازت از دشمن نهان | سِر خود با دوستان کمتر رسان

ترڅو پاته سي راز ستا له دښمن څخه پټ | راز خپل و دوستانو ته مه رسوه

تا نگردی پیش مردم شرمسار | آنچه خود ننهاده باشی بر مدار

ترڅو نه ګرځې په مخ کې د خلګو شرمېنده | نوهغه څه چې خپله دي نه وي اېښې مه یې پورته کوه

ای برادر پردهٔ مردم مدر | تا ندزد پرده ات شخصی دگر

اې وروره! پرده د خلګو مخ خیره | ترڅو خیري نه کړي پرده ستا بل څوک

با هوائ دل مکن زنهار کار | تا نیارد پس پشیمانیت بار

په خواهشاتو سره د زړه مه کوه خامخا کار | ترڅو رانه وړي وروسته پښېماني ستا نتیجه

**د لغاتو حل:** نهان (پټ / خوندي)؛ کمتر (ډېر لږ، دلته د نه په معنی دی؛ یعني مه یې رسوه).

**لنډیز:** ... که غواړې چې راز او سِر دې له دښمنانو څخه پټ پاته سي، نو خپلو دوستانو نه یې هم مه

ښکاره کوه. همدا ډول که غواړې چې د خلګو په مخ کې شرمینده نه سې، نو کوم څه چې دې خپل نه وي ایښي، هغه مه پورته کوه. همدا ډول هیڅکله د چا عیب مه ښکاره کوه، تر څو بل ستا عیب ښکاره نه کړي. همدا ډول هیڅکله پر خپل سر او د خپل زړه په خوښه کارونه مه کوه، که نه نو آخیر به پښېماني کوې، خو کومه ګټه به نه کوي...

| | |
|---|---|
| تا زبانت باشد ای خواجه دراز | دست کوته دار وهر جانب متاز |
| تر څو ژبه ستا وي اې صاحبه! اوږده | لاس لنډ ولره او هر خوا ته مه ځغله |
| قدر مردم را شناس ای محترم | تا شناسد دیگری قدر تو هم |
| قدر د خلګو وپېژنه اې ښاغلې | ترخو وپېژندي نور قدر ستا همداسي |
| هر که را قدری نباشد در جهان | زنده مشمارش که هست از مردگان |
| هر چا لره چې قدر نه وي په جهان کې | ژوندی یې مه شمېره څکه چې دئ له مړو څخه |
| از قناعت هر که را نبود نشان | کی توانگر سازدش مال جهان |
| له قناعت څخه چې هر چا لره نه وي نښه | کله به شتمن جوړ کړي دی مال د دنیا |

**د لغاتو حل:** خواجه (ښاغلی / محترم / صاحب)؛ مردگان (مړي / مړه سوي / له ژونده بې برخې).

**لنډیز:** ... که غواړې چې ژبه خلاصه او روانه وي، نو لاس دې په کنټرول کې ولره او هرې خوا ته یې مه غورځوه. د خلګو قدر او احترام وپېژنه تر څو نور خلګ هم ستا په قدر او درناوي وپوهیږي. څکه څوک چې په دنیا کې قدر او درناوی ونه لري، هغه په ژوندینو کې نه بلکې په مړو کې شېرل کیږي. همدا ډول څوک چې قناعت نه لري، هغه د دنیا په شتمنیو سره نه سي شتمن کېدلای...

| | |
|---|---|
| بر عدوی خویش چون یابی ظفر | عفو پیش آرد زجرمش درگذر |
| پر دښمن خپل چې کله پیدا کړې بریا | عفو مخ کې راوړه تر ګناه یې ور تېر سه |

دائما می باش از حق ترس گار | نیز با از رحمتش امیدوار

همېشه اوسه له خدای څخه بېره لرونکی | همداسي له رحمت څخه د هغه امیدواره

باتواضع باش وخوکن باادب | صحبت پرهیزگاران می طلب

له عاجزۍ سره اوسه او عادت کړه با ادبي | مجلس د پرهېزګارانو طلب کړه

بردباری جوی وبی آزار باش | تاکه گردد درهنر نام تو فاش

زغم لټوه او بې آزاره اوسه | تر څوچي وګرځي په هنر کي نوم ستا خبور

**د لغاتو حل:** ظفر (کامیابي / بریا)؛ ترس گار (بېرېدونکی / وهم لرونکی).

**لنډيز:** ... کله چې پر دښمن باندي بری پيدا کړې او لاس دي پر بر سي، نو تر جرم يې ور تېر سه او بخښنه ورته وکړه. همدا ډول تل له الله تعالی څخه په خوف او ډار کي اوسه او همداسي يې له رحمت او فضل څخه امید واره او هيلمن اوسه. تل عاجز او خاکساره اوسه او ادب دي خوی او عادت جوړ کړه او تل له نېکو او سپېڅلو کسانو سره ناسته ولاړه کوه. زغم ولره او هيڅوک مه آزاروه، تر څو چي په دنيا کي ښه نوم او شوکت سره مشهوره سې...

صبر وعلم وحلم تریاق دلند | حرص وبغض وکینه زهر قاتلند

صبر او علم او زغم تارياق د زړه دي | حرص او بغض او حسد زهر وژونکي دي

همچو تریاقند دانایان دهر | قاتلند ای خواجه نادانان چوزهر

په مثال د تارياقو دي پوهان د زمانې | وژونکي دي اې صاحبه ناپوهان لکه زهر

مردم ازتریاق می یابد نجات | خود کسی اززهرکی یابد حیات

خلګ له تارياقو څخه ترلاسه کوي خلاصون | په خپله يوڅوک له زهو څخه کله ترلاسه کوي ژوند

فخرجمله عملها نان دادن است | در بروی دوستان بکشادن است

وياړ د ټولو عملونو ډوډۍ وركول دي | دروازه پر مخ د دوستانو خلاصول دي

| گرچه دانا باشی واهل هنر | خویش را کمتر زِهر نادان شمر |
|---|---|
| که څه هم پوه اوسې او خاوند د هنر | ځان دي ډېر کم تر زهرو ناپوه شمېره |

**د لغاتو حل:** حلم (عربي لفظ دئ، يعني زغم برداشت)؛ حرص (سرابښتوب / په لږ څه نه قانع کېدل)؛ ترياق (ترياک / يو ډول نبات دئ چې شيده کوي او له دې شيدې څخه يې ډېره گټه اخيستل کيږي).

**لنډيز:** ... صبر، زغم او پوهه د زړه درمل او دارو دي، خو بل خوا بيا حرص، حسد او بغض وژونکي زهر دي. همدا ډول د زمان عالمان او پوهان د ترياکو (درملو) په څېر دي، خو بل خوا بيا ناپوهان او جاهلان د زهرو په څېر وژونکي دي. خلگ په ترياکو سره له ډول - ډول ناروغيو څخه خلاصيږي، له زهرو څخه نو کله يو څوک ژوندی پاته کېدلای سي. نو د ټولو علمونو وياړ او فخر خلگو ته خواړه او ډوډۍ ورکول او د دوستانو په مخ دروازه خلاصه لرل دي. البته که څه هم د علم او پوهې څښتن او با هنره يې، خو بيا هم ځان تر نورو کم او ټيټ شمېره.

# در بيان علامت نادان

## د ناپوه د علامې په بيان کي

| شد دو خصلت مرد نادان را نشان | صحبت صبیان ورغبت با زنان |
|---|---|
| سوه دوه خويونه سرې نا پوه لره علامه | مجلس د هلکانو او مينه له ښځو سره |

**د لغاتو حل:** نادان (ناپوه / جاهل / کم عقل)؛ صبيان (ماشومان / هلکان / کوچنيان).

**لنډيز:** په دې لنډ باب کي مصنف رحمة الله عليه د جاهل او ناپوه انسان دوې نښې او علامې بيانوي، فرمايي چي په هر چا کي چي دا دوې نښې موجودي وي، نو هغه ناپوه او نادان دئ: يو دا چي له کشرانو او کوچنيانو سره مجلس او ناسته ولاړه کوي او دويم دا چي له ښځو سره مينه او محبت ساتي.

# در بیان صفت زندگانی

## د ژوندانه د صفت په بیان کي

| | |
|---|---|
| ناخوشی در زندگانی ای ولید | مردرا از خوئی بد گردد پدید |
| ناخوښي په ژوندانه کي اې دوسته | سړی لره عادت بد څخه گرځي ښکاره |
| آنکه نبود مردرا فعل نکو | مرده میدانش که نبود زنده او |
| هغه چي نه وي سړي لره کار ښه | مړی یې وبوله خکه نه وي ژوندی هغه |
| هرکه گوید عیب تو اندر حضور | می نماید راهت از ظلمت بنور |
| هر څوک . چي وايي عيب ستا په حضور کي | ښکاره کوي لاره ستا له تاريکۍ څخه په رڼا سره |
| مرترا هرکس که باشد رهنمای | شکر او می باید آوردن بجای |
| خا تا لره هر څوک چي وي لارښوونکی | شکر د هغه ښايي راوړل پر ځای |

**د لغاتو حل:** زندگانی (ژوند / ورځنۍ چارې)؛ خوئ (عادت / خصلت)؛ عیب (نیمگړتیا / نقصان).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د ژوندانه او ورځنيو چارو په اړه بيان کوي، فرمايي چې د ژوندانه او ناخوښي او ناراضي له بد عادت څخه را منځ ته کيږي. څوک چي ښه خوی او عادت نه لري او ناکاره وي، نو هغه د ژوندي مړي په څېر دئ. څوک چي په خواخوږۍ سره ستا عيب او نيمگړتيا درته ښيي، نو داسي وگڼه چي هغه له تاريکيو څخه رڼا ته راباسي. څوک چي تا ته لارښوونه کوي او سمه لار درته ښيي، نو پر تا لازمه ده چي د هغه شکر به اداء کوې او مننه به ځني کوې...

| | |
|---|---|
| مر خردمندان عالم را شناس | خُلق نیکو شرم ونیکوتر لباس |
| خاص هوښياران د دنيا وپېژنه | خوی ښه شرم او ډېر ښه کالي دي |

| | |
|---|---|
| حال خود را از دو کس پنهان مدار | از طبیب حاذق و از یار غار |
| حال خپل له دوو کسانو څخه پټه مه لره | له طبیب کامل څخه او له ملګري څخه د غار |
| تا صواب کار بینی سربسر | بر مراد خود مکن کار ای پسر |
| ترڅو ښه د کار ووینې پر له پسې | نو پر مراد خپل مه کوه کار اې هلکه! |
| تا توانی با زنان صحبت مجوی | راز خود را نیز با ایشان مگوی |
| تر څو کولای سې له ښځو سره مجلس مه لټوه | راز خپل همداسي و هغوی ته مه وایه |

**د لغاتو حل:** خردمندان (عقلمندان / هوښیاران)؛ خُلق (اخلاق / خوی)؛ لباس (جامه / کالي).

**لنډيز:** ... د دنیا هوښیاران او پوهان وپېژنه، ښه اخلاق شرم او ډېره ښه جامه ده. خپل حال له دوو کسانو څخه هیڅ وخت مه پټوه: یو له هوښیار ډاکټر څخه او دویم له نیژدې ملګري څخه. که غواړې چي کارونه دي په سمه توګه پر مخ ولاړ سي، نو هیڅکله پر خپل سر کار مه کوه. تر څو چي وس دي کار کوي له ښځو سره بې ځایه مجلس او ناسته ولاړه مه کوه او هیڅ خپل راز هغوی ته مه بیانوه...

| | |
|---|---|
| آنچه اندر شرع باشد ناپسند | گرد او هرگز مگرد ای هوشمند |
| هغه څه چي په شرعت کي وي ناخوښه | پر شاوخوا د هغه هیڅکله مه ګرځه اې هوښیاره |
| هرچه را کردست حق بر تو حرام | دور باش از وی که باشی نیک نام |
| هر څه چي کړي خدای پر تا باندي حرام | لیري اوسه له هغه څخه چي سې نېک نومی |
| چون که روزی بر تو بکشاید خدای | دل کشاده دار و تنگی کم نمای |
| څنګه چي روزي پر تا باندي پرانیزي خدای | زړه خلاص ولره او تنګي مه ښکاره کوه |
| تازه روی و خوش سخن باش ای اخی | تا بود نام تو در عالم سخی |
| تازه مخی او خوږ کلامی اوسه اې وروره! | تر څو وي نوم ستا په عالم کي سخي |

**د لغاتو حل:** نا پسند (نا خوښه / ناوړه / بد)؛ حرام (نا روا / ممنوع)؛ کشاده (خلاص / پرانیستی / پراخ).

**لنډيز:** ... کوم څه چي په شريعت کي ناسم او ناخوښه وي، نو هغه نيژدې کېږه لا مه. څه چي الله تعالی درباندي حرام کړي دي او ته يې ځني منع کړی يې، نو له هغه څخه ليري اوسه. لکه څنګه چي الله تعالی درته پراخ رزق درکوي، نو ته هم پر مخلوقاتو باندي زړه او سينه مه تنګوه. که غواړې چي په دنيا کي په سخاوت سره مشهور سې، نو تل ورين تندی لره او له خلګو سره په نرمی خبري کوه...

| | |
|---|---|
| بر مخور اندوه مرگ ای بو الهوس | چون که وقت آید نگردد پیش وپس |
| مه خوره اندېښنه د مرګ اې بو الهوسه | کله چي وخت راسي نه ګرځي مخ ته او شا ته |
| دل زِغلّ وغش همیشه پاک دار | تا توانی کینه در سینه مدار |
| زړه له خيرو او ککړتيا څخه همېشه پاک ولره | تر څو چي کولای سې حسد په سينه کي مه لره |
| تکیه کم کن خواجه برکردار خویش | دل بنه بر رحمت جبار خویش |
| تکيه مه کوه صاحبه پر کار خپل | زړه کښېږده پر رحمت د خدای خپل |
| بهترین چیزها خلق نکو است | خَلق خُلق نیک را دارند دوست |
| ډېر ښه د شيانو اخلاق ښه دي | خلګ اخلاق ښه لري خوښ |

**د لغاتو حل:** بو الهوس (حريص / سرابښ)؛ غل وغش (هغه کچره او خيري دي چي له زرو سره ګډې وي او د هغو ارزښت يې کم کړی وي)؛ جبار (برلاسی / غالب، مطلب خدای تعالی).

**لنډيز:** ... د مرګ په فکر او اندېښنه کي مه غمجن کېږه، ځکه چي خامخا راځي او کله چي راسي، نو بيا نه مخ ته کيږي او نه شا ته کيږي. زړه دي له چټليو او خيرو (له غير الله مينو او محبتونو او ناوړو صفتونو) څخه پاک او سپېځلی ولره، تر څو چي دي په وس پوره وي له چا سره حسد او کينه مه کوه. همدا ډول پر خپل کار باندي تکيه او اعتماد مه کوه، بلکي زړه دي د الله تعالی په فضل او رحمت باندي وتړه. په دنيا کي تر ټولو ښه شی غوره اخلاق دي چي د دنيا ټول خلګ يې خوښوي...

| | |
|---|---|
| رو فروتر باش دائم ای خلف | کین بود آرایش اهل سلف |
| څه عاجزه اوسه همېشه اې زويه | چي دا وو سينګار د پخوانيو خلګو |

| | |
|---|---|
| آنکه باشد درکف شهوت اسیر | گرچه آزادست اورا بنده گیر |
| هغه چي وي په لاس کي د شهوت بندي | که څه هم آزاد دئ هغه غلام ونیسه (وگڼه) |
| گرتو بینی ناکسی را دستگاه | حاجت خودرا ازو هرگز مخواه |
| که چیري ته ووینې د یوه نا اهله کس قدرت | اړتیا خپله له هغه شخه هیڅکله مه غواړه |
| بر در ناکس قدم هرگز مبر | ور به بینی هم مپرس ازوی خبر |
| پر دروازه د نا اهله پښه هیڅکله مه وړه | او که یې ووینې هم مه پوښته له ده شخه حال |
| تا توانی کار ابله را مساز | کار فرمایش ولی کمتر نواز |
| تر څو کولای سې کار د ناپوه مه جوړوه | کار ور ته فرمایه لېکن مه یې نازوه |

**د لغاتو حل:** خلف (تر شا پاته کس / هغه چي د لومړي کس ځای ډکوي، دلته مراد زوی دئ)؛ سلف (پخوا تېر سوي سپېځلي خلگ)؛ کف (ورغوی، مراد لاس دئ)؛ ناکس (نا اهله / بې صلاحیته).

**لنډیز:** ... تل عاجز او خاکاره اوسه ځکه چي همدا عاجزي د پخوانیو سپېځلو اشخاصو خوی او عادت وو. څوک چي په خپلو نفساني خواهشاتو او شهواتو کي راگیر وي، هغه که څه هم آزاد وي، خو آزاد او خپلواک نه گڼل کیږي. که چیري یو نا اهله کس ووینې چي قدرتمن دئ، نو له هغه څخه د خپلې اړتیا د پوره کولو غوښتنه مه کوه. هیڅکله د یوه بد او ناوړه انسان کور یا استوگنځای ته مه ورځوه، بلکي که یې چیري په لاره کي ووینې هم یې د حال پوښتنه مه کوه. تر څو چي دي په وسه پوره دي د یوه احمق او کم عقل انسان کار مه ور جوړوه، د کار ورته وایه لېکن نازوه یې مه.

## در بیان احتراز دشمنان

### له دښمنانو څخه د ځان ساتني بیان

| | |
|---|---|
| از دو کس پرهیز کن ای هوشیار | تا نه بینی بی کسی از روزگار |
| له دوو کسانو څخه پرهیز وکړه اې هوښیاره! | تر څو ونه وینې بې خرابي له زمانې څخه |

اول از دشمن که او استیزه روست ‌‌ ‌ ‌ ‌ وانگهی از صحبت نادان دوست

اول له دښمن څخه چې هغه جنګ مخی دئ ‌ ‌ ‌ او بیا له مجلس څخه د ناپوه ملګري

خویش را از نزد دشمن دور دار ‌ ‌ ‌ یار نادان را از خود مهجور دار

ځان دي له نږده د دښمن لیري مه لره ‌ ‌ ‌ ملګري ناپوه له ځان څخه لیري ولره

ای پسر کم گوی با مردم درشت ‌ ‌ ‌ ور بگوئ از تو گردانند پشت

اې هلکه! مه وایه و خلګو ته سپکي سپوري ‌ ‌ ‌ او که یې ووایې له تا څخه ګرځوي شا

**د لغاتو حل:** احتراز (ځان ساتنه / پرهېز / په وهم کي اوسېدل)؛ استیزه (جنګ / شخړه / جګړه).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه له دوو کسانو څخه د ځان ساتنې او لیري اوسېدلو په اړه بیان کوي، فرمايي چې که هوښیار یې، نو تل له دوو کسانو څخه لیري اوسه، تر څو کوم زیان او تاوان درته ونه رسیږي: یو له هغه دښمن څخه چې جنګ غوښتونکی وي؛ دویم د ناپوه او کم عقل انسان له مجلس او ملګریتوب څخه. د دښمن له نیږدېوالي څخه لیري اوسه او ناپوه او احمق ملګری له ځان سره لیري ساته. خلګو ته له سپکو سپورو او غلطو خبرو څخه ډډه وکړه، که نه نو یوازي دي پرېږدي...

بهترین خصلت از دانی کراست ‌ ‌ ‌ آنکه داد انصاف و انصافش نخواست

ډېر ښه عادت له پوهني څخه چا لره دئ ‌ ‌ ‌ هغه چې ورکوي انصاف او انصاف دی نه غواړي

چون حدیث خوب گوئی با فقیر ‌ ‌ ‌ به بود زانش که پوشانی حریر

کله چې خبري خوږې وایې له فقیر سره ‌ ‌ ‌ ښه دئ تر دې چې ور واغوندې وربېښم

خشم خوردن پیشه هر سرورست ‌ ‌ ‌ تلخ باشد وز شکر شیرین ترست

قهر خوړل خوی د هر سردار دئ ‌ ‌ ‌ تریخ دئ او (مګر) له بورې څخه ډېر خوږ دئ

هر که با مردم نسازد در جهان ‌ ‌ ‌ زندگانی تلخ دارد بی گمان

هر څوک چې له خلګو سره نه جوړېږي په جهان کې ‌ ‌ ‌ ژوندون تریخ لري بې له شکه

**د لغاتو حل:** دانی (علمیت / پوهنه)؛ حریر (ورېښم، یو ډول نرم مواد دي چې له یو ډول چینجي څخه په لاسي راځي او بیا جامې او داسي نور شیان ځني جوړېږي)؛ نسازد (نه جوړېږي / موافقه نه کوي).

**لنډیز:** ... له علم او پوهې څخه چې په لاس راځي تر ټولو ښه خوی دا دئ چې علم عادل وي او له انصاف څخه کار اخلي، خو له نورو څخه د انصاف غوښتنه نه کوي. کله چې یو فقیر او غریب سړی د ورېښمو غوندي نرمه جامه کي پټ کړې، خو احسان ور باندي اچوې یا بدي خبري ورته کوې، دا هیڅ گټه نه لري، تر دې خو دا ښه دئ چې په نرمو او ښو خبرو سره یې خالي لاس جواب کړې. قهر کنټرولول د سردارانو او لویو خلگو کار دئ، ځکه د قهر او غوسې زغمل که څه هم ترخه دي، لېکن پایله او نتیجه یې تر بورې هم خوږه او خوندوره وي. څوک چې په دنیا کي له خلگو سره موافقت نه کوي او په هر څه کي مخالفت کوي، نو تل به یې ژوند تریخ او نا ارامه وي.

| | |
|---|---|
| آنکه شوخ است وندارد شرم نیز | دان که او ناپاک زادست ای عزیز |
| هغه چې شوخ دئ . او نه لري شرم همداسي | او هغه چې حرام زاده دئ اې گرانه |
| از ملامت تا بمانی در امان | باش دائم همنشین زیرکان |
| له تهمت څخه تر څو پاته سې په امن کي | اوسه همېشه ناست له هوښیارانو سره |

**د لغاتو حل:** شوخ (خشنگ / بې باکه)؛ تهمت (تور / بد ویل / پر یو چا بې ځایه تور لگول).

**لنډیز:** ... څوک چې بې پروا وي او شرم او حیا نه لریو پوه سه چې هغه حرامزاده دئ. که غواړې چې له ملامتیا او تهمتونو څخه خلاص واوسې، نو تل له نېکو او هوښیارو خلگو سره ناسته ولاړه کوه.

# در بیان آنکه خواری آرد

## د هغه شیانو په بیان کي چي ذلت راوړي

| | |
|---|---|
| هشت خصلت آورد خواری بروی | باتو گویم گرهمی گوئی بگوی |
| اته خویونه راوړي ذلت پر مخ | تا ته وایم که چیري همداسي دایم ووا[illegible] |

اول آن باشد که مانند مگس | مرد ناخوانده شود مهمان کس

اول هغه وي چي په مثال د مچ دئ | چي سړی نا بللی سي مېلمه د چا

هر که او مهمان کس ناخوانده شد | نزد مردم خوار وزار ورانده شد

هر څوک چي مېلمه د چا نابللی سي | په نزد د خلګو خوار او ذلیل او شړلی سي

دیگر آن باشد که نادانی رود | کدخدای خانه مردم شود

بل هغه وي چي یو ناپوه ولاړ سي | چي مشر د کور د خلګو سي

**د لغاتو حل:** خواری (ذلت / تیتوالی)؛ هشت (اته / ۸)؛ رانده (ترټلی / شړلی)؛ کدخدای (مشر / سردار).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د اتو (۸) هغو شیانو یادونه کوي چي انسان له خوارۍ او ذلت سره مخ کوي، فرمایي چي اته شیان انسان ته ذلت په برخه کوي: لومړی دا چي یو څوک نا بللی د چا مېلمه سي، د هغه مثال د مچ دئ چي په هر شي کې لوېږي. خکه څوک چي د چا نا بللی او نه غوښتل سوی مېلمه کېږي، هغه د خلګو په وړاندې خوار وزار او ترټلی وي. دویم هغه دئ چي یو ناپوه او احمق انسان د خلګو مشر او سردار وټاکل سي...

کار کردن در حدیث آن دو مرد | کز سر جهلند دائم در نبرد

کار کول په صلحه کي د هغه دوو کسانو | چي له ناپوهۍ څخه دي همېشه په جګړه کي

هر که نشیند زبردست صدور | گر رسد خواریش بروی نیست دور

هر څوک چي کښېني له پاسه د سردارانو | که ورسېږي ذلت پر ده نه ده لیري

نیست جمعی را چون بر قول تو گوش | صد سخن گر باشدت یکسر خموش

نه وي ټولی لره چي پر خبرو ستا غوږ | سل خبري که چیري وي ستا ټولي بتي کړه

حاجت خودرا مگو با دشمنان | زین بتر خواری نباشد در جهان

ضرورت خپل مه وایه و دښمنانو ته | تر دې بده خواري نه وي په جهان کي

**د لغاتو حل:** حدیث (خبره، مراد یې سوله او روغه جوړه ده)؛ صدور (سینې، مراد یې لوړوالی دئ).

**لنډیز:** ... همدا ډول د هغو دوو کسانو په منځ کي سوله او روغه جوړه کول، انسان ذلیله کوي چي تل په ناپوهی او جهالت سره په جنگ او جنجال کي وي. همدا ډول څوک چي د سردارانو او مشرانو خلگو په مخ کي پر لوړ ځای کښېني، نو دا لیري نه ده چي له خواری او ذلالت سره دي مخ سي. همدا ډول خپلو دښمنانو هیڅکله د خپلي اړتیا او ضرورت بیان مه کوه او د مرستي غوښتنه مه ځني کوه، ځکه تر دې ستر ذلت او لویه خواري په دنیا کي نه سته...

| از فرومایه مراد خود مجوئ | تا نیاید مرترا خواری بروی |
| --- | --- |
| له رذیل شخصه مراد خپل مه طلبوه | تر خو رانه سي خاص تا لره خواري پر مخ |
| بازن وکودک مکن بازی هلا | تا نگردی خوار وزار ومبتلا |
| له ښځي او ماشوم سره مه کوه لوبي خبردار | تر خو ونه گرځي خوار او ذلیل او گرفتاره |

**د لغاتو حل:** فرو مایه (ټیټ ذاته / کم اصل)؛ کودک (ماشوم / کوچنی)؛ مبتلا (گرفتار / اخته / بندي).

**لنډیز:** ... له ټیټ او کم اصل سړي څخه هیڅکله د اړتیا د پوره کولو غوښتنه مه کوه، که نه نو په خواری او ذلت کي به راگیر سې. له ښځي او ماشوم سره هیڅکله لوبې او بازی مه کوه، ځکه په دې سره هم د انسان عزت له منځه ځي او ذلیل گرځیږي.

# در بیان زندگانی خوش

## د ښه ژوندانه په بیان کي

| درجهان شش چیز می آید بکار | اولا یار وطعام خوشگوار |
| --- | --- |
| په جهان کي شپږ شیان راخي په کار | اول ملگری او خواړه خوندور |
| خوش بود یار موافق درجهان | باز مخدومی که باشد مهربان |
| ښه وي ملگری موافق په جهان کي | بیا استاذ جي وي مهربانه |

| | |
|---|---|
| هر سخن کان راست گوئی و درست | به ز دنیا زانکه درونی نفع تست |
| هره خبره چې وې سمه وايې روغه | ښه ده له دنیا ځکه چې په هغه کې ستا ګټه ده |
| آنچه ارزانست عالم در بهاش | عقل کامل دان تو زو دل شادباش |
| هغه څه چې ارزانه ده دنیا په قیمت کې د هغه | عقل کامل وګڼه ته له هغه څخه خوشحاله اوسه |

**د لغاتو حل:** زندگانی خوش (ښه ژوند / آرام ژوند / سوکاله ژوند)؛ طعام (خواړه / ډوډۍ).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د ښه او سوکاله ژوندانه په اړه بیان کوي، فرمايي چې په ژوندانه کې شپږ داسې شیان دي چې د هر چا په کار کوي او ورته ضرورت لري: لومړی ښه ملګری؛ دويم خوندور خواړه. يعني همږغی ملګری په دنیا کې ډېر ښه وي، دریيم هغه استاذ چې خواخوږی او مهربان وي. څلورمه سمه او رښتیا خبره ده چې تر ټولې دنیا هم غوره او ګټوره ده. بل هغه شی چې په قیمت کې تر ټولې دنیا لوړ او غوره دی، کامل او ورښانه عقل دی...

| | |
|---|---|
| دشمن حق را نباید داشت دوست | بازگشت جمله چون آخر بدوست |
| دښمن د خدای نه ښايي لرل دوست | بیرته ورګرځېدل د ټولو چې آخر هغه ته دي |
| عیب کس با او نمی باید نمود | زانکه نبود هیچ لحمی بی غدود |
| عیب د یو چا هغه ته نه ښايي ښکاره کول | ځکه چې نه وي هیڅ غوښې بې له هډوکي |
| از خدا خواه آنچه خواهی ای پسر | نیست در دست خلائق خیر و شر |
| له خدای څخه واغواړه هغه څه چې غواړې اې هلکه! | نه دئ په لاس کې د خلګو خیر او شر |
| بندگان را نیست ناصر جز الله | یاری از حق خواه واز غیرش مخواه |
| بندګانو لره نه سته نصرت کوونکی بې له خدایه | مرسته له خدایه وغواړه او له نورو څخه يې مه غواړه |

**د لغاتو حل:** لحم (عربي لفظ دئ، يعني غوښه)؛ غدود (خنډ، مراد يې هډوکی دئ).

**لنډیز:** ... د الله تعالی دښمن هیڅکله باید دوست ونه ګڼل سي، موږ ټول آخر بیرته الله تعالی ورګرځو. د کوم چا عیب او نیمګړتیا باید ښکاره نه کړل سي، ځکه چې په دنیا کې هر څوک يو نه يو عیب لري، همدا

لامل دي چې ویل کیږي هیڅ غوښه بې هډوکي نه وي. نو هر څه چې غواړې یوازې یې له الله تعالی څخه وغواړه، له خلکو څخه یې مه غواړه، ځکه چې خیر او شر د خلکو نه، بلکې د الله تعالی په واک کې دئ. او له بندګانو سره مرسته کوونکی یوازې او یوازې الله تعالی دئ، له هغه پرته بل څوک مرسته نه سي کولای، نو ته هم یوازې له الله تعالی څخه مرسته وغواړه، نه له نورو خلګو څخه...

| | |
|---|---|
| آنکه ازقهر خدا ترسد بسی | بی گمان ترسند ازوی هرکسی |
| هغه چې · له قهر څخه · د خدای · بېرېږي · ډېر | بې له شکه · بېرېږي · له هغه څخه · هر څوک |
| ازبدی گفتن زبان را هرکه بست | کرد شیطان لعین را زیر دست |
| له بدو · ویلو څخه · ژبه · هر چا چې وتړله | کړ یې · شیطان · ملعون · لاندي · تر لاس |

**د لغاتو حل:** قهر (غضب / غوسه)؛ بسی (ډېر / زیات)؛ لعین (ملعون / د لعنت مستحق / ترټل سوی).

**لنډیز:** ... هر څوک چې د الله تعالی له قهر او غضب څخه بېرېږي، نو کوم شک نه سته چې له هغه څخه به ټول خلګ په وهم او ډار کې وي. هر څوک چې له بد ویلو او ناوړه خبرو کولو څخه ژبه بنده کړي، نو په رښتیا چې ترټلی شیطان یې تر پښو لاندې کړ.

# در بیان آنکه اعتماد را نشاید

## د هغه شیانو بیان چې باور پرې نه ښایي

| | |
|---|---|
| کس نیابد پنج چیز از پنج کس | یاد گیر از ناصح ای صاحب نفس |
| هیڅوک نه ترلاسه کوي · پنځه شیان · له پنځو کسانو څخه | یاد ونیسه · له نصیحت کوونکي څخه · اې صاحبه د نفس |
| نیست اول دوستی اندر ملوک | این سخن باور کند اهل سلوک |
| نه سته · اول · دوستي · په باچاهانو کې | بر دې · خبره · باور کوي · خاوند د سلوک |
| سفله را بامروت ننگری | هیچ بد خوئی نیابد مهتری |
| رذیل به · له خوانمردۍ سره · ونه ګورې | هیڅ · بد · خویه · نه سي مونډلای · سرداري |

| | |
|---|---|
| هرکه برمال کسان دارد حسد | بوئ رحمت بردماغش کی رسد |
| هر څوک چي پر مال د خلګو لري حسد | بوی د رحمت پر دماغ د هغه کله رسيږي |
| آنکه کذاب ست ومی گوید دروغ | نیست اورا دروفاداری فروغ |
| هغه چي درواغجن دئ او وايي درواغ | نه سته هغه لره په وفادارۍ کي رڼا |

**د لغاتو حل:** اعتماد (تکیه / باور / زړه ترل)؛ ناصح (نصيحت کوونکی / خير غوښتونکی / واعظ).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله عليه د پنځو داسي شيانو بين کوي چي د باور او اعتبار وړ نه دي، فرمايي چي اې ښه انسانه! زما څخه دا نصيحت واوره او ياد يې وساته چي له پنځو کسانو څخه پنځه شيان هيڅکله نه ترلاسه کيږي: لومړی دا چي په باچاهانو او واکمانو کي دوستي نه سته او پر دې خبره باندي هغه څوک باور کوي چي هوښيار او سپيڅلی وي. همدا ډول رذيل او بد ذاته انسان هيڅکله مهرانه او څوانمردي نه کوي، او هيڅ بد خويه انسان سرداري او مشرتوب نه سي ترلاسه کولای. همدا ډول څوک ي له نورو سره د هغوی پر شمتنيو او جايدادونو باندي حسد او کينه لري، د هغه دماغ ته د الهي رحمت بوی هم نه سي رسېدلای. همدا رنګه څوک چي درواغجن وي او تل درواغ وايي، له هغه څخه د وافادارۍ هيڅ تمه او اميد مه لره.

## در بیان نصیحت وخیر اندیشی

### د نصحيت او خير غوښتني په بيان کي

| | |
|---|---|
| هرکه را سه کار عادت باشدش | درجهان بخت وسعادت باشدش |
| هر چا لره چي درې کاره عادت وي د ده | په جهان کي به بخت او نېکمرغي وي د ده |
| اولا گر بیند او عیب کسان | درملامت هیچ نگشاید زبان |
| اول که ووينې دی عيب د خلګو | په ملامتيا کي هيڅ نه خلاصوي ژبه |

| | |
|---|---|
| هر کرا بینی براه ناصواب | سر براهش آرتا یابی ثواب |
| هرڅوک چي وويني پر لاره ناسمه | پر سمه لاره يې راوله ترڅو ترلاسه کړې ثواب |
| زحمت خودرا ز مردم دوردار | بار خود بر کس میفگن زینهار |
| زحمت خپل له خلګو څخه ليري ولره | بار خپل پر چا مه غورځوه خامخا |

**د لغاتو حل:** نا صواب (نا سمه / نا حقه / غلطه)؛ نکشاید (نه خلاصوي / نه پرانيزي).

**لنډيز:** مصنف رحمة الله عليه په دې باب کي د نصيحت او خير غوښتني په اړه بيان کوي، فرمايي چي د هر چا چي درې کارونه عادت وي، نو په دنيا کي نېکمرغه او نېک بخته انسان وي: لومړی دا چي د نورو عيبونه او نيمګړتياوي ويني، خو هغوی او نورو ته يې د ويلو او رسوا کولو په اړه خوله نه خلاصوي. هر څوک چي پر ناسمه او غلطه لار ويني، نو پر سمه لار يې برابر کړي. په خپل زحمت او تکليف سره نورو خلګو ته تکليف نه رسوي او خپل بار پر نورو خلګو نه غورځوي...

# در بیان تسلیم

## د تسليم په بيان کي

| | |
|---|---|
| گر همی خواهی که باشی رستگار | رخ مگردان ای برادر از سه کار |
| که چيري داسي غواړې چي سې خلاص | مخ مه ګرځوه اې ورو‌ره له درو کارو څخه |
| اولا دیدن بود حکم قضا | بعد ازان جستن بجان ودل رضا |
| اول ليدل دي د حکم د قضا (د خدای) | وروسته تر دې طلبول دي په روح او زړه سره د رضا (د خدای) |
| چیز سوم دور بودن از جفا | هر که این دارد بود اهل صفا |
| شی دریم ليري کېدل دي له ظلم څخه | هر څوک چي دا لري وي خاوند د صفايي |

| هر که دارد دانش و عقل و تمیز | جز براه حق نه بخشد هیچ چیز |
| --- | --- |
| هر څوک چي لري پوهه او عقل او هوښ | ماسېوا له لاري څخه د خدای نه بخښي هیڅ شی |

**د لغاتو حل:** تسلیم (غاړه اېښوول / حکم منل / تسلیمېدل)؛ جفا (ظلم / پر ژمني وفا نه کول / پروا نه لرل).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د تسلیمېدلو او غاړي اېښوولو په اړه بیان کوي، فرمایي چي که غواړې چي په په دنیا کي له هري ستونزې او خطر څخه خلاص واوسې، نو له درو کارونو مخ مه اړوه: لومړی د الله تعالی په قضا او قدر راضي کېدل؛ دویم په روح او زړه سره د الله تعالی رضا لټول. دریم له ظلم او جفا څخه ځان لیري ساتل. څوک چي دا صفات په ځان کي لریو له سپېڅلو کسانو څخه وي. هر څوک چي پوهه، علم او هوښ لري، هغه هر څه د الله تعالی په لار کي ښندي او بخښي...

| صدقۂ کآلوده گردد باریا | کی بود آن خیر مقبول خدا |
| --- | --- |
| هغه خیرات چي ککړ وګرځي په ریا سره | کله وي دغه خیرات د قبول وړ د خدای |
| گر عمل خالص نباشد همچو زر | قلب را ناقد نیارد در نظر |
| که چیري عمل خالص نه وي په مثال د زرو | زړه لره صفا کوونکی نه راوړي په نظر کي |
| تا توانگر باشی اندر روزگار | نفس را از آرزوها دور دار |
| تر څو شتمن اوسې په زمانه کي | نفس له ارزوګانو څخه لیري لره |

**د لغاتو حل:** آلوده (ککړ / لړل / چتل)؛ ریا (ځان ښوونه / د دې له پاره ښه کار کول چي خلګ یې وستایي).

**لنډیز:** ... کومه صدقه او خیرات چي په ریا او ځان ښوونې سره ککړه او لړلې وي، هغه د الله تعالی په دربار کي نه قبلیږي. که چیري یو عمل د زرو په څېر له خیرو او کچړې څخه پاک او صاف نه وي، هغه زړه له ککړتیاؤ څخه نه صفا کوي. که غواړې چي شتمن او بډای واوسې، نو خپل نفس او بې ځایه خواهشاتو او ارزګانو څخه لیري وساته.

# در بیان کرامت حق تعالی

## د الله تعالی د کرامت په بیان کې

چارچیز ست از کرامتهای حق ‌‌ ‌ ‌ ‌ یاد دارش چون زمن گیری سبق

خلور شیان دي له مهربانیو څخه د خدای ‌ ‌ ‌ یاد يې ولره کله چې زما څخه نیسې سبق

اولاً صدق زبانت در سخن ‌ ‌ ‌ وانگهی حفظ امانت فهم کن

اول رښتینولي د ژبې ستا په خبرو کې ‌ ‌ ‌ ور پسې ساتنه د امانت فکر وکړه

پس سخاوت هست از فضل اله ‌ ‌ ‌ فضل حق دان در نظر داری نگاه

بیا سخاوت دئ له فضل څخه د الله تعالی ‌ ‌ ‌ فضل د خدای وبوله په نظر کې ولره ساتلې

تا توانی دور باش از سود خوار ‌ ‌ ‌ زانکه هست از دشمنان کردگار

تر څو کولای سې لیري اوسه له سود خورونکي څخه ‌ ‌ ‌ څکه چې دئ له دښمنانو څخه د الله تعالی

**د لغاتو حل:** کرامت (عظمت / مهرباني)؛ اِله (معبود / خدای تعالی)؛ کردگار (الله تعالی).

**لنډیز:** په دې باب کې يې د الله تعالی د عظمت او کرامت یادونه کړې ده، فرمايي چې څلور شیان د الله تعالی له عظمتونو او کرامتونو څخه دي چې زه يې اوس درته بیانوم: لومړی دا چې په ژبه رښتیا وایې او له درواغو څخه ځان وساتې؛ بل دا چې له امانت څخه په سمه توگه ساتنه وکړې او خیانت ونه کړې. همدا ډول سخاوت د الله تعالی له مهربانیو څخه دئ. دا د الله تعالی فضل وگنه او په نظر کې يې وساته. همدا ډول تر څو چې دې په وس کې وي له سود خورو څخه لیرې اوسه، څکه چې سود خور د الله تعالی دښمن دئ....

هر که را حق داده باشد این چهار ‌ ‌ ‌ باشد آنکس مومن وپرهیزگار

هرچا له چې خدای ورکړي وي دا خلور ‌ ‌ ‌ وي به دغه کس مومن او پرهېزگاره

| | |
|---|---|
| پیش مردم آنکه رازت کرد فاش | همدم آن ابله باطل مباش |
| په مخ کي د خلګو هغه چي راز ستا کړي نشر | ملګری د دغه بې عقل باطل مه اوسه |
| هرکه باشد مانع عشر وزکوٰة | وانکه غافل وار بگذارد صلوٰة |
| هر څوک چي وي منع کوونکی د عشر او د زکاة | او هغه چي بې خبره غوندي پرېږدي لمونځ |
| پر حذر باش ازچنان کس زینهار | تا نسوزد مرترا آسیب نار |
| ډک له بېري اوسه له دا ډول کس څخه خامخا | تر څو ونه سوځي خاص تا ضرر د اور |

**د لغاتو حل:** پرهیزګار (ځان ساتونکی / منقي / سپېڅلی)؛ فاش (پاشل / خپرول / نشر کول).

**لنډیز:** ... هر چا ته چي الله تعالی دا څلور شیان ورکړي وي، هغه به مومن او تقواداره وي. هیڅکله له هغه کم عقل او نا اهله چا سره ملګري مه کوه چي ستا رازونه افشا کوي. همدا ډول هغه څوک چي عشر او زکات نه ورکوي او له لمانځه څخه غافل او بې پروا وي. له دا ډول خلګو څخه باید لیري اوسې، تر څو د دوږخ اور ته درته کوم ضرر ونه رسوي.

# در بیان فروخوردن خشم

## د غوسې د زغملو په بیان کي

| | |
|---|---|
| لذت عمرت اگر باید بدهر | باش دائم پر حذر از خشم وقهر |
| خوند د عمر ستا که چیري په کار وي په زمانه کي | اوسه همېشه ډک له بېري له خشم او قهر څخه |
| چون نگردد خلق باخوی توراست | گر بخوی مردمان سازی رواست |
| کله چي نه ګرځي خلق له عادت سره ستا برابر | که چیري له عادت سره د خلګو جوړ سې ښه ده |
| ای برادر تکیه بر دولت مکن | یاد دار ازناصح خود این سخن |
| اې ورو‌ره! تکیه پر دولت مه کوه | یاد ولره له نصیحت کوونکي خپل دا خبره |

سودِ نکند گر گرزی از قضا | هرچه می اید بدان می ده رضا

فائده نه کوي که چیري تښتې له قضا څخه | هر څه چي راځي پر هغه ورکوه رضا

**د لغاتو حل:** فروخوردن (زغمل / خوړل / په واک کي ساتل)؛ سودِ (گټه / فائده).

**لنډیز:** په دې باب کي د غوسې د زغملو او په واک کي ساتلو اړوند بیان کوي، فرمايي چي که غواړې چي له ژونده خوند واخلې، نو همېشه له قهر او غضب څخه په وهم کي اوسه. دا چي خلگ ستا سره ستا پر خوی او عادت نه جوړېږي، نو ښه دا ده چي ته له هغوی سره پر طبیعت جوړ سې. پر دولت او شتمنۍ باندي هيڅ اعتماد او تکیه مه کوه، زما څخه همدا يوه خبره د نصيحت په توگه ياد ولره. دا چي د الله تعالی له تقدير او قضا څخه تښتې، هیڅ گټه او فایده نه کوي، ځکه تقدير نه بدلیږي، نو ښه دا ده چي هر څه پېښېږي پر هغه باندي ځان راضي او خوښ ولره...

زانچه حاصل نیست دل خورسند دار | گوش دل را جانب این پند دار

له هغه څخه چي حاصل نه دئ زړه راتول لره | غوږ د زړه طرف ته د دې نصیحت ولره

هرکه او بادوستان یک دل بود | جمله مقصود دلش حاصل بود

هر څوک چي هغه له دوستانو سره په یوه زړه وي | ټوله مقصود د زړه به یې حاصل وي

**د لغاتو حل:** یک دل (په یوه زړه / همږغی)؛ جانب (طرف / خوا / اړخ)؛ مقصود (مطلب / موخه).

**لنډیز:** ... کوم څه چي په لاس نه درځي زړه را ټول کړه او زما دا نصیحت تل یاد وساته. څوک چي له دوستانو سره همږغی او موافق وي، د هغه زړه ټول مقاصد په پوره وي.

# در بیان جهان فانی

## د له منځه تلونکي جهان بیان

درجهان دانی کی باشد معتبر؟ | آنکه اورا باک نبود از خطر

په جهان کي پوهېږې څوک وي معتبر؟ | هغه چي هغه لره پروا نه وي له خطر څخه

| | |
|---|---|
| کم کند با کس وفا این روزگار | جور دارد نیستش . با مهر کار |
| نه کوي له خلګو سره وفا دا زمانه | ظلم لري نه يې سته له مهربانۍ سره کار |
| آنکه با تو روز غم بود است یار | روز شادی هم بپرسش زینهار |
| هغه چي ستا سره په ورځ د غم وي دئ ملګری | په ورځ د ښادۍ هم پوښتنه وکړه دهغه خامخا |
| روز نعمت گر تو پردازی بکس | روز محنت باشدت فریادرس |
| په ورځ دنعمت که چیري ته مشغوله يې له یوچا سره | په ورځ د سختۍ وي ستا فریاد اورېدونکی |

**د لغاتو حل:** فانی (ختمېدونکی / نېستي کېدونکی)؛ مهر (لورېينه / مهرباني)؛ پرداز (مشغول / بوخت).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د فاني او ختمېدونکي دنیا اړوند بیان کوي، فرمايي چي ته پوهېږې چي په جهان کي څوک د اعتبار وړ دئ؟ هغه څوک دئ چي له خطرونو او ستونزو څخه هېڅ باک او پروا نه لري. ځکه چي دا دنیا له هیچا سره وفا نه کوي، ډېره ظالمه ده او هیڅ مهرباني نه لري. کوم څوک چي ستا سره د غم او مصیبت په ورځ ملګری وي، نو د خوښۍ په ورځ يې هم د حال پوښتنه کوه، مطلب په ښادۍ او خوشحالۍ کي يې هم مه هېروه. ځکه کله چي ته د خوښۍ په ورځ له کوم ملګري سره بوخت سې، نو د خوارۍ او غم په ورځ به دي هم فریاد اوري او ملګریتوب به درسره کوي...

| | |
|---|---|
| چون بیابی دولتی از مستعان | اندر آن دولت بپرس از دوستان |
| کله چي ترلاسه کړې . دولت له الله تعالی څخه | په دغه دولت کي پوښتنه وکړه له دوستانو څخه |
| مر ترا هر کس که یار غم بود | چون رسد شادی همان همدم بود |
| خاص تا لره هر څوک چي ملګری د غار وي | کله چي ورسيږي خوشحالي هماغه دي ملګری وي |

**د لغاتو حل:** مستعان (مرستندوی، مراد الله تعالی دئ)؛ همدم (ملګری).

**لنډیز:** ... کله چي الله تعالی تا ته شتمني او دولت درکړي، نو په همدې دولت کي دوستان او خپلوان مه هېروه، بلکي تل يې د حال او احوال پوښتنه کوه. کله چي دي څوک په سختۍ او تکلیف ملګري کوي، نو په خوښۍ او خوشحالۍ کي هم باید درسره ملګری وي.

# در بیان معرفت حق تعالی

## د الله تعالی د معرفت په بیان کي

| | |
|---|---|
| معرفت حاصل کن ای جان پدر | تا بیابی از خدائی خود خبر |
| معرفت حاصل کړه اې روحه د پلار | تر څو ترلاسه کړې له خدای څخه خپل خبر |
| هر که عارف شد خدای خویش را | در فنا بیند بقای خویش را |
| هر څوک چي پېژندونکی سي د خدای خپل | په فنا کي به ويني بقا خپله |
| هر که او عارف نباشد زنده نیست | قرب حق را لائق وار زنده نیست |
| هر څوک چي هغه پېژندونکی نه وي ژوندی نه دئ | نيژدېوالي د خدای لره لائق او وړ نه دئ |
| هر که اورا معرفت حاصل نشد | هیچ با مقصود خود واصل نشد |
| هر څوک چي هغه لره معرفت حاصل نه سي | هيڅ و مقصود ته خپل رسېدای نه سي |

**د لغاتو حل:** معرفت (په حقه سره د الله تعالی پېژندنه)؛ عارف (چي الله تعالی يې په پوره ډول پېژندلی وي).

**لنډيز:** په دې باب کي د الله تعالی د معرفت او پېژندني اړوند بيان کيږي، مصنف رحمة الله عليه فرمايي چي الله تعالی په کاملو صفاتو سره وپېژنه، تر څو د خپل ستر خالق په کمالاتو او قدرتونو خبر سې. څوک چي الله تعالی په حقه سره وپېژني، هغه به په خپله فنا (نېستي والي) کي بقا (تل پاتي والی) ويني. کوم څوک چي الله تعالی نه پېژني، هغه ژوندی نه دئ، بلکي مړی دئ او الله تعالی ته هيڅ قرب او نيژدې والی نه سي موندلای. د چا چي د خپل خالق او پيدا کوونکي معرفت نه وي په برخه، هغه هيڅکله خپل اصلي هدف او مقصد ته نه سي رسېدلای...

| | |
|---|---|
| نفس خودرا چون تو بشناسی دلا | حق تعالی را بدانی با عطا |
| ځان خپل چي کله ته وپېژنې اې زړه | خدای تعالی به وپېژنې په مهرباني سره |

| | |
|---|---|
| عارف آن باشد که باشد حق شناس | هر که عارف نیست گردد ناسپاس |
| پېژندونکی هغه وي چي وي خدای پېژندونکی | هر څوک چي پېژندونکی نه وي گرځي ناشکره |
| هست عارف را بدل مهر وفا | کار عارف جمله باشد باصفا |
| ده پېژندونکي لره په زړه کي مهرباني او وفا | کار د پېژندونکی ټول وي پاک صاف |
| هر که اورا معرفت بخشد خدای | غیر حق را در دل او نیست جای |
| هر څوک چي هغه لره پېژندنه وبخښي خدای | ما سوا له خدای څخه په زړه کي د هغه نه وي ځای |

**د لغاتو حل:** نا سپاس (نا شکره / احسان هېرونکی)؛ غیر حق (غیر الله / له الله تعالی پرته ټول شیان).

**لنډیز:** ... د الله تعالی د پېژندلو له پاره لومړی باید انسان خپل ځان وپېژني، نو څوک چي خپل ځان په سمه توګه وپېژني، نو الله تعالی به هم وپېژني. عارف او د الله تعالی پېژندونکی هغه څوک دئ چي الله تعالی په سمه توګه او په کاملو صفاتو سره وپېژني او څوک چي د الله تعالی پېژندونکی نه وي، هغه ناشکره دئ. عارف په زړه کي مهربان او وفا لرونکی وي او د عارف چاري او کارونه ټول سپېځلي او صفا وي. الله تعالی چي هر چا ته خپل معرفت ور په برخه کړی وي، نو د هغه په زړه کي د الله تعالی له مینې او محبت پرته بل هېڅوک او هېڅ شی ځای نه لري...

| | |
|---|---|
| نزد عارف نیست دنیا را خطر | بلکه بر خود نیستش هرگز نظر |
| په نزد د پېژندونکي نه سته دنیا لره عزت | بلکي بر خان ی نه سه هیڅکله نظر |
| معرفت فانی شدن در وی بود | هر که فانی نیست عارف کی بود |
| پېژندنه فاني کېدل په هغه کي وي | هر څوک چي فاني نه دئ عارف نه دئ |
| عارف از دنیا و عقبی فارغ ست | زانچه باشد غیر مولی فارغ ست |
| عارف له دنیا او عقبی څخه بې غمه دئ | نه هغه څخه چي وي ماسوا له خدایه خلاص دئ |

| همت عارف لقای حق بود | زانکه در حق فانئ مطلق بود |
|---|---|
| همت د عارف لیدل د خدای وي | خکه چي په خدای کي فاني مطلق وی |

**د لغاتو حل:** خطر (برخه / د زیان رسېدني وهم، خول دلته مراد عزت دئ)؛ عقبی (آخیرت).

**لنډیز:** ... د عارف په زړه کي دنیا هیڅ عزت او ارزښت نه لري، بلکي له عارف څخه آن خپل ځان هم هېر وي. د الله تعالی معرفت د هغه جل جلاله په کمالاتو او محبت کي ورک کېدل دي، ځوک چي د الله تعالی په مینې او محبت کي ورک نه سیو هغه عارف نه گڼل کیږي. عارف انسان د دنیا او آخیرت له غم څخه بې غمه او داډمن وي او له الله تعالی پرته د بل هیڅ شي په اړه فکر نه کوي. د عارف یوازنی موخه او مقصد د الله تعالی لیدل او دیدار وي، ځکه چي د هغه جل جلاله په مینه کي ورک او فاني وي.

# در بیان ندمت دنیا

## د دنیا د بدی په بیان کي

| با چه ماند این جهان گویم جواب | آنکه بیند آدمی چیزی بخواب |
|---|---|
| له څه سره ورته ده دا دنیا؟ وایم جواب | هغه چيویني انسان یو شی په خوب |
| چون شوی بیدار از خواب ای عزیز | حاصلے نبود زخوابت هیچ چیز |
| کله چي سې بیداره له خوبه اې گرانه | حاصل نه وي له خوبه ستا هیڅ شی |
| همچنین چون زندهٔ افتاده مرد | هیچ چیزی از جهان باخود نبرد |
| همدارنگه کله چي یو ژوندی ولوېږي مړ سي | هیڅ یو شی له دنیا څخه له ځان سره نه وړي |
| هر کرا بودست کردار نکو | در ره عقبی بود همراه او |
| هر چا لره چي وي عمل ښه | په لاره کي د عقبی به وي ملگری د هغه |

**د لغاتو حل:** ندمت (بدي / ناکاري)؛ همراه (ملگری / خواخوږی / دوست).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د دنیا د بدی په اړه بیان کوي، فرمایي چي دا دنیا داسې مثال لري لکه څوک چي په خوب کي یو څه ویني. خو کله چي له خوبه راویښ سي، نو هیڅ یې هم لاس ته نه وي ورغلي. خاص همدغه ډول کله چي یو ژوندی انسان مړ سي، نو ګوري چي له دې ناکاري دنیا څخه یې هیڅ هم نه دي ترلاسه کړي. نو په دنیا کي چي څوک نېک او سپېڅلي عملونه کوي، همدا ښه عملونه به یې په عقبی او آخیرت کي ښه ملګری وي...

| | |
|---|---|
| این جهان را چون زنی دان خوبروی | خویش را آراید اندر چشم شوی |
| دا دنیا په مثال د یوې ښځي وبوله ښایسته | چي خان سینګاروي په نظر کي د خاوند |
| مرد را می پرورد اندر کنار | مکر وشیوهٔ می نماید بیشمار |
| سړی پالي په غېږه کي | فرېب او چمبازي کوي بې حسابه |
| چون بیاید خفته شو را ناګهان | بی ګمان سازد هلاکش آن زمان |
| کله چي ومومي بیده مېړه ناڅاپه | بې له شکه جوړه کړي وژنه د هغه په دغه وخت کي |
| بر تو باید ای عزیز پرهیز | کز چنین مکاره باشی پر حذر |
| پر تا باندي لازمه ده اې ګرانه ډک له هنره | چي له دا ډول فرېبکاره څخه اوسې ډک له بېرې |

**د لغاتو حل:** خوبروی (ښه مخې / ښکلې / ښایسته)؛ شوی (شوهر: مېړه / خاوند).

**لنډیز:** ... دا دنیا د یوې ښکلي او ښایسته ښځي په څېر وګڼه چي خپل ځان د خاوند په مخ کي سینګاروي. او په خپله غېږه کي ځای ورکوي، خو د هغه تر شا له هغه سره بې شمېره چمبازۍ او بې وفایی کوي. یعني کله چي ویني چي خاوند یې بیده دئ، نو په دغه وخت کي د هغه د وژلو پلان جوړ کړي. نو لازمه ده چي له دا ډول چمباز او فرېبکاره سره بیداره او هوښیار واوسې او خطا نه وزې.

# در بیان ورع

## د پرهېزګارۍ په بیان کي

| | |
|---|---|
| در ورع ثابت قدم باش ای پسر | گر همی خواهی که گردی معتبر |
| په تقوی کي محکم اوسه اې هلکه | که چیري داسي غواړې چي وګرځې معتبره |
| خانهٔ دین گردد آباد از ورع | لیک می گردد خرابی از طمع |
| کور د دین ګرځي ودان له تقوی څخه | لېکن ګرځي خراب له تمي څخه |
| هر که از علم و ورع گیرد سبق | دور باید بودنش از غیر حق |
| هر څوک چي له علم او تقوی څخه اخلي سبق | لیري ښايي کېدل له ماسوا څخه د خدای |
| ترسگاری از ورع پیدا شود | هر که باشد بی ورع رسوا شود |
| بېره له تقوی څخه پیدا کیږي | هر څوک چي وي بې تقوی شرمنده کیږي |

**د لغاتو حل:** ورع (ځان ساتنه / تقوی / پرهېزګاري)؛ ثابت (محکم / ټینګ / دوام لرونکی).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د ورع او تقوی په اړه بیان کوي، فرمايي چي که غواړې چي په دنیا کي د اعتماد او باور وړ شخصیت در څخه جوړ سي، نو متقي او پرهېزګاره اوسه. ځکه په تقوی سره د دین کور آبادیږي، خو برعکس په تمي (طمع) سره د دین کور خرابیږي. څوک چي د علم او تقوی څښتن وي، نو باید له غیر الله څخه لیري واوسي. له الله تعالی څخه بېره او خوف په تقوی سره پیدا کیږي، څوک چي بې تقوی وي، هغه به تل شرمنده او رسوا وي...

| | |
|---|---|
| با ورع هر کس که خود را کرد راست | جنبش و آرامش از بهر خداست |
| په تقوی سره هر څوک چي خان کړي سم | حرکت او سکون به يې له پاره د خدای وي |

آنکه از حق دوستی دارد طمع — در محبت کاذبش دان بی ورع

هغه چي له خدای څخه د دوستی لري تمه — په محبت کي يې درواغجن وبوله چي بې تقوا وي

چیست تقوی ترک شبهات وحرام — از لباس واز شراب واز طعام

څه ده تقوی؟ پرهېزول د شبهاتو او حرامو — له جامو څخه او له چيښاک او له خوراک څخه

هرچه افزونست اگر باشد حلال — نزد اصحاب ورع باشد وبال

هر څه چي ډېر دي که څه هم وي حلال — په نزد د خاوندانو د تقوی وي زيان

**د لغاتو حل:** جنبش (حرکت / خوځښت)؛ شراب (چيښاک / د چيښاک توکي؛ لکه اوبه، چای او...).

**لنډيز:** ... څوک چي متقي او پرهېزگاره وي او خپلي چاري په سپېڅلتيا سره پر مخ وړي، د هغه حرکت او سکون د الله تعالی له پاره وي. خو کوم څوک چي د الله تعالی د ميني او محبت دعوه کوي، خو تقوی او سپېڅلتيا نه لري، نو دا دعوه يې د درواغو ده. تقوی څه ده؟ تقوی دا ده چي يو انسان له حرامو او هغو شيانو څخه ځان وساتي چي په حراموالي او حلالوالي کي يې شبه وي، خوراک، چيښاک او پوښاک (جامې او لباس) يې له حرامو څخه پاک وي. همدا ډول گوم شيان چي مباح او حلال دي، هغه هم که تر اندازې زيات وي، متقيان او سپېڅلي کسان ځان ترې ساتي...

ناگهان ای بنده گر کردی گناه — توبه کن در حال عذر آن بخواه

نا خبره اې بنده که چيري وکړې گناه — توبه وکړه سمدستي عذر د هغه وغواړه

چون ورع شد یار با علم عمل — حُسن اخلاق ترا ناید خلل

کله چي تقودار سي ملگرې له علم او عمل سره — ښه اخلاق ستا لره نه راخي گډوډي

چون گناه نقد آمد در وجود — توبهٔ نسیه ندارد هیچ سود

کله چي گناه لاس په لاس راسي په وجود — توبه د نسيې نه لري هيڅ فانده

در انابت کاهلی کردن خطاست | بر امید زندگی کان بی وفاست

په رجوع کې سستي کول غلطي ده | په امید د هغه ژوندانه چې هغه بې وفا دئ

**د لغاتو حل:** در حال (په همدې حال کي / سمدستي / ژر تر ژره)؛ عذر (معذرت / بخښنه غوښتل)؛ نسیه (پور / هېره)؛ سود (گټه / فائده)؛ انابت (رجوع / سمي لاري ته راگرځېدل).

**لنډیز:** ... که چیري په ناخبرۍ او غلطی کي یوه گناه در څخه وسي، نو سمدلاسه له الله تعالی څخه بخښنه وغواړه او توبه وباسه. کله چي له علم او عمل سره تقوی او سپېڅلتیا هم مل او ملگرې سي، بیا نو د انسان اخلاق کمال ته رسیږي او هیڅ خلل او گډوډي نه پکښې را منځ ته کیږي. کله چي یو انسان تر توبې وروسته بیا گناه وکړي او همداسي یو گړی توبه بل گړی گناه کوي، نو دا د هېري یا پور توبه هیڅ گټه نه لري. همدا ډول پر دې ختمېدونکي او له منځه تلونکي ژوند باندي په اعتماد او باور کولو سره توبه له نن څخه سبا ته او له سبا څخه بل سبا ته ځنډول ډېره لویه غلطي او تېروتنه ده، ځکه چي د مرگ وخت نه وي معلوم، کېدای سي همدا نن یا سبا ژوند پای ته ورسیږي او د مرگ استاذی راسي.

# در بیان فوائد خدمت

## د خدمت د گټو په بیان کي

تا توانی ای پسر خدمت گزین | تا شوود اسپ مرادت زیر زین

تر څو چي کولای سې اې هلکه خدمت غوره کړه | تر څو سي آس د مراد ستا لاندي تر ځین

بندهٔ چون خدمتِ مردان کند | خدمت او گنبذ گردان کند

هغه بنده چي خدمت د خلگو کوي | خدمت د هغه به گنبده گرځېدونکې کوي

بهر خدمت هر که بربندد میان | باشد از آفات دنیا در امان

له پاره د خدمت چي هر څوک وتړي ملا | وي به له آفتونو څخه د دنیا به امان سي

| ایزدش بادولت وحرمت کند | هر که پیش صالحان خدمت کند |
|---|---|
| خدای به دی له دولت او عزت سره کړي | هر څوک چې په مخ کې د نېکانو خدمت کوي |

**د لغاتو حل:** زین (څین / ځل / هغه توکر چې د آس پر شا اچول کیږي)؛ حرمت (عزت / احترام)؛ گنبذ گردان (گرځېدونکې گنبده، مراد آسمان دی).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د خدمت گټې او فائدې بیانوي، فرمایي چې که غواړې چې د مراد او مقصد آس دې تر ځل لاندې اماده ولاړ وي، نو د خلگو خدمت غوره کړه. ځکه څوک چې د خلگو خدمت کوي، نو آسمان به د هغه خدمت کوي، له آسمان څخه مراد ټول جهان او کائنات دي. څوک چې د خلگو د خدمت له پاره ملا وتړي، نو د دنیا له آفتونو او مصیبتونو څخه به په امن کې وي. هر څوک چې د نېکانو خدمت کوي، نو الله تعالی به یې دولتمن او عزتمن کړي...

| روز محشر بی حساب وبی عتاب | خادمان را هست درجنت مآب |
|---|---|
| په ورځ د محشر بې حسابه او بې له عذابه | خادمانو لره دی په جنت کې ځای |
| جائی ایشان درجهان باشد رفیع | خادمان باشند اخوان را شفیع |
| ځای د دوی به په جهان کې وي لوړ | خادمان به وي ورونو لره شفاعت کوونکي |
| بهتر ازصد عابد ممسک بود | گرچه خادم عاصی ومفلس بود |
| ډېر ښه له سلو عبادت کوونکو بخیلانو څخه وي | که څه هم خدمت کوونکی گناهکار او غریب وي |
| اجر ومزد صائمان وقائمان | می دهد هرخادمی را مستعان |
| اجر او مزدوري د روژه نیوونکو او لمونځ کوونکو | ور کوي هر خدمتگار لره خدای تعالی |

**د لغاتو حل:** مآب (د اوسېدلو ځای)؛ رفیع (لوړ / معزز)؛ ممسک (کنجوس / بخیل).

**لنډیز:** ... څوک چې د خلگو خدمت وي، هغوی ته الله تعالی په جنت کې ځای ورکوي او د محشر په ورځ حساب او کتاب نه ورسره کیږي. همدا ډول خادمان به د خپلو ورونو شفاعت کوونکي وي او ځای به یې په دنیا کې هم لوړ وي او د عزت څښتنان به وي. خادم که څه هم گناهکار او فاسق وي، خو بیا

هم تر سلو بخیلو او ناکاره عابدانو غوره دئ. الله تعالی هر خدمتګار ته د روژاتیانو او لمونځ کوونکو په اندازه ثواب ورکوي...

بهر خدمت هرکه بر بندد کمر | ازدرخت معرفت یابد ثمر

له پاره د خدمت چي هر څوک وتړي ملا | له درختي څخه د معرفت به پیدا کړي مېوه

هرکه خادم شد جنانش میدهد | هم ثواب غازیانش میدهد

هر څوک چي خادم سي جنتونه ورته ورکوي | هم ثواب د غزیانو ورته ورکوي

**د لغاتو حل:** کمر (ملا / شا)؛ درخت (ونه / درخته)؛ جنان (جنتونه)؛ ثواب (اجر / زدوري).

**لنډیز:** ... نو څوک چي د خلګو د خدمت له پاره لستوني راونغاړي، نو د الهي معرفت له ونې څخه به خوندوره مېوه ترلاسه کړي. څوک چي ځان د خلګو خدمتګار جوړ کړي، الله تعالی به ورته جنتونه ورکړي او د غازیانو په اندازه به یې له ثوابونو څخه برخمن وګرځوي.

# در بیان صدقه

## د خیرات په بیان کي

تا امان باشی زقهر کردگار | صدقه میده درنهان وآشکار

تر څو په امان اوسې له قهرڅخه د الله تعالی | صدقه ورکړه په پټه کي او په ښکاره

صدقه دِه هربامداد وهرپگاه | تا بلاها ازتو گرداند اِله

صدقه ورکړه هر سهار او هر ماښام | تر څو بلاوي له تا څخه وګرځوي الله تعالی

هرکه اورا خیرعادت می شود | بی گمان عمرش زیادت می شود

هر څوک چي هغه لره خیر عادت سي | بې له شکه عمر د ده زیاتیږي

آنکه نیکی می کند درحق ناس | بهترین مردمان اورا شناس

هغه چي نېکي کوي په حق کي د خلګو | ډېر ښه دي خلګ هغه لره پېژندونکي

**د لغاتو حل:** صدقه (خیرات / د الله تعالی په لار کي مصرف کول)؛ نهان وآشکار (پټ او ښکاره).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د صدقې او خیرات اړوند بیان کوي، فرمایي چي که غواړې د الله تعالی له قهر او غضب څخه خوندي پاته سې، نو همېشه په پټه او په ښکاره خیراتونه کوه. که غواړې چي دنیوي مصیبتونه او بلاوي در څخه لیري وي، نو هر سهار او هر ماښام خیرات او صدقه کوي. د چا چي خیر او خیرات عادت وي، د هغه په عمر کي زیاتوب راځي. څوک چي د خلګو په حق کي نېکي او ښېګنه کوي، خلګ یې په نېک او ښه نوم سره پېژني...

| | |
|---|---|
| آنکه از وی هست مردم را ضرر | در میان خلق زو نبود بتر |
| هغه چي له ده څخه دئ خلګو لره ضرر | په منځ کي د خلګو تر ده نه وي ډېر بد |
| دین ندارد هر که نبود ترس گار | نیست عقل آنرا که باشد نابکار |
| دین نه لري هر څوک چي نه وي بېره لرونکی | نه سته عقل هغه لره څکه چي وي نا په کاره |
| با ورع باش ای پسر گر مومنی | کافری از قهر حق گر ایمنی |
| له تقوی سره اوسه اې هلکه که مومن یې | کافر یې له قهر څخه د خدای که بې غمه یې |
| هر کرا نبود ورع ایمانش نیست | هر که را نبود حیا احسانش نیست |
| هر چا لره چي نه وي تقوی ایمان یې نه سته | هر چا لره چي نه وي حیا احسان یې نه سته |
| توبه نبود هر کرا توفیق نیست | حق نه بیند هر کرا تحقیق نیست |
| توبه نه وي هر چا لره چي توفیق نه سته | حق نه ویني هر چا لره چي تحقیق نه سته |

**د لغاتو حل:** ضرر (زیان / تاوان)؛ بتر (ډېر بد)؛ ورع (تقوی / پرهېزګاري)؛ نا بکار (ناکاره / بې ګټې).

**لنډیز:** ... څوک چي خلګو ته زیان او ضرر رسوي، نو د خلګو په منځ کي تر هغه بل ډېر بد او ناوړه څوک نه وي. څوک چي د الله تعالی له قهر څخه بېره نه لري، هغه کم عقل او ناپوه دئ. که ځان ته مومن او مسلمان وایې، نو پرهېزګاره او سپېځلی اوسه، څکه که چېري د الله تعالی له قهر څخه بېره نه لرې او بې غمه یې، نو پوه سه چي بې ایمانه یې. څکه څوک چي تقوا نه لري، هغه ایمان نه لري او څوک چي

شرم او حیا نه لري، هغه هیڅ ښېګڼه او احسان نه لري. چال ته چي الله تعالی توفیق نه ورکړی، هغه توبه نه سي ایستلای او څوک چي د ژور فکر او تحقیق خاوند نه وي، هغه حق نه سي لیدلای.

# در بیان تعظیم مهمان

## د مېلمه د درناوي په بیان کي

ای برادر میهمان را نیک دار ‖ هست مهمان از عطای کردگار

اې وروره! مېلمه خوشحاله ولره ‖ دئ مېلمه له مهربانیو څخه د الله تعالی

میهمان روزی بخود می آورد ‖ پس گناه میزبان را می برد

مېلمه روزي پخپله راوړي ‖ وروسته ګناه د کوربه وړي

هرکرا جبار دارد دشمنش ‖ باز دارد مهمان از مسکنش

هر چا لره چي خدای لري دښمن د هغه ‖ لیري لري مېلمه له استوګنځایه خپل

ای برادر دار مهمان را عزیز ‖ تا بیابی عزت از رحمان تو نیز

اې وروره! لره مېلمه عزتمن ‖ تر څو ترلاسه کړې عزت له رحمانه ته همداسي

**د لغاتو حل:** مهمان (مېلمه، هغه چي د دوست یا ملګري کره ورسي)؛ عطا (ورکړه / مهرباني).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د مېلمه د تعظیم او درناوي په اړه بیان کړی دئ، فرمایلي یې دي چي مېلمه خوښ ولره، ځکه چي مېلمه د الله تعالی له مهربانیو او عطاؤ څخه دئ. مېلمه خپل رزق خپله ورسره راوړي او بیا د کوربه ګناهونه ور سره وړي. یعني مېلمه په خدمت کولو سره د کوربه ګناهونه تویېږي. څوک چي له مېلمه څخه کرکه او نفرت لري، هغه د الله تعالی دښمن ګڼل کېږي. نو اې انسانه! د مېلمه عزت کوه، تر څو تا ته هم الله تعالی عزت درکړي...

مومنی کو داشت مهمان را نکو ‖ حق کشاید باب جنت را برو

هغه مومن چي لري مېلمه لره ښه ‖ خدای پرانیزي دروازه د جنت پر هغه

| | |
|---|---|
| هرکراشد طبع ازمهمان ملول | ازوی آزرده خدا وهم رسول |
| هر چا لره چي سي طبیعت له مېلمه څخه خواشینی | له هغه څخه خواشینی کیږي خدای او هم رسول |
| بندهٔ کوخدمت مهمان کند | خویش را شایسته رحمن کند |
| هغه بنده چي خدمت د مېلمه کوي | ځان به لائق د رحمان کړي |
| هرکه مهمان را بروی تازه دید | ازخدا الطاف بی اندازه دید |
| هر څوک چي مېمله لره په مخ تازه گوري | له خدای څخه به مهرباني بې اندازې ووینې |

**د لغاتو حل:** باب (ور / دروازه)؛ طبع (طبیعت / مزاج)؛ ملول (خوابدي / خپه کېدل)؛ آزرده (زهیر).

**لنډیز:** ... کوم مومن بنده چي مېلمه خوښ لري، الله تعالی یې پر مخ د جنت دروازې خلاصوي. خو کوم څوک چي بیا مېلمه نه خوښوي او ځني تښتي، له هغه څخه الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم دواړه ناراضه کیږي. څوک چي په ښه زړه سره د مېلمه خدمت کوي، نو ځان د الله تعالی د محبت وړ او لائق گرځوي. څوک چي مېلمه سره ته په ورین تندي سره ښه راغلاست وایي، الله تعالی به ډېر زیاتورباندي مهربانه وي...

| | |
|---|---|
| ازتکلف دور باش ای میزبان | تا گرانی نبودت ازمیهمان |
| له تکلیف څخه لیري اوسه اې کوربه | تر خو سختي نه وي تا ته له مېلمه څخه |
| میهمان را ای پسر اعزاز کن | گر بود کافر برو در باز کن |
| مېلمه لره اې هلکه تعظیم کوه | که څه هم وي کافر پر ده دروازه خلاصه کړه |
| هست میهمان ازعطاهای کریم | هرکه زو پنهان شود مرد لئیم |
| دئ مېلمه له مهربانیو څخه د کریم ذات | هر څوک چي له هغه څخه پټیږي سړی بخیل دئ |
| معرفت داری گره برزر بند | چون رسد مهمان برویش دربند |
| معرفت که لرې غوټه پر زرو مه تړه | کله چي ورسیږي مېلمه پر مخ د ده دروازه مه تړه |

**د لغاتو حل:** تکلف (تکلیف / سترپیا)؛ میزبان (کوربه، هغه چي مېلمه ورته راځي).

**لنډیز:** ... کوربه باید د مېلمه له پاره ځان تر اندازې زیات ستړی او په تکلیف نه کړي، تر څو د مېلمه له پاره یې په زړه کي مینه او محبت کم نه سي. همېشه د مېلمه عزت او درناوی کوه، که څه هم کافر وي، خو بیا یې هم پر مخ دروازه خلاصه ولره. ځکه چي مېلمه د الله تعالی له مهربانیو څخه دئ. نو کوم څوک چي له مېلمه څخه تښتي، هغه کنجوس او بخیل دئ. نو که ته الله تعالی په ښه ډول پېژنې، نو شتمنیو ته غوټه مه ورکوه، او کله چي دي کور ته مېلمه راسي نو پر مخ یې دروازه مه بندوه...

| | |
|---|---|
| خیزو برخوان کسی مهمان مشو | چون رسد مهمان ازو پنهان مشو |
| پورته سه او پر سترخان د چا مېلمه مه سه | کله چي ورسیږي مېلمه له هغه څخه پټ مه سه |
| هرکه مهمان را گرامی میکند | کوششی در نیکنامی میکند |
| هر څوک چي مېلمه تعظیم کوي | کوښښ په نېک نامي کي کوي |
| هرکه مهمانت شود از خاص وعام | پیش او می باید آوردن طعام |
| هر څوک چي مېلمه ستا سي له خاص او عام څخه | په مخ کي د هغه ښايي راوړل د خواړو |
| زانچه داری اندک وبیش ای پسر | برد باید پیش درویش ای پسر |
| له هغه څخه چي لرې یې لږ او ډېر اې هلکه | راوړل ښايي په مخ کي د فقیر اې هلکه |

**د لغاتو حل:** خوان (سترخان)؛ گرامی (عزت / درناوی / احترام)؛ طعام (خواړه / ډوډۍ).

**لنډیز:** ... کوښښ مه کوه چي بې له ضرورته د چا کره مېلمه سې، خو کله چي ستا کره مېلمه راسي، نو هیڅکله مه ځني پټېږه. ځکه څوک چي د مېلمه عزت او درناوی کوي، هغه د خلګو په منځ کي خپل نوم او رنګ ښه کوي. هر څوک چي ستا پر کور مېلمه سي، که خاص وي او که عام، نو باید خواړه او چینباک ورته راوړې. څه لرې، که لږ وي او که ډېر، یوه برخه یې باید مېلمه ته هم راوړې...

| | |
|---|---|
| نان بده برجائیعان بهر خدای | تا دهندت در بهشت عدن جائ |
| ډوډۍ ورکړه و وږو ته له پاره د خدای | تر څو درکړي تا ته په جنت کي د عدن ځای |

باتن عور آن که بخشد جامهٔ | حق دهد اورا زرحمت نامهٔ

بدن ته لوڅ هغه چي وبخښي کالي | خدای ورکوي هغه لره له رحمت څخه لیک

هرکه ثوبی باتن عوری دهد | در دو عالم ایزدش نوری دهد

هر څوک چي کالي وبدن لوڅ ته ورکړئ | په دواړو عالمونو کي خدای ده ته نور ورکوي

گر برآری حاجتِ محتاج را | برسر از اقبال بینی تاج را

که چیري پوره کړې ضرورت د محتاج | پر سر به له بخت څخه ووینې تاج

**د لغاتو حل:** جائعان (د جائع جمع ده، عربي لفظ دئ یعني وږی)؛ بشهت (جنت).

**لنډیز:** د الله تعالی له پاره وږو او تږو خلګو خواړه او اوبه ورکوه، تر څو الله تعالی درته په جنت کي ځای درکړي. څوک چي یو مسکین ته، چي کالي نه لري، کالي ورکړي، الله تعالی به له خپل رحمت سند ورکړي، یعني خامخا به الله تعالی رحم ورباندي کوي. څوک کي لوڅ انسان ته کالي ورکوي، نو الله تعالی ورته په دواړو جهانونو کي نور او روښنايي ورکوي. که چیري د کوم اړمن او محتاج کس اړتیا ورپوره کړې، نو پر خپل سر باندي به د بخت تاج ووینې...

هرکرا باشد بدولت بختیار | خیر وزرد درنهان وآشکار

هر څوک چي وي په دولت سره بختور | خیربه غوره کړي په پټه او ښکاره کي

ای پسر هرگز مخور نان بخیل | کم نشین درعمر برخوان بخیل

اې هلکه! هیڅکله مه خوره ډوډۍ د بخیل | مه کښېنه په عمر کي پر سترخان د بخیل

نان ممسک جمله رنجست وعنا | میشود نان سخی نور وصفا

ډوډۍ د بخیل توله مرض دئ او تکلیف | کیږي ډوډۍ د سخي رڼا او صفايي

تا نخوانندت بخوان کس مرو | درپئی مردار چون کرگس مرو

تر څو چي ونه بلل سې ته سترخان ته د یوه چا مه ځه | په شا پسي د مرداري په مثال د تپوس مه ځه

**د لغاتو حل:** بختیار (د بخت ملګری / بختور)؛ ممسک (کنجوس / بخیل / چوس).

**لنډیز:** ... د کوم چا چي بخت ملګری وي، هغه په پټه او ښکاره خیر او خیرات کوي. خو د بیخل سړي پر سترخان هیڅکله مه کښېنه او ډوډۍ یې مه خوره. ځکه چي د بخیل ډوډۍ تول مرض او وبا ده، د سخي سړي ډوډۍ رڼا او صفایي. تر څو چي دي څوک دعوت نه کړي، د چا مه مېلمه کېږه او د تپوس په شان په مرداري مه پسې کېږه...

| | |
|---|---|
| چشم نیکی از خسیس دون مدار | سقف ویران را تؤاستون مدار |
| امید د نېکی له بخیل ناکاره څخه مه لره | بام خراب پر ستنو مه لره |
| گر کنی خیری تو آن از خود مبین | هرچه بینی نیک بین وبد مبین |
| که چیري کوې نېکي ته هغه له ځانه مه وینه | هر څه چي وینې ښه ووینه او بد مه وینه |

**د لغاتو حل:** چشم (امید / هیله)؛ حسیس (ناکاره / رذیل، مراد بخیل دئ)؛ سقف (چت / بام).

**لنډیز:** ... له بخیل انسان څخه هیڅکله د ښېګني هیله مه لره، او نړېدلی بام په ستنو او میلانو سره مه دروه. کله چي له یو چا سره نېکي وکړې، نو ځان مه غره کوه او د ځان ښېګنه یې مه ګڼه، بلکي دا د الله تعالی احسان او مهرباني وګڼه؛ او هر څه چي وینې، ښه یې وګڼه او بد مه پر وایه.

# در بیان علامات احمق

## د کم عقل د علامو په بیان کي

| | |
|---|---|
| سه علامات دان که در احمق بود | اولاً غافل زیاد حق بود |
| درې علامې وپېژنه چي په احمق کي وي | اول دا چي غافل له ذکر څخه د خدای وي |
| گفتن بسیار عادت باشدش | کاهلی اندر عبادت باشدش |
| ویل ډېر عادت وي د ده | سستي په عبادت وي د ده |

| | |
|---|---|
| ای پسر چون احمق جاهل مباش | یکدم از یاد خدا غافل مباش |
| اې هلکه! په مثال د احمق ناپوه مه اوسه | یو گړی له یاد څخه د خدای غافل مه اوسه |
| هرکه او از یاد حق غافل شود | از حماقت در ره باطل شود |
| هر څوک چې هغه له یاد څخه د خدای غافله سي | له بې عقلۍ څخه په لاره باطله کې سي |

**د لغاتو حل:** احمق (ناپوه / کم عقل)؛ سه (درې / ۳)؛ علامه (نښه / دلیل)؛ بسیار (زیات / ډېر).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د احمق او کم عقل انسان د نښو او علامو په اړه بیان کوي، فرمایي چې د کم عقل او ناپوه انسان درې نښې دي: لومړی دا چې د الله تعالی له ذکر او یاد څخه غافل او ناخبره وي. دویم دا چې ډېرې زیاتې او بې ځایه خبرې کوي؛ او دریم دا چې د الله تعالی په عبادت کې سستي او لټي کوي. نو اې هوښیاره انسانه! د احمق او کم عقل په څېر مه کېږه او یوه شېبه هم د الله تعالی له یاد او ذکر څخه مه غافل کېږه. ځکه چې څوک چې د الله تعالی له ذکر څخه غافل وي، هغه له احمقتوب او ناپوهۍ څخه پر باطله لار روان وي...

| | |
|---|---|
| هیچ از فرمان حق گردن متاب | تا نمانی روز محشر در عذاب |
| هیڅ له فرمان څخه د خدای غاړه مه پیچه | تر څو پاته نه سې په ورځ د محشر په عذاب کې |
| باطلی را ای پسر گردن منه | نقد مردان را بهر کودن منه |
| باطل ته اې هلکه غاړه مه ږده | نقد د سړیانو وهر احمق ته مه ورکوه |
| در قضای آسمانی دم مزن | هر کسی را بیش بین وکم مزن |
| په قضاء آسماني کې ساه مه وهه | هر چا لره ډېر ووینه او کم مه شمېره |
| دست خود را سوی نامحرم میاز | جانب مال یتیمان هم میاز |
| لاس خپل طرف ته د نامحرم مه اوږدوه | طرف ته د مال د یتیمانو یې هم مه غځوه |

**د لغاتو حل:** متاب (مه غړوه / مه اړوه)؛ محشر (هغه میدان چې د قیامت په ورځ خلگ پرې راټولیږي).

**لنډیز:** ... که غواړې چې د محشر په ورځ له عذاب او خطر څخه خوندي پاته سې، نو هیڅکله د الله

تعالی له فرمان څخه مخ مه اړوه. باطل ته غاړه مه ږده او احمق ته د سرپانو خزانه یعني نصیحت مه ورکوه. په تقدیر کي لاسوهنه مه کوه او هر څوک تر ځان لوړ او ډېر وګڼه، ټیټ او کم یې مه ګڼه. خپل لاس دي د نامحرم خوا ته مه اوږده او د یتیمانو شتمنو ته لاس مه ور وړه...

| تا توانی نیز با خود هم مگوی | تا توانی راز با همدم مگوی |
|---|---|
| تر څو کولای سې همداسي یې خپل ځان ته هم مه وایه | تر څو چي کولای سې راز وملګري ته مه وایه |
| بی طمع میباش گرداری تمیز | تا شوی مقبول و آزاد ای عزیز |
| بې تمي واوسه که لرې هوښ | تر څو سې مقبول او آزاد اې عزیزه |

**د لغاتو حل:** همدم (ملګری / دوست)؛ مقبول (د قبول وړ / بختور)؛ تمیز (هوښ / عقل).

**لنډیز:** ... تر څو چي دي وس کار کوي، خپل راز دي دوست او ملګري ته مه وایه او همدا ډول له خپل ځان سره یې هم وایه. او که غواړې چي مقبول او بختور واوسې، نو هیچا ته تمه مه لره.

# در بیان علامات فاسق

## د بدکاره سړي د علامو په بیان کي

| باشد اول دردلش حب فساد | هست فاسق را سه خصلت در نهاد |
|---|---|
| وي اول په زړه کي د ده مینه د فساد | دي بدکاره لره درې خویونه په وجود کي |
| دور دارد خویش را از راه راست | خصلتش ازردن خلق خداست |
| لیري لري ځان له لاري سمي څخه | خوی د ده آزارول د خلګو د خدای دئ |

**د لغاتو حل:** فاسق (بد کاره، هغه چي ناوړه او غلط کارونه کوي)؛ فساد (خرابي / ویراني).

**لنډیز:** په دې لنډ او دوه بیتیز باب کي مصنف رحمة الله علیه د فاسق او ګناهکاره انسان درې نښې بیان کړي دي، فرمایي چي د فاسق په وجود کي درې ناوړه خویونه او صفتونه دي، چي لومړی یې په زړه کي

له فساد او ويجاړۍ سره مينه او شوق لرل دي. دويم دا چي د خلګو آزارول يې عادت وي؛ او دريم دا چي له سمي او حقي لاري څخه ليري ګرځي.

# در بیان علامات شقی

## د بدبخته د علامو په بيان کي

| | |
|---|---|
| هست ظاهر سه علامت در شقی | میخورد دائم حرام از احمقی |
| دي ښکاره درې علامې په بدبخته کي | خوري همېشه حرام له احمقتوب څخه |
| بی طهارت باشد و بیگاه خیز | هم ز اهل علم باشد در گریز |
| بې اودسه وي او ناوخته پاڅي | هم له عالمانو څخه وي په تېښته کي |
| ای پسر مگریز از اهل علوم | تا نسوزد ترا نار سموم |
| اې هلکه! مه تښته له عالمانو څخه | تر څو ونه سوځي تا اور سوځوونکی |
| تا توانی هیچ کس را بد مگوئ | پیش مردم عیب کس هرگز مجوئ |
| ترڅو کولای سې هيڅ کس لره بد مه وايه | په مخ کي د خلګو عيب د چا هيڅکله مه لټوه |
| باطهارت باش وپاکی پیشه کن | وز عذاب گور نیز اندیشه کن |
| له پاکۍ سره اوسه او پاکي عادت کړه | او له عذاب څخه د قبر همداسي انديښنه کوه |

**د لغاتو حل:** شقی (بدمرغه / بې بخته)؛ دائم (همېشه / تل / په پر له پسې توګه)؛ بيګاه (ناوخته).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله عليه د شقي او بد بخته انسان نښې بيانوي، فرمايي چي په بدبخته انسان کي درې ناوړه خويونه وي: لومړی دا چي تل او همېشه حرام خوري. دويم دا چي بې اودسه او ناپاک ګرځي او سهار ناوخته له خوبه راکښېني. دريم دا چي له عالمانو څخه ليري ګرځي. نو له علمانو څخه هېڅکله ليري مه ګرځه، تر څو د دوخ اور دې ونه سوځوي. تر څو چي دې په وس کي وي، هيڅوک

په بدو مه یادوه، او د خلګو په مخ کي د چا عیب بیانوه. پاک اوسه او پاکوالی عادت وګرځوه، او همدا ډول د قبر له عذاب څخه په اندېښنه کي اوسه، یعني د قبر عذاب یاد ولره.

# در بیان علامات بخیل

## د بخیل د علامو په بیان کي

| | |
|---|---|
| سه علامت ظاهر آمد بخیل | باتو گویم یادگیرش ای خلیل |
| درې علامې ښکاره راغلې د بخیل | و تا ته وایم یاد یې ونیسه اې دوسته |
| اولاً از سائلان ترسان بود | وزبرای جوع هم لرزان بود |
| اول دا چي له سوال کوونکو څخه بېرېدونکی وي | او له پاره د لوږي هم رېږدېدونکی وي |
| چون رسد دره بخویش وآشنا | بگزرد زانجا نگوید مرحبا |
| کله چي ورسیږي په لاره کي و قریب او ملګرني ته | تېښتي له هغه ځایه او نه وایي ښه راغلاست |
| نیست ازمالش کسی را فائده | کم رسد باکس زخوانش مائده |
| نه سته له مال څخه د ده هیچا ته فائده | نه رسیږي و یو چا ته له سترخان څخه د ده ډوډۍ |

**د لغاتو حل: بخیل** (کنجوس / هغه چي شتمني ساتي او له مصرف څخه تښتي)؛ خلیل (دوست / محبوب).

**لنډیز:** په دې څلور بیته لړونکي باب کي مصنف رحمة الله علیه د بخیل نښي بیانوي، فرمایي چي د بخیل هم درې ښکاره نښي او علامې دي: لومړی دا چي له سوالګرو څخه په ډار او تېښته کي وي، او دویم دا چي د لوږي له بېري لړزیږي. دریم دا چي کله په لاره کي له دوست او ملګري سره مخ سي، نو د تېښتي هڅه کوي او دوست ته ښه راغلاست نه وايي. د بخیل له شتمنیو څخه هیچا ته ګټه او فائده نه رسیږي، او له سترخان څخه یې هیچا ته یوه ګوله ډوډۍ هم نه رسیږي.

# در بیان قساوت قلب

## د زړه د سختۍ په بیان کې

| | |
|---|---|
| **سخت دل را به علامت یافتم** | **چون بدیدم رو ازو برتافتم** |
| سخت زړي لره درې علامې ما پیدا کړې | کله چي مي ولیدی مخ له دغه څخه ما واړوی |
| **باضعیفان باشدش جور و ستم** | **هم قناعت نبودش بابیش وکم** |
| پر کمزورو باندي وي د ده ظلم او ستم | هم قناعت نه وي د ده له ډېر او لږه سره |
| **موعظت هرچند گوئی بیشتر** | **در دل سختش نباشد کارگر** |
| نصیحت چي ته هر څومره وایې ډېر زیات | په زړه سخت کي د ده نه وي اثر کوونکی |
| **اهل دنیا را بمعنی مرده دان** | **تا نباشی همنشین با مردگان** |
| خاوندان د دنیا په مثال د مړو وبوله | تر څو ونه اوسې ملگری له مړو سره |

**د لغاتو حل:** قساوت (سختي / توروالی)؛ ستم (جبر / ظلم)؛ کارگر (کار کوونکی / اغېزمن).

**لنډیز:** په دې باب کي د هغه چا د نښو او علامو بیان کېږي چي زړه یې سخت سوی او تور سوی وي، وایي چي د سخت زړي انسان درې نښې او علامې دي: لومړی دا چي پر ضعیفو او کمزورو خلگو ظلم کوي، دویم دا چي کوم څه په لاس کي لري، قناعت نه ورباندي کوي. درېیم دا چي هر څومره نصیحت ورته وکړې، د ده پر زړه باندي کوم اثر او اغېز نه کوي. د دنیا اوسېدونکي ټول د مړو په څېر وگڼه، تر څو له مړو سره ملگریتوب ونه وکړې.

# در بیان حاجت خواستن

## د حاجت غوښتلو په بيان کي

| | |
|---|---|
| حاجت خود مجو از زشت روی | آنکه دارد روی خوب از وی بجوی |
| ضرورت خپل مه طلبوه له بد مخي څخه | هغه چي لري مخ ښه له هغه څخه يې طلب کړه |
| مومنی را باتو چون افتاد کار | تا توانی حاجت اورا برآر |
| د يوه مومن چي ستا سره کله ولوېږي يو کار | تر څو کولای سې ضرورت د هغه پوره کړه |
| حاجت خودرا جز از سلطان مخواه | چون نخواهی یافت ازدربان مخواه |
| ضرورت خپل ما سېوا له سلطان څخه مه غواړه | که دي نه کړ ترلاسه له دروازه وان څخه يې مه غواړه |
| ازوفات دشمنان شادی مکن | ازکسی پیش کس آزادی مکن |
| له مړ کېدلو څخه د دښمنانو خوشحالي مه کوه | د يو چا په مخ کي د چا سره بې پروايي مه کوه |

**د لغاتو حل:** حاجت (ضروت / اړتيا)؛ زشت (پست / ټيټ / ناکاره)؛ آزادي (خپلواکي / له غلامۍ خلاص).

**لنډيز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله عليه د اړتيا غوښتلو په اړه بيان کوي، يعني چي اړتيا او ضرورت بايد له چا څخه وغوښتل او له چا څخه نه، فرمايي چي له بدمخي او بد ذاته انسان څخه د اړتيا د پوره کولو غوښتنه مه کوه، بلکي له هغه چا څخه يې وغواړه چي ښه مخ ولري، يعني د غوره اخلاقو څښتن وي. د يوه مسلمان ورور چي کله تا ته ضرورت او اړتيا پيدا سې، نو څومره چي دي په وسه پوره، مرسته ورسره وکړه. البته د خپل حاجت او ضرورت د پوره کولو غوښتنه يوازي له باچا څخه کوه، که يې له باچا څخه ترلاسه نه کړې، نو له دروازه وان (چوکيدار) څخه يې مه غواړه. همدا ډول د دښمن په مړينه خوښي مه کوه، او د چا په مخ کي له چا سره بې پروايي مه کوه.

# در بیان قناعت

## د قناعت په بیان کي

| با قناعت | ساز | دائم | ای پسر | گرچه | هیچ | از فقر | نبود | تلخ تر |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| له قناعت سره | جوړ سه | همېشه | اې هلکه | که څه هم | هېڅ | له فقیرۍ څخه | نه وي | ډېر ترخه |

| هر سحر | برخیز | واستغفار | کن | فرصتی | داری | که اکنون | کار کن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هر سهار | پاڅېږه | او استغفار | کوه | فرصت | لرې | چي اوس نو | کار وکړه |

| همنشین | خویش را | غیبت | مکن | غیر | شیطان | بر کسی | لعنت مکن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| د ملګري | خپل | غیبت | مه کوه | ماسېوا | له شیطان څخه | پر چا | لعنت مه کوه |

| چون | شود | هر روز | در عالم | جدید | از گناهان | توبه | می باید | گزید |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| کله چي | سي | هره ورځ | په دنیا کي | نوې | له ګناهونو څخه | توبه | بنایي | کښل |

**د لغاتو حل:** قناعت (په لږ څه راضي کېدل)؛ همنشین (هم ناستی، مراد ملګری او دوست دئ).

**لنډیز:** مصنف رحمة الله علیه په دې باب کي د قناعت په اړه بیان کوي، فرمایي چي قناعت خوی او عادت جوړ کړه، که څه هم فقیري او پر لږ څه راضي کېدلو سخت او ترخه وي. هر سهار وختي له خوبه راکښېنه او له الله تعالی څخه بخښنه غواړه، او دا چي اوس فرصت او چانس لرې، نو کار وکړه او چمتووالی ونیسه. د خپل دوست او ملګري غیبت مه کوه، او له شیطان پرته پر بل چا لعنت مه وایه. کله چي هره ورځ رانوې کېږي، نو له ګناهونو څخه توبه باسه او الله تعالی ته رجوع کوه...

| هر کرا | ترسی | نباشد | از خدا | حق | بترساند | زهر چیزی | ورا |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هر چا لره چي | ېېره | نه وي | له خدای څخه | خدای | ېېروي | له هر شي څخه | هغه |

تا توانی حاجت مسکین برآرد | تا برارد حاجتت پروردگار

تر څو کولای سې ضرورت د غریب پوره کړه | تر څو پوره کړي ضرورت ستا الله تعالی

هست مالت جمله درکف عاریت | گر بماند ازتو باشد زاریت

دئ مال ستا ټوله په لاس کي خواستي | که چیري پاته سي ستا څخه وي به عاجزي ستا

عاریت را باز می باید سپرد | هیچکس دیدی که زر با خود ببرد

خواستي شی بیرته بنایي سپارل | یو څوک دي لیدلي چي زربې له خان سره یووړه

**د لغاتو حل:** مسکین (نېستمن / بې چاره)؛ کف (ورغوی، مراد لاس دئ)؛ عاریت (خواست).

**لنډیز:** ... څوک چي له الله تعالی څخه ببره او خوف نه لري، الله تعالی به یې له هر شي څخه په زړه کي دار او ببره ورواچوي. څومره چي دي په وسه پوره وي، د غریبو او بې چارو اړتیاوي او ضرورتونه ور پوره کوه، تر څو الله تعالی ستا اړتیاوي او ضرورتونه در پوره کړي. ستا شتمنی ټولي عاریتي او خواستي دي، یعني د الله تعالی له لوري درکول سوي دي، نو که چیري در څخه پاته سي، نو دا به ستا عاجزي وي. په خواست غوښتل سوی شی باید بیرته خپل مالك ته وسپارل سي، ایا تا یو داسي څوک لیدلی دئ چي له دنیا څخه یې له ځان سره زر او شتمنی وړي وي؟

حاصل ازدنیا چه باشد ای امین | نه گزی کرپاس وسه گز از زمین

حاصل له دنیا څخه څه وي اې امینه | نهه گزه توکر او درې گزه له مځکي څخه

هرچه دادی دره حق آن تست | آنچه ماند ازتو بلای جان تست

هر څه چي ورکړې په لاره کي د خدای هغه ستا دي | هغه څه چي پاته سي له تا څخه بلا د روح ستا ده

هرکه با اندک زحق راضی شود | حاجت اورا خدا قاضی شود

هر څوک چي په لږ شي له خدایه خوشحاله سي | ضرورت د هغه لره خدای پوره کوونکی سي

| هست دنیا برمثال قنطره | بگذر ازوی گرتوداری روبره |
|---|---|
| ده دنیا پر مثال د پُله | تېر سه له هغه څخه که ته لرې مخ پر لارې |

**د لغاتو حل:** نُه (نهه / ۹)؛ گز (د اوږدوالي د اندازه کولو واحد)؛ کرپاس (یو ډول توکر چي کف ترې جوړېږي).

**لنډیز:** ... د دنیا وروستی لاسته راوړنه نهه گزه کفن او درې گزه مځکه ده، بل هیڅ نه. یوازې هغه څه ستا گټل کېږي چي د الله تعالی په لار کي یې مصرف کړې، څه چي دي څخه پاته کېږي، هغه ستا د روح بلا ده، ځکه وارثین به دي یې په گناهونو کي استعمالوي او گناه به یې تا ته هم رسیږي. څوک چي له الله تعالی څخه په لږ څه راضي سي، نو الله تعالی به یې ټول ضرورتونه او اړتیاوي ورپوره کړي. دنیا د یوه پُله مثال لري چي خلگ ورباندي تېرېږي، نو ته هم د لاروي په څېرورباندي تېر سه...

| هرکه سازد برسر پل خانهٔ | نیست عاقل او بود دیوانهٔ |
|---|---|
| هر څوک چي جوړ کړي پر سر د پله کور | نه دئ هوښیار هغه دئ لېونی |
| ازخدا نبود رواجستن غنا | هست مومن را غنا رنج وعنا |
| له خدای څخه نه ده روا غوښتل د شتمنی | ده مومن لره شتمني تکلیف او سختي |
| فقر ودرویشی شفای مومن است | زانکه اندروی صفای مومن ست |
| فقر او ملنگي روغتیا د مومن ده | ځکه چي په دې کي صفایي د مومن ده |
| مال واولادت بمعنی دشمنند | گرچه نزدیک تو چشم روشنند |
| مال او اولاد ستا په مثال د دښمن دي | که څه هم په نزد ستا سترگي روښانه دي |

**د لغاتو حل:** خانه (کور / خونه / استوگنځای)؛ جستن (طلبول / غوښتل)؛ شفا (روغتیا / صحت).

**لنډیز:** ... نو څوک چي د یوه پله پر سر کور جوړوي، هغه ته خلگ کم عقل او لېونی وایي. له الله تعالی څخه د شتمن کېدلو غوښتنه کول ښه نه ده، ځکه چي د مومن شتمني تکلیفونه او خواري دي. غربت او نېستي د مومن له پاره شفا ده، ځکه چي په دې سره د هغه نفس او زړه صفا کېږي. ستا شتمنی او اولادونه ستا د دښمن په مثال دي، که څه هم ستا د سترگو ورښنایي وي...

| | |
|---|---|
| انما اموالکم رایادگیر | مال وملک این جهان برباد گیر |
| انما أموالکم (ایت مبارک) یاد ونیسه | مال او ملک د دې دنیا برباد وګڼه |
| مرد ره را بُودِ دنیا سود نیست | هرگزش اندیشهٔ نابود نیست |
| سړي د لاري لره موجودیت د دنیا ګټه نه ده | هیڅکله ده لره اندېښنه د خوارۍ نه سته |
| هرکه ازصدقش دل صافی بود | خرقهٔ بالقمهٔ کافی بود |
| د هر چا چي له صدق څخه زړه صفا وي | یوه چپنه له یوې ګولې سره ورته بس ده |
| هرکه دربند زیادت می شود | دور از اهل سعادت می شود |
| هر څوک چي په فکر کي د زیاتوب کېږي | لیري له خاوندانو څخه د نېکمرغۍ کېږي |

**د لغاتو حل:** مرد ره (د لاري سړی، مراد یې سالک او مرید دئ)؛ خرقه (چپنه / بالا پوښ).

**لنډیز:** ... د ﴿إِنَّمَا أَمْوَالُكُمْ وَأَوْلَادُكُمْ فِتْنَةٌ﴾ (تغابن: ۱۵). آیت په یاد ولره، یعني الله تعالی فرمایي چي بې شکه ستاسي شتمنی او ستاسي اولادونه فتنه ده. او د دې دنیا شتمنی او دولت برباد وګڼه. سالک نه د دنیا سته او ناسته هیڅ توپیر نه لري، څکه هغه هیڅکله د خوارۍ او تکلیفی په اندېښنه کي نه وي. د کوم چي په رښتیا سره زړه پاک او سپېڅلی وي، نو د هغه له پاره یوه جوړه کالي او یوه ګوله ډوډۍ بس او کافي وي. خو کوم څوک چي د دنیا د زیاتېدلو په فکر کي وي، هغه له نېکمرغانو څخه نه دئ...

| | |
|---|---|
| بندگان حق چوجان را باختند | اسپ همت تا ثریا تاختند |
| بندګان د خدای چي کله روح وبایلي | آس د همت یې تر ثریا پوري وځغلي |
| تا نه بازی دررهِ حق هرچه هست | آنچه می باید کجا آید بدست |
| تر څو ونه بایلې په لاره کي د خدای هر څه چي دي | هغه څه چي ضروري دي کله راځي په لاس |

**د لغاتو حل:** باختند (وبایلي / له لاسه ورکړي)؛ همت (عزم / اراده / ستره موخه).

**لنډیز:** ... د الله تعالی سپېڅلي بندګانو چي د هغه جل جلاله په لاره کي روح ورکړي، نو د همت آس تر ثریا (کوثر / د آرام اوسېدلو تر ځای) پوري وځغلي. تر څو چي هغه ټول څه د الله تعالی په لار کي ونه

ښندې چي په لاس یې لرې، نو هغه څه چي باید په لاس یې راوړې، نه سې ترلاسه کولای.

# دربیان نتائج سخاگوید

## د سخا د گټو په بیان کي وایي

| | |
|---|---|
| در سخا کوش ای برادر در سخا | تا بیابی ازپس شدت رخا |
| په سخا کي کوښښ کوه اې وروره په سخا کي | تر څو ترلاسه کړې وروسته تر سختۍ آساني |
| باش پیوسته جوانمرد ای اخی | زانکه نبود دوزخی مرد سخی |
| اوسه همېشه /ځوانمرده اې وروره | ځکه چي نه وي دوږخي سړی سخي |
| دررخ مرد سخی نور وصفاست | زانکه درجنت قرین مصطفی ست |
| په مخ کي د سړي سخي نور او صفایي وي | ځکه چي په جنت کي ملگری د مصطفی وي |
| حق تعالی بردر جنت نوشت | اینکه جای اسخیا باشد بهشت |
| خدای تعالی پر دروازه د جنت لیکلي دي | دا چي ځای د سخیانوبه وي جنت |

**د لغاتو حل:** نتائج (د نتیجه جمع ده، یعني پایله / وروستۍ لاسته راوړنه)؛ رخا (آرامي / هوساینه).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د سخاوت د لاست راوړنو او پایلو په اړه بیان کوي، فرمایي چي اې انسانه! په سخاوت کي هڅه او کوښښ کوه، تر څو تر هري سختۍ وروسته راحت او آرامي ترلاسه کړې. تل مېړنی او ځوانمرده اوسه، ځکه چي سخي او مېړنی انسان دوږخ ته نه ځي. د سخي سړي په مخ کي نور ځلا وي، ځکه چي په جنت کي به د رسول الله صلی الله علیه وسلم ملگری وي. الله تعالی د جنت پر دروازه لیکلي دي چي د سخیانو خلگو ځای جنت دئ...

| | |
|---|---|
| اسخیارا باجهنم کار نیست | جای ممسک جزدرون نار نیست |
| سخیانو لره له دوږخ سره کار نه سته | ځای د بخیل ماسېوا له اوره څخه نه دئ |

| | |
|---|---|
| کار اهل بخل را تلبیس دان | در جهنم همدم ابلیس دان |
| کار د خاوندانو د بخل تګي وبوله | په دوږخ کي يې ملګري د شيطان و بوله |
| هیچ ممسک نگذرد سوی بهشت | بلکه با او کی رسد بوی بهشت |
| هيڅ بخيل نه تېرېږي طرف ته د جنت | بلکه هغه ته کله رسيږي بوی د جنت |
| آنکه میخوانند مرا او را سقر | اهل کِبر و بخل را باشد مقر |
| هغه چي ويل کيږي خاص هغه لره سقر | خاوندانو د کبر او بخل لره وي خای داوسېدو |

**د لغاتو حل:** اهل بخل (د بخل څښتن، مراد يې بخيل دئ)؛ تلبيس (لباس / چالاکي / دوکه کول).

**لنډيز:** ... سخيان له دوږخ سره هيڅ کار نه لري، خو د بخيل څای به د دوږخ اور وي. د بخيلانو کار دوکه کول او تګي کول دي، او په دوږخ کي به له شيطان سره يو څای او ملګري وي. هيڅ يو بخيل د جنت خوا ته نه سي تېرېدلای، بلکي د جنت بوی يې هم تر سږمو نه رسيږي. د بخيلانو او کبرجنو خلګو څای به هغه ستر او دردناک عذاب لرونکی دوږخ وي چي د سقر په نامه يادېږي...

| | |
|---|---|
| ای پسر در مردمی مشهور باش | از بخیلی وز تکبر دور باش |
| اې هلکه! په خوانمردی کي مشهوره اوسه | له بخيلی او له مغروری څخه ليري اوسه |
| با سخا باش و تواضع پیشه گیر | تا شود روی دلت بدر منیر |
| له سخا سره اوسه او عاجزي عادت ونيسه | تر څو سي مخ د زړه ستا سپوږمی غوندي |

**د لغاتو حل:** مردمی (سړيتوب / خوانمردي / مهرانه)؛ تواضع (عاجزي / خاکساري)؛ بدر منير (سپوږمی).

**لنډيز:** ... نو اې انسانه! په څوانمردی او مهرانه کي مشهوره اوسه. او له او تکبر څخه څان ليري ساته. سخي اوسه او عاجزي غوره کړه، تر څو د زړه مخ دي د سپوږمی په څېر ورښانه او صفا وګرځي.

# در بیان کارهای شیطانی

## د شیطاني کارونو په بیان کي

| | |
|---|---|
| چار خصلت فعل شیطانی بود | داند اینها هر که رحمانی بود |
| څلور خویونه کارونه شیطاني وي | پوهیږي په دې هر څوک چي رحماني وي |
| عطسه مردم چو بگذشت ازیکی | باشد آن از فعل شیطان یکی |
| ترچی د سړي چي کله تېر سي له یوه څخه | وي دغه له کاره د شیطان څخه یو |
| خون بینی نیز از شیطان بود | زانکه ظاهر دشمن انسان بود |
|ویني د پوزي همداسي له شیطان څخه وي | ځکه چي ښکاره دښمن د انسان دئ |
| خامیازه فعل شیطانست وقی | ای پسر ایمن مباش ازمکروی |
| سُګلی کار د شیطان دئ او قی | اې هلکه! بې غمه مه اوسه له چمبازۍ څخه د ده |

**د لغاتو حل:** چار (چهار: څلور / ۴)؛ رحمانی (رحمان ته منسوب / د الله تعالی د لاري سړی).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د شیطان د ځینو ناوړه کارونو یادونه کوي، فرمایي چي څلور شیان د شیطان له کارونو څخه دي او په دې هغه څوک ښه پوهیږي چي له الله تعالی سره مینه او محبت لري. لومړی دا چي د انسان ترچی تر یوه زیات سي، نو دا د شیطان له کارونو څخه دئ. همدا ډول د پزي ویني کېدل همد د شیطان له کارونو څخه دي، ځکه چي شیطان د انسان ښکاره دښمن دئ. همدا ډول سُګلی کول او قی وهل له شیطاني کارونو څخه دي، نو د هغه لعین له فرېب او چم څخه هیڅکله مه بې غمه کېږه.

# دربیان علامات منافق

## د منافق د علامو په بیان کي

| | |
|---|---|
| دور باش ای خواجه اهل نفاق | در جهنم دان منافق را وثاق |
| لیري اوسه اې صاحبه له خاوندانو څخه د نفاق | په دوږخ کي وبوله منافق لره کور |
| سه علامت در منافق ظاهر است | زان سبب مقهور قهر قاهر ست |
| درې علامې په منافق کي ښکاره دي | له دې سببه مقهور د قهر د خدای دئ |
| وعده های او همه باشد خلاف | قول او نبود بغیر از کذب ولاف |
| ژمني د ده تولي وي خلاف | خبري د ده نه وي بې له دروغو او باتو څخه |
| مومنان را کم اعانت میکند | هم امانت را خیانت میکند |
| مومنانو لره کومک نه وي | هم په امانت کي خیانت کوي |

**د لغاتو حل:** منافق (هغه چي زړه او خوله یا ظاهر او باطن یې سره مخالف وي، یعني په زړه کي یې یو څه وي، خو په خوله بل څه وایي / په خوله ځان مسلمان ښیي، خو په زړه کي کافر وي).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د منافق ځیني نښې او علامې بیانوي، فرمایي چي له منافقانو څخه لیري اوسه، ځکه چي د منافق کور او استوګنځای دوږخ دئ. په منافق کي درې نښې او علامې دي، له همدې امله د الله تعالی قهر او غضب ورباندي سوی دئ. یو دا چي پر ژمنه او وعده باندي وفا نه کوي، دویم دا چي په خبرو کي دروغ وایي او لافي وهي. دریم دا چي په امانت کي خیانت کوي. منافق له مخلصو مومنانو سره هیڅ مرسته او کومک نه کوي...

| | |
|---|---|
| نیست در وعده منافق را وفا | زان نباشد در رخش نور وصفا |
| نه سته په وعده کي د منافق وفا | ځکه نو نه وي په مخ کي د هغه نور او صفایي |

| | |
|---|---|
| تا نه پنداری منافق را امین | نیست باداشرش ازروی زمین |
| چي ونه گڼې منافق امانت ساتونکی | نيست دي وي شر د ده له مخ څخه د مځکي |
| ازمنافق ای پسر پرهیز کن | تیغ را ازبهر قتلش تیز کن |
| له منافق څخه اې هکله پرهېز وکړه | توره له پاره د مرگ د ده تېره کړه |
| بامنافق هرکه همره می شود | منزل او درتگ چَه می شود |
| له منافق سره هر څوک چي ملگری کېږي | ځای د هغه په بېخ کي د څاه کېږي |

**د لغاتو حل:** وعده (ژمنه / قول)؛ امین (امانت ساتونکی)؛ تیغ (توره / چاړه).

**لنډيز:** ... منافق هيڅکله پر خپله کړې ژمنه باندي وفا نه کوي، له همدې امله يې په مخ کي هيڅ نور او روښانتيا نه وي. منافق هيڅکله امانت ساتونکی مه گڼه او امانت مه ورسپاره. الله تعالی دي مځکه د منافقانو له شره څخه خلاصه کړي. له منافق څخه تښته او ليري ترې گرځه او خپله توره دي د هغه د وژلو له پاره همېشه تېره لره. څکه څوک چي له منافق سره ملگری سي، هغه به هم د هلاکت په کنده کي ولوېږي او تباه او برباد به سي.

## در بیان علامات متقی

### د پرهېزگاره د علامو په بيان کي

| | |
|---|---|
| سه علامت باشد اندر متقی | کی بود نسبت تقی را باشقی |
| درې علامې وي په تقواداره کي | کله وي نسبت تقواداره لره په بدبختی سره |
| کم رود ذکر دروغش برزبان | ازطریق کذب باشد برکران |
| نه ځي يادول د درواغو د ده پر ژبه | له لاري څخه د درواغو وي پر څنگ |

| از حلال و پاک هم گیرند گام | تا نیفتند اهل تقوی در حرام |
|---|---|
| له حلالو او پاکو څخه هم نیسي قدم | تر څو ونه لوېږي خاوندان د تقوی په حرامو کي |

**د لغاتو حل:** متقی (تقوا لرونکی / پرهېزگاره / ځان ساتونکی)؛ شقی (شقاوت / بدبختي).

**لنډیز:** په دې باب کې د پرهېزگاره او تقوا داره انسان په اړه بیان کېږي، وایي چې د تقواداره سړي درې علامې دي او څوک چې تقوا داره وي، هغه هیڅکله بد بخته کېدای نه سي. لومړی دا چې په خپله ژبه سره هیڅ درواغ نه وایي، او د درواغو له ویلو څخه لیري او گوښه گرځي. بل دا چې متقیان له ښینو پاکو او حلالو شیانو څخه هم ډډه او پرهېز کوي، تر څو په حرامو کي ونه لوېږي.

# در بیان علامات اهل جنت

## د جنت د خاوندانو د علامو په بیان کي

| هر کرا باشد سه خصلت در سرشت | باشد آنکس بیشک از اهل بهشت |
|---|---|
| هر چا لره چي وي درې خویونه په وجود کي | وي به هغه بې له شکه له خاوندانو څخه د جنت |
| شکر در نعما و صبر اندر بلا | میدهد آئینهٔ دل را جلا |
| شکر په نعمتونو کي او صبر په مشکلاتو کي | ورکوي هنداري ته د زړه خلا |
| هر که مستغفر بود اندر گناه | حق ز نار دوزخش دارد نگاه |
| هر څوک چي توبه گاره وي په گناه کي | خدای له اوره څخه د دوږخه دی لري خوندي |
| هر که ترسد از اله خویشتن | خواهد او عذر گناه خویشتن |
| هر څوک چي ببرېږي له خدای څخه خپل | غواړي هغه بخښنه د گناه خپلي |

**د لغاتو حل:** اهل جنت (د جنت څښتنان، مراد یې جنتیان دي)؛ مستغفر (بخښنه غوښتونکی / توبه گار).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د جنتیانو د نښو او علام یادونه کوي، فرمایي چي څوک

چې په خپل وجود کې درې خويونه او عادتونه ولري، نو هغه به له کوم شک پرته جنتي وي. لومړی پر نعمتونو باندې شکر اداء کول او پر ستونزو او مشکلاتو باندې صبر کول، چې دا شيان د زړه هينداري ته ځلا او رڼا بخښي. دويم دا چې څوک پر گناهونو باندې توبه کښونکی او بخښنه غوښتونکی وي، الله تعالی به يې د دوزخ له اوره خوندي وساتي. او درېيم دا چې څوک له الله تعالی څخه بېرېدونکی وي، نو د خپلو گناهونو بخښنه او مغفرت غواړي...

| | |
|---|---|
| معصیت را هر که پی در پی کند | ایزدش از اهل جنت کی کند |
| گناه هر څوک چې پر له پسې ورکوي | خدای د ده به له خاوندانو څخه د جنت کله کړي |
| ای پسر دائم باستغفار باش | وزبدان ومفسدان بیزار باش |
| اې هلکه! همېشه له استغفار سره اوسه | او له بدانو او بدکارانو څخه بېزاره اوسه |
| گر کنی خیری بدست خویش کن | خیر خودرا وقف بردرویش کن |
| که چيرې کوې خير په لاس خپل يې وکړه | خير خپل وقف پر فقير کړه |
| یکدرم کانرا زدست خود دهند | به بود زان کزپس او صد دهند |
| يو درهم چې هغه له لاسه خپل ورکړي | ښه وي تر دې چې وروسته تر ده سل ورکړي |

**د لغاتو حل:** معصيت (نافرماني / گناه)؛ پی در پی (پر له پسې / په دوامداره توگه)؛ استغفار (بخښنه غوښتل).

**لنډيز:** ... خو کوم څوک چې په پر له پسې ډول گناهونه کوي، نو الله تعالی به يې څنگه له جنتيانو څخه ورگرځوي. نو اې انسانه! همېشه مغفرت غوښتونکی او له بدیو او بد کارانو څخه لېرې اوسه. که کوم د خير کار کوې، نو په خپل لاس يې وکړه، او خپل خير او ښېگڼه يوازې له فقيرانو او غريبانو سره کوه. ځکه هغه يوه افغانۍ چې په خپل لاس يې خيرات کړې، تر هغو سلو افغانيو ښه ده چې تر تا وروسته يې نور د پسې خيراتوي...

| | |
|---|---|
| گر به بخشی خود یکی خرمائی تر | بهتر از بعد تو صد مثقال زر |
| که چيرې وبخښې خپله يوه خورما تازه | ډېره ښه ده له وروسته تر تا سل مثقاله سرو زرو |

| | |
|---|---|
| هرچه بخشدی مکن با او رجوع | گر زپا افتادهٔ از دست جوع |
| هر څه چې دې وبخښې مه کوه و هغه ته رجوع | که څه هم له پښو ولوېږې له لاسه د لوږې |
| این بدان ماند که شخصی قی کند | باز میل خوردن او کی کند |
| دا وګڼه په مثال چې يو څوک قی وکړي | بيا لېوالتيا د خوړلو د دنه کله کوي |
| با پسر گرچیزی بخشد پدر | میرسد گرباز گیرد زان پسر |
| و زوی ته که چيري يو شی وبخښي پلار | رسېږي (حق لري) که يې بېرته اخلي له هغه زوی څخه |
| ای پسر شادی زمال وزر مجوی | آنچه کس را دادهٔ دیگر مجوی |
| اې هلکه! خوشحالي له مال او زرو څخه مه لټوه | هغه څه چې چا ته دې ورکړي دي بېرته يې مه طلبوه |

**د لغاتو حل:** تر (لنده، مراد يې تازه ده)؛ رجوع (راګرځېدل / بېرته غوښتل)؛ جوع (لوږه).

**لنډيز:** ... که چيري په خپل لاس يوه تازه خورما خيرات کړې، نو دا تر دې ښه ده چې تر مرګ وروسته دې وارثان صل مثقاله سره زر درپسې خيرات کړي. کوم څه چې يو وار يو چا ته وبخښې، بيا که د لوږې له لاسه له پښو ولوېږې، هم يې بېرته مه غواړه. دا کار داسې وګڼه لکه يو څوک چې قی ووهي او خوا وګرځوي، نو بيا يې کله بېرته خوړلو ته زړه ښه کوي. لېکن پلار که چيري خپل زوی ته يو شی ورکړي، نو د بېرته اخيستلو حق لري. اې انسانه! خوښي او سوکالي په شتمنيو او پيسو کې مه لټوه، او څه چې يو چا ته ورکړې، بېرته يې مه غواړه.

## در بیان آنکه در دنیا ازان خوش نباید بود

### د هغو شيانو په بيان کې چې په دنيا کې خوښي ترې نه ښايي

| | |
|---|---|
| شادیٔ دنیا سراسر غم بود | سود اورا در عقب ماتم بود |
| خوشحالي د دنيا توله غم دئ | فائده د هغه په آخر کې غم وي |

نهی لاتفرح زقرآن گوش دار / جای شادی نیست دنیا هوشدار

منعه د "لا تفرح" ته له قرآن څخه غوږ ولره / ځای د ښادۍ نه ده دنیا هوښ ولره

شادمانی را ندارد دوست حق / این سخن دارم زاستادان سبق.

خوشحالي نه لري خوښنه خدای تعالی / دا خبره لرم له استاذانو څخه سبق

گر فرح داری زفضل حق رواست / لیک ازدنیا فرح جستن خطاست

که چیري خوشحالي لرې له مهربانۍ څخه د خدای روا ده / لېکن له دنیا څخه خوشحالي لټول غلطي ده

**د لغاتو حل:** سراسر (له یوه مخه / په یومخیز ډول)؛ عقب (په آخر کي / په پای کي)؛ ماتم (ویر / غم).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د هغو شیانو په اړه بیان کوي چي په دنیا کي باید څوک خوښي په ونه کړي، فرمایي چي د دنیا ښادۍ او خوشحالۍ له یوه مخه غمونه دي، ځکه چي د هري ښادۍ او خوشحالۍ پایله او نتیجه غم راوزي.دا آیت یاد ولره چي ﴿لَا تَفْرَحْ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْفَرِحِيْنَ﴾ (القصص: ٧٦) یعني تاسي (بې ځایه) خوښي مه کوئ، بېشکه الله تعالی (بې ځایه) خوښي کوونکي نه خوښوي. نو پوه سه چي دا دنیا د خوښۍ او خوشحالۍ ځای نه دئ. الله تعالی بې ځایه خوشحالي نه خوښوي، دا خبره مي له خپلو استاذانو څخه اورېدلې ده. هو! که چیري د الله تعالی په فضل او رحمت سره خوښ او خوشحاله یې، یعني په دې خوښ یې چي الله تعالی رحیم او مهربان ذات دئ، نو پروا نه لري. لېکن په دنیا او دولت سره خوښ او خوشحاله اوسېدل تېروتنه ده...

ای پسر بامحنت وغم خوی کن / روی دل را جانب دلجوی کن

اې هلکه! له خوارۍ اِو غم سره عادت وکړه / مخ د زړه طرفه ته د جانان کړه

حزن واندوه هست قوت بندگان / غم شود یار فرح جویندگان

غم او اندېښنه ده خوراک د بندگانو / غم کېږي ملگری د خوشحالۍ لټوونکو

ازچه موجودی بیندیش ای پسر / هرکسی دارد غم خویش ای پسر

له څه څخه پیدا یې وگوره اې هلکه! / هر څوک لري غم خپل اې هلکه!

کرد ایزد مرترا نیست هست | از برای آنکه باشی حق پرست

کړې خدای خاص ته له نیست څخه پیدا | له پاره د دې چې اوسې د خدای عبادت کوونکی

تا تو باشی بندهٔ معبود باش | با حیا وُ با سخا وُ وجود باش

ترڅو چې ته يې بنده د خدای تعالی اوسه | له حیا او له سخا او جود سره اوسه

**د لغاتو حل:** محنت (خواري / تکلیف / سختي)؛ دلجوی (زړه غوښتونکی / جانان، مراد الله تعالی دئ).

**لنډیز:** ... ځان له سختیو او ستونزو سره عادت کړه او د زړه مخ دي د الله تعالی لوري ته وګرځوه. غمونه او اندېښنې د بندګانو خوراک دئ، او غم د هغه چا ملګری کیږي چې د بې ځاي خوښۍ په لټه کې وي. فکر وکړه چې له څه شي څخه پیدا سوی یې؟ هر څوک خپل غمونه او مشکلات لري. الله تعالی ته له نېست څخه هست ته راوایستلې، خاص د دې له پاره چې د هغه جل جلاله عبادت وکړې. نو تر څو چې ژوندی یې د الله تعالی بنده اوسه او با حیا او سخي اوسه.

# در بیان نصائح ونتائج دینی ودنیوی فرمائد

## د ديني او دنيوي ګټو او نصيحتونو په بيان کي فرمايي

خواب کم کن روز اول ای پسر | نفس را بدخو میاموز ای پسر

خوب مه کوه په اول کي د ورځي اې هلکه! | نفس لره بد خويي مه زده کوه اې هلکه!

آخر روزت نکو نبود منام | پیشتر از شام خواب آمد حرام

په آخر کي د ورځي ستا ښه نه وي خوب | مخکي تر ماښامه خوب راغلی حرام

اهل حکمت را نمی آید صواب | درمیان آفتاب سایه خواب

خاوندانو د حکمت لره نه راځي ښه | په منځ کي د لمر د سايې خوب

| دست را بر رخ زدن شوم ست شوم | استماع علم کن اهل علوم |
|---|---|
| لاس پر مخ باندي وهل بد دئ بد | اورېدل د علم کوه له خاوندانو څخه د علم |

**د لغاتو حل:** روز اول (مراد د ورځې پيل دئ، يعني سهار وختي)؛ بد خو (بد اخلاقه).

**لنډيز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله عليه ديني او دنيوي ګټې او لاسته راوړني بيانوي، فرمايي چې سهار د لمر ختلو پر وخت مه بيدېږه، او نفس دې بد خويه او بد اخلاقه مه جوړوه. همدا ډول د ورځې په آخير کې يعني مابنام د لمر لوېدلو پر وخت هم خوب ښه نه دئ، او په هغه وخت کې چې لمر پر سر ودرېږي، يعني د زوال پر وخت هم بايد خوب ونه کړل سي. پر لاس باندې مخ تکيه کول بد دئ، ځکه چې دا د غفلت ښکارندويي کوي، له عالمانو څخه علم زده کړه...

| ای پسر هرگز مرو تنها سفر | باشدت برفتن سفر تنها خطر |
|---|---|
| اې هلکه! هيڅکله مه کوه يوازې سفر | وي تا ته په تللو کې په سفر يوازې خطر |
| شب در آئينه نظر کردن خطاست | روز اگر بيني توروی خود رواست |
| د شپې په هينداره کې نظر کول غلطي ده | د ورځې که چيرې وينې ته مخ خپل روا دئ |
| خانهٔ گر تنها وتاريکت بود | مونسے بايد که نزديکت بود |
| کور که چيرې يوازې او تاريک ستا وي | يو ملګری ښايي چې نيژدې ستا سره وي |
| دست کم رازن تو در زير زنخ | نزد اهل علم سرد آمد چو يخ |
| لاس مه وهه ته په لاندې کې د زنې | (دا خبر) په نزد د خاوندانو د علم يخه راغله په مثال د يخې |

**د لغاتو حل:** مونيس (ملګری / خواخوږی / همدرد)؛ زير زنخ (لاندې تر زنې).

**لنډيز:** ... هيڅکله يوازې په سفر مه ځه، ځکه چې د يوازې والي په سفر کې خطر وي. همدا رنګه دشپې په هينداره کې مه ګوره، ځکه دا خطا ده، د ورځې که خپل په هينداره کې ګورې، پروا نه لري. په يوازې او تاريک کور کې مه اوسه، بلکې يو ملګری بايد خامخا در سره وي. همدا ډول لاس تر زنه مه کښېږده، دا خبره د عالمانو په اند ډېره ښه ده...

| | |
|---|---|
| چارپایان را چو بینی در قطار | درمیان شان نیائی زینهار |
| حیوانان چي کله ووينې په قطار کي | په منځ کي د هغو مه راځه خامخا |
| تا فزائد قدر وجاهت را خدا | روز و شب میباش دائم در دعا |
| ترڅو زيات کړي قدر او مرتبه ستا خدای پاک | ورځ او شپه اوسه همېشه په دعاء کي |
| تا شود عمرت زیاده درجهان | رو نکوئی کن تو با خلق جهان |
| تر څو سي عمر ستا زيات په جهان کي | څه! ښه کوه ته له خلګو سره د دنيا |
| تا نکاهد روزی در روزگار | معصیت کم کن بعالم زینهار |
| تر څو کمه نه سي روزي ستا په زمانه کي | ګناه مه کوه په عالَم کي خامخا |

**د لغاتو حل:** چارپایان (څلور پښې لرونکي، مراد يې حيوانات دي)؛ معصيت (ګناه / نافرماني).

**لنډيز:** ... کله چيري حيوانان پر يوه لاره روان دي، نو هيڅکله د هغو په منځ کي مه تېرېږه، بلکي صبر وکړه چي هغوی تېر سي. که غواړې چي الله تعالی دي عزت او مرتبه زيات کړي، نو شپه او ورځ لاس په دعاء اوسه. او که غواړې چي په دنيا کي دي عمر زيات سي، نو له خلګو سره ښه او نېکي کوه. که غواړې چي په رزق او روزي کي دي کمی رانه سي، نو هيڅکله د الله تعالی نافرماني او ګناه مه کوه...

| | |
|---|---|
| هر که رو در فسق و در عصیان کند | ایزد اندر رزق او نقصان کند |
| هر څوک چي مخ په فسق او په ګناه کي کوي | خدای په روزي کي د هغه کموالی کوي |
| کم شود روزی زگفتار دروغ | در سخن کذاب را نبود فروغ |
| کمېږي رزق له ويلو څخه د درواغو | په خبرو کي درواغجن لره نه وي خلا |
| فاقه آرد خواب بسیار ای پسر | خواب کم کن باش بیدار ای پسر |
| لوږه راوري خوب ډېر اې هلکه! | خوب لږ کوه اوسه بيداره اې هلکه! |

| | |
|---|---|
| هر که در شب خواب عریان می کند | در نصیب خویش نقصان می کند |
| هر څوک چې په شپه کې خوب لوڅ کوي | په روزي خپله کې کموالی کوي |

**د لغاتو حل:** کذاب (د مبالغې صیغه ده، یعني ډېر درواغجن)؛ فروغ (رڼیا / روښنایي).

**لنډیز:** ... څکه چې که څوک په فسق او فساد کې راګیر وي، نو الله تعالی یې په رزق کې کمی راولي. همدا ډول د درواغو په ویلو سره هم په رزق کمی راځي، او څوک چې درواغ وایي، د مخ هغه هیڅ نور نه لري. ډېر خوب کول انسان وړی کوي، نو ښه دا ده چې خوب لږ وکړې او بیداره واوسې. کوم څوک چې د شپې په لوڅ بدن بیدیږي، نو په خپل لاس سره خپل رزق کموي...

| | |
|---|---|
| بول عریان هم فقیری آورد | اندوه بسیار پیری آورد |
| بولي کول په لڅه سره هم غریبي راوړي | اندېښنه ډېره کول سپین ږدتوب راوړي |
| در جنابت بدبود خوردن طعام | ناپسند است این بنزد خاص وعام |
| په جنابت کې بد وي خوړل د خوړو | ناخوښه دئ دا په نزد د خاص او عام |
| ریزهٔ نان را میفگن زیر پائ | گر همی خواهی تو نعمت از خدائ |
| توټې د ډوډۍ مه غورځوه لاندې تر پښو | که چیرې داسې غواړې ته نعمت له خدایه |
| شب مزن جاروب هرگز خانه در | خاکرو به هم منه در زیر دَر |
| د شپې مه وهه جارو هیڅکله په کور کې | کچره هم مه ږده په لاندې کې د دروازې |

**د لغاتو حل:** بول (بولي کول / تش رګ وهل)؛ جنابت (لویه بې اودسي، هغه چې غسل واجبوي).

**لنډیز:** ... همدا ډول په لوڅ بدن بولي کول یا ضرورت رفع کول هم غریبي را منځ ته کوي، او ډېره اندېښمه او فکر کول انسان سپین ږدی کوي. کله چې سړی جنوب وي، نو باید خوراک ونه کړي، څکه چې دا کار بد ګڼل کیږي او د هیچا نه خوښیږي. که چیرې له الله تعالی څخه د نعمتونو غوښتونکی یې، نو د ډوډۍ توټې مه غورځوه او تر پښو یې مه لاندې کوه. د شپې له خوا کور یا خونه مه جارو کوه، او انبار یا کچره د دروازې په چارچوب کې مه پرېږده...

گر بخوانی باب ومامت را بنام — نعمت حق برتو می گردد حرام

که چیري بولې پلار او مور ستا په نامه سره — نعمت دخدای پر تا گرځي حرام

گر بهر چوبے کنی دندان خلال — بے نواگردی وافتی دروبال

که چیري په هره خاشه کوې غاښونه خلال — بې سامانه گرځې او لوېږې په بلا کې

دست را هرگز بخاک وگل مشوی — ازبرای دست شستن آبجوی

لاس هیڅکله په خاورو او ختو مه پرېوله — له پاره د لاس پرېوللو اوبه ولټوه

ای پسر برآستان در مشین — کم شود روزی زکردار چنین

اې هلکه! پر چارچوب د دروازې مه کښېنه — کمېږي روزي له چلند څخه داسي

**د لغاتو حل:** آستان (چاچوب / د دروازې چوکاټ)؛ کردار (چلند / رویه / کار).

**لنډیز:** ... که دي چیري خپل پلار او مور د هغوی په نامه بلل، نو د الله تعالی نعمتونه در باندي بندیږي. همدا رنگه که چیري په هره خاشه او لرگي باندي غوښونه خلالوې، نو بې سامانه او بې اسبابه به وگرځې او په ستونزو کي به راگیر سې. لاسونه هیڅکله په خاورو او ختو مه پرېوله، بلکي د پرېوللو له پاره یې اوبه پیدا کوه. همدا ډول د دروازې پر چارچوب باندي مه کښېنه، ځکه چي په دې سره په رزق او روزي کي کموالی راځي...

تکیه کم کن نیز درپهلوی در — باش دائم ازچنین خصلت بدر

تکیه مه کوه همداسي په څنگ کي د دروازې — اوسه همېشه له داسي خوی څخه وتلی

درخلا جاگر طهارت می کنی — وقت خودرا دان که غارت می کنی

په بیت الخلا کي که اودس کوي — وخت خپل پوه سه چي ضائع کوي

جامه را برتن نشاید دوختن — باید ازمردان ادب آموختن

کالیو لره پر بدن نښایي گنډل — ښایي له سړیانو څخه ادب زده کول

گر بدامن پاک سازی روی خویش | روزیت کم گردد ای درویش بیش

که چیري په لمن پاکوې مخ خپل | روزي ستا کمه گرځي اې ملنگه ډېره

**د لغاتو حل:** پهلوی (څنگ / اړخ / طرف)؛ بدر (وتلی / بهر / لیري)؛ خلا (تشناب / کناراب).

**لنډیز:** ... همدا ډول د دروازي په کونج او بغل کي تکیه مه کوه، او له داسي کار څخه لیري اوسه. په تشناب او بیت الخلا کي اودس مه کوه، ځکه دا د وخت ضائع کول دي. کالي چي دي اغوستي وي، نو پر بدن سربېره یې مه گنډه، بنه دا ده چي له سرېانو (پوهانو) څخه ادب زده کړل سي. همدا ډول که په لمن سره خپل مخ پاکوې او وچوې، نو په دې سره هم ستا په رزق کي کموالی راځي...

دیر رو بازار و بیرون آئی زود | زانکه رفتن را نیابی هیچ سود

په ځنډ ځه بازار ته او دباندي راوزه ژر | ځکه چي تللو لره نه مومې هیڅ گټه

نیک نبود گر کشی ازدم چراغ | ره مده دود چراغ اندر دماغ

بنه نه وي که چیري وژني په پوکلو سره څراغ | لاره مه ورکوه دود ته د څراغ په دماغ کي

کم زن اندر ریش شانه مشترک | زانکه آن خاص تو باشد خوشترک

مه وهه په ږیره کي ږمونځ مشترکه | ځکه هغه چي خاص ستا وي ډېره بنه ده

ازگدایان پاره هائی نان مخور | زانکه می آرد فقیری ای پسر

له فقیرانو څخه توټې د ډوډۍ مه خوره | ځکه چي راوړي فقیري اې هلکه!

**د لغاتو حل:** دیر (وروسته / په ځنډ سره / په ډېر وخت کي)؛ دم (ساه / پوکل)؛ مشترک (له بل سره شریک).

**لنډیز:** ... بازار ته په ډېر وخت کي یو ځل ځه او بیرته په تلوار سره ځني راوزه، ځکه چي په بازار کي گرځېدل هیڅ گټه نه لري. په ساه سره د څراغ پوکل او مړ کول بنه نه دي، ځکه په دې سره د څراغ دود او لوگی دماغ ته ننوزي او ستونزه جوړه وي. همدا ډول په مشترکه او له نورو سره شریکه ږمونځ سر او ږیره مه ږمونځوه، بنه دا ده چي ځان ته جلا ږمونځ ولرې. همدا رنگه د فقیرانو د لاس د ډوډۍ توټې مه خوره، ځکه دا کار هم فقر او غربت را منځ ته کوي...

| | |
|---|---|
| دور کن از خانه تار عنکبوت | باشد اندر ماندنش نقصان قوت |
| لیري کړه له کور څخه تارونه د جولاګي | وي په پرېښوولو کي د هغو کموالی د رزق |
| خرج را بیرون ز اندازه مکن | خشک ریش خویش را شانه مکن |
| خرڅ وتلی تر اندازې مه کوه | وچه ږیره خپله ږمونځ مه کوه |
| دسترس گر باشدت تنگی مکن | چونکه رهواری بره لنگی مکن |
| طاقت که چیري وي تا ته تنګي مه کوه | کله چي تلونکی یې پر لاري ګوډوالی مه کوه |

**د لغاتو حل:** عنکبوت (جولاګی / غنې)، یو کوچنی خوځنده دئ چي د تارونو په واسطه د خونو او کوټو په کونجانو کي ځان ته کور جوړوي)؛ قُوت (رزق / روزي / خواړه).

**لنډیز:** ... له کور او خوني څخه د جولاګي ځاله لیري کوه، ځکه که یې پرېږدې نو په رزق کي دي کمی راځي. همدا ډول تر اندازې زیات خرڅ او مصرف مه کوه، او وچه ږیره او وریښتان مه ږمونځوه. که چیري شتمن او پیسه دار یې، نو تنګي او کم خرڅي مه کوه، او کله چي پر لاري سم تلای سې، نو ګوډ - ګوډ مه څه.

# در بیان فوائد صبر

## د صبر د ګټو په بیان کي

| | |
|---|---|
| تا شوی در روزگار از صابران | غم مکن از دیدن سختی گران |
| تر څو سې په زمانه کي له صبر کوونکو څخه | غم مه کوه له لیدلو څخه د سختي، ګرانی |
| گر ترش سازی تو رو اندر بلا | خویش را از صابران مشمر هلا |
| که چیري تریو کړې ته مخ په مشکل کي | ځان له صبر کوونکو څخه مه شمېره خبردار! |
| در بلا وقتیکه صابر نیستی | نزد اهل صدق شاکر نیستی |
| په مشکل کي هغه وخت چي صبر کوونکی نه یې | په نزد د خاوندانو د صدق شکر کوونکی نه یې |

| بی شکایت صبرتو باشد جمیل | باکسی کم کن شکایت ای خلیل |
|---|---|
| بې له شکایته صبر ستا به وي صبر جمیل | و خلګو ته مه کوه شکایت اې دوسته! |

**د لغاتو حل:** صبر (د ستونزو او مشکلاتو زغمل او شکایت نه کول)؛ اهل صدق (رښتیني خلګ).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د صبر د ګټو او فائدو په اړه بیان کوي، فرمایي چې که غواړې چې په دنیا کې صابر واوسې، نو د سختیو او مشکلاتو په اړه مه اندېښمن کېږه. که چیرې په ستونزو کې تندې تریو کړې او خواشینی سې، نو صابر نه ګڼل کېږې او ځان ته صابر مه وایه. کله چې په ستونزو او مشلاتو کې صبر کوونکی نه یې، نو د سپېڅلو او رښتینو خلګو په اند شکر کوونکی نه یې. کله چې صبر کوې او شکایت نه کوې، نو دا صبر دې صبر جمیل دئ، نو خلګو له ستونزو او ناخوالو څخه شکایت مه کوه....

| گرنباشد فخر ازدرویشیت | کی باهل فقرباشدخویشیت |
|---|---|
| که چیرې نه وي فخر له فقیرۍ څخه ستا | کله به وي له خاوندانو سره د فقر خپلولي ستا |
| گرهمه جنبش بفرمان باشدت | حرمت ازخدمت فراوان باشدت |
| که چیرې ټول حرکات په حکم (د خدای) وي ستا | عزت به له خدمت څخه ډېر سي تا لره |
| بنده ازخدمت بعقبی می رسد | لیکن ازحرمت بمولی می رسد |
| بنده له خدمت څخه و عقبی ته رسیږي | لېکن له ادب څخه مولی ته رسیږي |
| حرمتت درخدمت آرام دلست | هرکه خدمت کرد مرد مقبل است |
| ادب ستا په خدمت کې آرام د زړه دئ | هر څوک چې خدمت وکړي سړی بختور دئ |

**د لغاتو حل:** فخر (ویاړ / نازېدل)؛ جنبش (خوځښت / حرکت / فعالیت)؛ حرمت (قدر / عزت / درناوی).

**لنډیز:** ... که چیرې په خپلې فقیرۍ او غربت سره ویاړ او فخر نه کوې، نو له فقیرانو (ښو خلګو) سره خپلوې نه سې کولای. که چیرې ستا ټول حرکات او سکنات د الله تعالی له فرمان سره سم وي، نو ادب به دې تر خدمت زیات وي. ځکه چې په خدمت سره مومن بنده آخیرت (جنت) ته رسیږي او په ادب او

درناوي سره الله تعالى ته رسيږي. په خدمت کولو کې ادب او درناوی د زړه آرام دی، څوک چې خدمت کوي، هغه بختور او د ستاينې وړ وي...

| آنکه زیبد ترا در صبر لاف | گر نگردی ای پسر گرد خلاف |
|---|---|
| په دغه وخت کې ښايي تا لره په صبر کې لافې | که چیرې ونه گرځې اې هلکه پر شاوخوا د مخالفت |
| در بلا جز صبر نبود هیچ کار | گر همی داری فرح را انتظار |
| په مشکل کې ما سوا له صبر څخه نه وي هيڅ کار | که چیرې داسې لرې خوشحالۍ لره انتظار |

**د لغاتو حل:** خلاف (مخالف / لفظي شخړه)؛ لاف (دعوه / لويه خبره)؛ فرح (خوښي / خوشحالي).

**لنډيز:** ... که چیرې د شريعت خلاف هيڅ کار ونه کړې، هغه وخت کولای سې چې د صبر کوونکي دعوه وکړې. که چیرې غواړې چې خوښي ترلاسه کړې، نو د مشکلاتو او ستونزو په وخت کې صبر وکړه. همدا يوازنی شی دئ چې له خوښۍ څخه دي برخمن کولای سي.

# در بیان تجرید و تفرید

## د جلاوالي او يوازيوالي په بيان کې

| ور خبرداری زاهل دید شو | گر صفائی بایدت تجرید شو |
|---|---|
| او که خبر لرې له خاوندانو څخه د نظر سه | که چیرې صفايي په کار وي تا ته جلا سه |
| فهم کن معنی تفرید ای پسر | ترک دعوی هست تجرید ای پسر |
| فکر وکړه په معنی کې د تفريد اې هلکه! | پرېښوول د دعوې دئ تجريد اې هلکه! |
| بلکه کلی انقطاع شهو تست | اصل تجریدت وداع شهوتست |
| بلکه يو مخ قطع کول د شهوت دي ستا | اصل د تجريد ستا رخصتول د شهوت دي ستا |

| گردهی یکبار شهوت را طلاق | آنزمان گردی تو در تفرید طاق |
|---|---|
| که چیري ورکړې یو وار شهوت لره طلاق | هغه وخت گرځې ته په تفرید کي بې مثاله |

**د لغاتو حل:** تجرید وتفرید (دا دواړه تصوفي اصطلاحات دي، چي تجرید د خالي کولو په معنی دئ، یعني زړه له غیر الله شیانو څخه خالي کول او تفرید د یوازي کولو په معنی دئ، یعني ځان یوازي کول)؛ اهل دید (خاوند د نظر، مراد څني بصیرت لرونکي خلگ دي)؛ بصیرت (معنوي سترگي / څیراکت).

**لنډیز:** په دې باب کي مصنف رحمة الله علیه د دوو تصوفي اصطلاحاتو (تجرید او تفرید) په اړه بیان کوي چي مطلب یې د لغاتو په حل کي واضح سو، مصنف رحمة الله علیه فرمایي چي که غواړې زړه دي پاک او صفا سي، نو تجرید غوره کړه، یعني زړه دي له غیر الله میني او محبتونو څخه خالي کړه او یوازي پکښې الهي مینه او محبت ځای پر ځای کړه، او که د بصیرت لرونکو، کسانو په اړه خبر یې، نو ته هم ځان د هغوی په څېر جوړ کړه. تجرید څه دئ؟ تجرید د بې ځایه دعوو پرېښوول او د زړه خالي کول دي، همداسي د تفرید په اړه هم فکر وکړه. د تجرید اصل دا دئ چي خپل شهوت ته رخصت ورکړې، بلکي په یو مخیز ډول ځان څني خلاص کړې. که چیري یو ځل خپل شهوت ته طلاق ورکړې، همدغه وخت به نو ته په تفرید کي بې ساری وگرځې...

| گر تو برداری زغیرش اعتمید | آنگه از تجرید گردی با امید |
|---|---|
| که چیري ته پورته ولرې ماسېوا له خدایه اعتماد | هغه وخت به له تجرید څخه وگرځې امیدلرونکی |
| اعتمادت چون همه بر حق بود | آن دمت تفرید جان مطلق بود |
| اعتماد ستا چي کله تول پر خدای وي | هغه وخت به دي تفرید د روح بوره وي |
| ترک دنیا کن برای آخرت | وزبدن برکش لباس فاخرت |
| پرېښوول د دنیا وکړه له پاره د آخرت | له بدن څخه وباسه کالي د فخر ستا |
| گر بیابی از سعادت این مقام | صاحب تجرید باشی والسلام |
| که چیري پیدا کړې له نېکمرغی څخه دا مقام | صاحب د تجرید به اوسې او سلامت |

**د لغاتو حل:** اعتمید (په اصل کي اعتماد دئ، لېکن د بیت د قافیې د برابرولو له پاره یې اعتمید ویلی دئ، څو له امید سره سمون ولري)؛ مطلق (په پوره او کامله توګه). په دې بیتونو کي مصنف رحمة الله علیه د تجرید او تفرید تعریف داسي کړی دئ چي تجرید یعني له زړه څخه غیر الله شیان ایستل او خالي کول او تفرید یعني په زړه کي یوازي د الله تعالي مینه او محبت ځایول.

**لنډیز:** ... کله چي له الله تعالی پرته له نورو مخلوقاتو څخه خپل امید او اعتماد قطع کړې، هغه وخت به له تجرید څخه برخمن وګرځېږې. او کله چي دي ټول اعتماد او باور یوازي پر الله تعالی وي، هغه وخت به په کامل ډول د تفرید څښتن هم وګرځېږې. نو دنیا د آخیرت له پاره تر شا پرېږده او له تن څخه دي د فخر او لویي جامې وباسه. که چیري دا د نېکمرغی مقام ته ورسېدلې، نو د تجرید او تفرید څښتن به یې او تل به سلامت اوسې...

| گر ز دنیا دست شوئی بهر حق | آنگه از تفرید گویندت سبق |
| --- | --- |
| که چیري له دنیا څخه لاس پرېولې له پاره د خدای | هغه وخت به د تفرید درته ووایي سبق |
| رو مجرد باش دائم مرد باش | تا بهر فرقی نشینی گرد باش |
| ځه! یوازي اوسه همېشه سړی اوسه | تر څو پر هر تندي کښېنې دوړه سه |
| گِرد کِبر و عجب و خودرائی مگرد | قدر خود بشناس و هر جائی مگرد |
| پر شاوخوا د تکبر او د غرور او د ځان ستاینې مه ګرځه | قدر د ځان وپېژنه او هر ځای مه ګرځه |
| هر که گِرد کورهٔ انگشت گشت | جامه از دودش سیاه و زشت گشت |
| هر څوک پر شاوخوا د کوړې د سکرو ګرځي | کالي یې له دود څخه تور او خراب ګرځي |

**د لغاتو حل:** سبق (عربي لفظ دئ په معنی د وړاندي والي، لېکن دلته مراد ځني درس دئ).

**لنډیز:** ... کله چي دي د الله تعالی له پاره له دنیا څخه لاس واخیست، هغه وخت به دي نو د تفرید سبق (درس) ویلی وي. تل یوازي اوسه او ځوانمرده اوسه، او د دوړي په څېر ځان ورک کړه، تر څو د هر چا پر تندي ولوېږې. د غرور، تکبر او ځان ستاینې پر شا وخوا لا مه ګرځه، بلکي د ځان قدر او عزت وپېژنه او په هر ځای کي مه ګرځه. ځکه څوک چي د سکرو د کوړې پر شا وخوا ګرځي، نو خامخا به یې په

دود سره کالي توربږي...

| | |
|---|---|
| وانکه باعطار میگردد قریب | او همی یابد زبوئ خوش نصیب |
| او هغه چي له عطر پلورونکي سره گرځي نیژدې | هغه داسي ترلاسه کوي له بوی خوږ څخه برخه |
| همنشین صالحان باش ای پسر | دور باش ازرند وقلاش ای پسر |
| ملگری له نېکانو سره اوسه اې هلکه! | لیري اوسه له بې باکه او لېوني څخه اې هلکه! |
| جانب ظالم مکن میل ای عزیز | ورکنی گردی ازان خیل ای عزیز |
| طرف د ظالم مه کوه میلان اې عزیزه! | او که يې وکړې گرځې له هغه تولۍ څخه اې عزیزه! |
| رو زاهل ظلم بگریز ای فقیر | تا نسوزی زآتش تیز ای فقیر |
| ځه! له خاوندانو څخه د ظلم وتښته اې فقیره! | تر څو ونه سوځې له اور څخه گرم اې فقیره! |

**د لغاتو حل:** عطار (عطر پلورونکی / عطر جوړونکی)؛ قلاش (بې باکه / بې پروا).

**لنډيز:** ... او څوک چي له عطر پلورونکي سره ملگری سې، نو خامخا به له خوږ او ښه بوی څخه برخمن کیږي. تل له نېکو او سپېڅلو کسانو سره اوسه، له لېونیانو او بې غورانو خلگو څخه لیري اوسه. د ظالم خوا ته میل او رغبت مه کوه، که نه نو ته به هم له ظالمانو څخه وشمېرل سې. نو له ظالمانو څخه په تېښته کي اوسه، تر څو د دوږخ اور تا هم د هغوی په څېر ونه سوځي...

| | |
|---|---|
| صحبت ظالم بسان آتشست | زانکه خلق آزار وتند وسرکشست |
| مجلس د ظالم په مثال د اور دئ | ځکه چي خلق آزاروونکی او توند او سرکښه دئ |
| از حضور صالحان صالح شوی | ور نشینی بابدان طالح شوی |
| له حضور څخه د نېکانو به صالح سې | اوکه چیري کښېنې له بدانو سره بدبخته به سې |
| هر که او باصالحان همدم شود | در حریم خاص حق محرم شود |
| هر څوک چي هغه له نېکانو سره ملگری سي | په دربار کي خاص د خدای به عزتمن سي |

| اصل یابی گر بگیری فرع را | ای پسر مگذار راه شرع را |
|---|---|
| اصل به ومومې که چیري ونیسې ښاخ | اې هلکه! مه پرېږده لاره د شریعت |

**د لغاتو حل:** بسان (یو ډول / په مثال / په شان)؛ طالح (عربي لفظ دئ، یعني نحسي / بدبخته).

**لنډیز:** ... د ظالم مجلس او یو ځای والی د اور په څېر دئ، ځکه چي ظالم خلگ آزاروي او سرکښه دئ. له نېکانو سره په اوسېدلو به نېک انسان درڅخه جوړ سي، خو که چیري له بدانو او غلطو خلگو سره اوسې، نو بدمرغه او شقي به سې. د شریعت لار هیڅکله مه پرېږده، ځکه کله چي فرع ونیسې، نو اصل ته به ورسېږې...

| در ضلالت افتی ورنج والم | از شریعت گر نهی بیرون قدم |
|---|---|
| په گمراهۍ کي به ولوېږې او په تکلیف او درد کي | له شریعت څخه که چیري کښېږدې قدم |
| از جهالت با بطالت میرود | هر که در راه ضلالت میرود |
| له ناپوهۍ څخه وباطل والي ته ځي | هر څوک چي په لاره کي د گمراهي ځي |
| در سخا وُمردمی مشهور باش | حق طلب وزکار باطل دور باش |
| په سخاوت او خوانمردۍ کي مشهوره اوسه | حق طلب کړه او له کار څخه د باطل لیري اوسه |
| در عذاب آخرت ماند مقیم | هر که نگزیند صراط مستقیم |
| په عذاب کي د آخرت به پاته سي مقیم | هر څوک چي غوره نه کړي لاره برابره |

**د لغاتو حل:** قدم (گام / پښه)؛ ضلالت (بې لارې / لار ورکې)؛ صراط مستقیم (سیخه او سیده لار).

**لنډیز:** ... خو که چیري له شریعت څخه دباندي قدم کښېږدې، نو په گمراهۍ او تکلیفونو کي به راگیر سې. څوک چي د گمراهۍ پر لاره روان سي، نو په ناپوهۍ سره باطل غوره کوي. حق طلب کړه او له باطل څخه لیري اوسه، او په سخاوت او مېړانه کي مشهوره اوسه. څوک چي سمه او حقه لار انتخاب نه کړي، نو په آخیرت کي له سخت عذاب سره لاس او گرېوان سي...

در ره شیطان منه گام ای اخی ‌‌‌‌| تا نگردی خوار وبدنام ای اخی

په لاره کي د شیطان مه ږده قدم اې وروره! | تر څو ونه گرځې ذلیل او بدنامه اې وروره!

هرکه درراه حقیقت سالکست | روزوشب خائف زقهر مالکست

هر څوک چي په لاره کي د حقیقت تلونکی دئ | ورځ او شپه بېرېدونکی له قهر څخه د خدای دئ

برخلاف نفس کن کار ای پسر | تا نیفتی زار درنار سقر

پر خلاف د نفس کوه کار اې هلکه! | تر څو ونه لوېږې عاجز په اور کي د دوږخ

**د لغاتو حل:** اخی (عربي لفظ دئ، یعني زما وروره)؛ سالک (لاروی / تلونکی)؛ سقر (د یوه دوږخ نوم دئ).

**لنډیز:** ... د شیطان پر لاره قدم مه ږده، تر څو خوار او ذلیل ونه گرځې. څوک چي د حقیقت د لاري لاروی وي، نو شپه او ورځ د الله تعالی له قهر او غضب څخه په بېره او وهم کي وي. تل د خپل نفس د غوښتنو پر خلاف کار کوه، تر څو د سقر دوږخ په اور ونه سوځول سې.

# در بیان کرامات فرماید

## د الله تعالی د کرامتونو په بیان کي فرمایي

چارچیز است ازکرامتهای حق | مقبلست آنکس که گیرد این سبق

څلور شیان دي له کرامتونو څخه د خدای پاک | بختور دئ هغه څوک چي واخلي دا سبق

اول آن باشد که باشد راستگوئ | باسخاوت باشد وهم تازه روی

اول هغه دئ چي وي رښتیا ویونکی | له سخاوت سره وي او هم تازه مخی

بعد ازان حفظ امانت باشدش | هم نظرپاک ازخیانت باشدش

وروسته تر هغه ساتل د امانت دي ده لره | هم نظر پاک له خیانت څخه وي ده لره

| هر کرا حق داده باشد این چهار | باشد آنکس مومن وپرهیزگار |
|---|---|
| هر چا لره چي خدا ورکړي وي دا څلور | وي هغه کس مومن او پرهېزګاره |

**د لغاتو حل:** کرامات (د کرامت جمع ده، يعني عظمت او مهرباني)؛ راستګوئ (صادق / رښتينی).

**لنډيز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله عليه د الله تعالى کرامتونو او عظمتونو په اړه بيان کوي، فرمايي چې څلور شيان د الله تعالى له مهربانيو او کرامتونو څخه دي، څوک چې يې ياد کړي، هغه بختور او د اعتبار وړ شخص دئ: لومړی دا چې انسان رښتيا ويونکی او صادق وي، سخي وي او د ورين تندي څښتن وي. همدا ډول د امانت ساتل دي، او له خيانت څخه ځان ليرې ساتل دي. هر چا لره چې دا څلور شيان ورکول سوي وي، هغه پاک او تقواداره مومن دئ.

# دربیان آنکه دوستی را نشاید

## د هغه شيانو په بيان کې چې دوستي ور لره نه ښايي

| دوست بد باشد زیان کار ای پسر | تو طمع زان دوست بردار ای پسر |
|---|---|
| دوست بد وي زيان کاره اې هلکه! | ته تمه له دغه دوست څخه پورته کړه اې هلکه! |
| هر که میگوید بدیهای تو فاش | دوست مشمارش بدو همدم مباش |
| هر څوک چې وايي بدۍ ستا ښکاره | دوست يې مه شمېره له ده سره ملګری مه اوسه |
| دوستی هرگز مکن با باده خوار | ازچنان کس خویشتن را دوردار |
| دوستي هيڅکله مه کوه له شرابخور سره | له دا ډول کس څخه خپل ځان ليرې ولره |
| مُنعمی گر میکند ترک زکوة | دور ازوی باش تا داری حیوة |
| شتمن که چيرې کوي پرېښول د زکات | ليرې له هغه اوسه تر څو لرې ژوند |

**د لغاتو حل:** همدم (ملګری / يار)؛ باده خوار (شرابخور / شرابي)؛ مُنعمی (هغه چې نعمتونه ور باندي لورول سوي وي، يعني الله تعالى ورته شتمي ورکړي وي، مراد يې شتمن او بډای خلګ دي).

**لنډيز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د هغه شيانو يا کسانو يادونه کوي چې بايد دوستي ورسره ونه کړل سي، فرمايي چې بد دوست زيان رسوونکی وي، نو له دا ډول دوست څخه د هيڅ شي تمه مه لره. څوک چې ستا عيبونه او نيمګړتياوې افشا کوي، دوست يې مه ګڼه او مه ورسره ملګری کېږه. همدا رنګه له شرابي سره ملګری مه کوه، او له دا ډول خلګو څخه ليرې اوسه. همدا ډول هغه شتمن او پيسه داره انسان چې زکات نه اداء کوي، له هغه څخه ليرې ګرځه او دوستي مه ور سره کوه...

| | |
|---|---|
| دور شو زانکس که خواهد از تو سود | گر سر خود بر قدمهائی تو سود |
| ليرې سه له هغه چا څخه چې غواړي ستا څخه سود | که څه هم سر خپل پر قدمونو ستا وسولوي |
| ای پسر از سود خواران کن حذر | خصم ایشان شد خدائ دادگر |
| اې هلکه! له سود خوارانو څخه کوه پرهېز | دښمن د دوی سو خدای عادل |
| آنکه از مردم همی گیرد ربا | زینهار اورا نگوئی مرحبا |
| هغه چې له خلګو څخه داسي اخلي سود | هيڅکله هغه لره مه وايه ښه راغلاست |

**د لغاتو حل:** سود (ګټه، مراد يې هغه حرام سود دئ / ربا)؛ دويم سود (د سولولو او موښلو په معنی دئ).

**لنډيز:** ... همدا ډول له هغه چا څخه ليرې اوسه او دوستي مه ورسره کوه چې ستا سره د سود او ربا غوښتونکی وي، يعني له سودخور سره هم دوستي مه کوه، که څه هم خپل سر ستا په پښو کې ږدي. د سودخورو له مجلس او دوستئ څخه ډډه وکړه، ځکه چې هغوی د الله تعالی دښمنان ګڼل کيږي. همدا ډول څوک چې له خلګو د سود او راب غوښتنه کوي، هغه ته هيڅکله ښه راغلاست او هرکلی مه وايه.

# در بیان غمخوارئی مردم

## د خلګو د خواخوږۍ په بيان کې

| | |
|---|---|
| بر سر بالین بیماران گذر | زانکه هست این سنت خیر البشر |
| پر سر د بالښت د ناروغانو تېر سه | ځکه چې دئ دا سنت د خير البشر ﷺ |

تا توانی تشنه را سیراب کن | در مجالس خدمت اصحاب کن

تر څو کولای سې تږی په اوبو موړ کړه | په مجلسونو کې خدمت د ملګرو وکړه

خاطر ایتام را دریاب نیز | تا ترا پیوسته حق دارد عزیز

زړه د یتیمانو بیا ومومه همداسې | تر څو تا همېشه خدای ولري عزتمن

چون شود گریان یتیمی ناگهان | عرش حق در جنبش آید آن زمان

کله چې سي په ژړا يو يتيم ناڅاپه | عرض د خدای پاک په حرکت کې راځي دغه وخت

**د لغاتو حل:** غمخواری: (همدردي / خواخوږي / غمخوري)؛ خیر البشر (د انسانانو غوره، محمد ﷺ).

**لنډيز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله عليه د خلګو د غمخورۍ او خواخوږۍ په اړه بيان کوي، فرمايي چې کله يو څوک ناروغ وي، نو پر هغه پوښتنه کوه، ځکه چې دا خوږ پيغمبر حضرت محمد مصطفی صلی الله عليه وسلم سنت دی. څومره چې دې په وس کې وي، تږي ته اوبه ورکوه، او په مجلس او محفل کې د ملګرو خدمت کوه. د يتيمانو پر سر د مهربانۍ لاس تېر کړه او زړه يې وګټه، تر څو چې الله تعالی دې تل او همېشه عزتمن ولري. کله چې يو يتيم په ژړا سي، نو د الله تعالی عرش مبارک په لړزان او حرکت کې راسي...

چون یتیمی را کسی گریان کند | مالک اندر دوزخش بریان کند

کله چې ي، يتيم يو کس په ژړا کړي | مالک به يې په دوږخ خپل کې کباب کړي

آنکه خنداند یتیمی خسته را | بازیابد جنت در بسته را

هغه چې وخندوي يو يتيم خواشيني | خلاص به ومومي جنت دروازه تړلې

هرکه اسرارت کند فاش ای پسر | از چنان کس دور میباش ای پسر

هر څوک چې رازونه کوي افشا اې هلکه! | له دا ډول چا څخه ليرې اوسه اې هلکه!

در جوانی دار پیران را عزیز | تا عزیز دیگران باشی تو نیز

په ځواني کې لره سپين ږيري عزتمن | تر څو عزتمن د نورو خلګو اوسې ته همداسې

**د لغاتو حل:** مالک (پاچا / واکمن، مراد ځني پر دوږخ باندي مقرره فرښته ده.)؛ فاش (افشا / نشر).

**لنډیز:** ... څوک چي يو يتيم په ژړا کړي، نو د دوږخ فرښته (مالک) به يې په دوږخ کي کباب کړي. او هغه څوک چي يو خپه او خواشيني يتيم خوشحاله کړي او ويې خندوي، نو پر خپل مخ باندي به د جنت ترلي دروازې خلاصي کړي. کوم څوک چي ستا رازونه افشا کوي او تا رسوا کوي، له دا ډول کسانو څخه ليري اوسه او زړه مه ورنيژدې کوه. په ځواني د بوډاگانو او سپين ږيرو خلګو عزت او درناوی کوه، تر څو ستا په بوډا توب کي نور خلګ ستا عزت او احترام وکړي...

| | |
|---|---|
| بر ضعيفان گر ببخشائی رواست | کين ز سيرت هائی خوب اولياست |
| پر کمزورو : که چيري بخښش کوې روا دئ | ځکه چي دا له خويونو څخه د ښو د اولياؤ دئ |
| بر سر سيری مخور هرگز طعام | تا نميرد در بدن قلب ای غلام |
| پر سر د موړ والي مه خوره هيڅکله ډوډۍ | تر څو مړ نه سي په بدن کي زړه اې هلکه! |
| علت مردم ز پُرخواری بود | خوردن پُر شکم بيماری بود |
| مرض د خلګو له ډېر خوراک څخه وي | خوړل په ډک نس مرضي وي |
| راحتی نبود حسود شوم را | کاذب بد بخت را نبود وفا |
| هوساينه نه وي حسد کوونکي ناکاره لره | درواغجن بد بخته لره نه وي وفا |

**د لغاتو حل:** بخشاۍ (بخښل / بخښش کول)؛ سيرت (د ژوند حالات، مراد يې خوی او عادت دئ).

**لنډیز:** ... ضعيفو او کمزورو خلګو ته بخښش کول ډېر غوره کار دئ، ځکه چي د الله تعالی دوستانو به همداسي کول. کله موړ يې نو هيڅکله ډوډۍ مه خوره، تر څو زړه دي په بدن کي دننه ژوندی پاته سي او مړ نه سي. ځکه چي د خلګو ناروغۍ او مرضونه له همدې ډېر خوراک کولو څخه دي، څوک چي پر ډک نس سربېره خوراک کوي، نو په خپل لاس ناروغيو ته هرکلی کوي. څوک چي له خلګو سره حسد او بغض لري، هغه تل نا آرامه او انديښمن وي، او له درواغجن انسان څخه د وفا تمه مه لره...

| | |
|---|---|
| هر منافق را تو دشمن دار باش | از وی و از فعل وی بیزار باش |
| هر منافق لره ته دښمن اوسه | له هغه څخه او کار څخه د هغه بېزاره اوسه |
| توبه بد خو کجا محکم بود | مر بخیلان را مروت کم بود |
| توبه د بد خويه کله ټينګه وي | خاص بخيلانو لره مېړانه نه وي |
| تا شود دین تو صافی چون زلال | باش دائم طالب قوت حلال |
| تر څو سي دين ستا صفا په مثال د رڼو اوبو | اوسه همېشه طلب کوونکی د رزق حلال |
| آنکه باشد درپئ قُوتِ حرام | در تن او دل همی میرد تمام |
| هغه چي وي په شا پسي د رزق حرام | په بدن کي د هغه زړه همداسي مري پوره |

**د لغاتو حل:** بيزاری (ځان ساتنه / تښتېدنه)؛ مروت (خوانمردي / مېړانه / غيرت).

**لنډيز:** ... منافق چي هر څوک وي، خپل دښمن يې وګڼه، له ده څخه او د ده له کارونو څخه ليري او په نفرت کي اوسه. د بد خويه او بد اخلاقه سړي توبه ټينګه او د اعتبار وړ نه وي، او بخيلان هيڅ مېړانه او غيرت نه لري. که غواړې چي دين دي د روڼو اوبو په څېر پاک او شفاف وي، نو تل د حلال رزق په لټه کي اوسه او له حرامو څخه ځان وساته. څکه څوک چي حرام رزق او روزي ترلاسه کوي، د هغه په سينه کي دننه د هغه زړه په بشپړ ډول مري او مړ کيږي.

# در بیان صلهٔ رحم

## د صله رحمي په بيان کي

| | |
|---|---|
| رو بپرسیدن بر خویشان خویش | تا که گردد مدت عمر تو بیش |
| ځه! په پوښتني پسي پر خپلوانو خپلو | تر څو چي وګرځي وخت د عمر ستا ډېره |

هر که گرداند ز خویشاوند رو | بی گمان نقصان پذیرد عمر او

هر څوک چي ګرځوي له خپلوانو څخه مخ | بې له شکه زيان قبلوي عمر د هغه

هر که او ترک اقارب می کند | جسم خود قوتِ عقارب می کند

هر څوک چي پرېښولل د قريبانو کوي | جسم خپل خوراک د لړمانو کوي

گرچه خویشان تو باشد از بدان | بد تر از قطع رحم چیزی مدان

که څه هم خپلوان ستا وي د بدانو څخه | ډېر بد له پرې کولو څخه د صله رحمي بل شی مه بوله

هر که او را خویش خود بیگانه شد | نامش از روئ بدی افسانه شد

هر څوک چي هغه لره قريب خپل بې ګانه سي | نوم د ده په وجه د بدۍ افسانه سي

**د لغاتو حل:** صله رحم (د خپلوۍ اړيکي / دوستي / قرابت)؛ اقارب (د قريب جمع ده، يعني خپل / نيږدې دوست)؛ عقارب (د عقرب جمع ده، يعني لړم، چي يو ډول زهر لرونکې خوځنده ده).

**لنډيز:** دا باب د صله رحمۍ په اړه دئ، مصنف رحمة الله عليه فرمايي چي همېشه پر خپلو دوستانو او خپلوانو باندي پوښتنه او ګروېړنه کوه، ځکه په دې سره د انسان عمر زياتيږي. کوم څوک چي له خپلوانو او دوستانو څخه مخ اړوي او صله رحمي نه پالي، نو له شک پرته چي د هغه په عمر کي کمی او نقصان راځي. څوک چي له قريبانو سره قرابت له منځه وړي، په حقيقت کي خپل بدن د قبر د لړمانو خوراک ګرځوي. که څه هم ستا قريبان او دوستان بد او ناسم خلګ وي، لېکن صله رحمي مه ورسره قطع کوه، ځکه چي د صله رحمي تر قطع کولو بل ډېر بد او ناوړه کار نه سته.

# در بیان فتوّت

## د ځوانمردۍ په بيان کي

چیست مردے ای پسر نیکو بدان | اولاً ترسیدن از حق بی گمان

څه دئ سړيتوب اې هلکه! ښه پوه سه | اول ېېرېدل له خدايه بې له شکه

| | |
|---|---|
| عذر خواهد مرد پیش از معصیت | باشدش طاعات بیش از معصیت |
| عذر غواړي سړی مخکې له گناه څخه | وي د ده طاعتونه ډېر له گناه څخه |
| آنکه کار نیک مردان میکند | با ضعیفان لطف واحسان میکند |
| هغه چې کار ښه د سړیانو کوي | له کمزورو سره مهرباني او احسان کوي |
| ای پسر در صحبت مردان درای | تا نظرها یابی از فضل خدای |
| اې هلکه! په مجلس کې د سړیانو راسه | تر څو نظرونه ترلاسه کړې له فضل څخه د خدای پاک |

**د لغاتو حل:** فتوت (مېړانه / مردانگي / سړیتوب)؛ احسان (نېکي / ښېگڼه)؛ فضل (مهرباني).

**لنډیز:** په دې باب کې مصنف رحمة الله علیه د مېړاني او څوانمردۍ په اړه بیان کړی دئ، فرمایلي یې دي چې سړیتوب او مېړانه دا ده چې سړی لومړی له الله تعالی څخه په خوف او ډار کې وي. بل دا چې تر گناه کولو مخکې معذرت او بخښنه غواړي، مطلب دا چې اول خو گناه نه کوي، خو که چیرې کومه گناه څنې وسي، نو ډېر پښېمانه وي او معذرت غواړي، بل دا چې طاعتونه او عبادتونه یې تر نافرمانیو او گناهونه ډېر وي. څوک چې سړیتوب او مېړانه لري، هغه پر ضعیفو او کمزورو خلگو باندې مهربان وي او تل نېکي او ښېگڼه ور سره کوي. نو ته هم له دا ډول مېړنیو خلگو سره یو ځای اوسه، تر څو الله تعالی درباندې د رحمت نظر وکړي او ته هم مېړنی او څوانمرده اوسې...

| | |
|---|---|
| هر که از مردان حق دارد نشان | نگذراند عیب دشمن بر زبان |
| هر څوک چې له سړیانو څخه د خدای لري علامه | نه تېروي عیب د دښمن پر ژبه |
| خود نخواهد مرد خصمان را هلاک | از غم ایشان شود اندوه پاک |
| خپله نه غواړي سړی دښمنانو لره هلاکت | له غم څخه د هغوی کېږي له اندېښنو پاک |
| می نجوید مرد انصاف از کسی | گر رسد ظلم وجفا با او بسی |
| نه لټوي سړی انصاف له یو چا څخه | که څه هم ورسېږي ظلم او جفا هغه ته ډېره |

هرکه پا اندر ره مردان نهاد | کی رود هرگز بدنبال مراد

هر څوک چي پښه په لاره کي د سړیانو کښېږدي | کله ځي هیڅکله وروسته د مراد

ای پسر ترک مراد خویش گیر | وانگهی راه سلامت پیش گیر

اې هلکه! پرېښوول د مراد خپل ونیسه | او بیا لار د سلامتیا په مخ کي ونیسه

**د لغاتو حل:** مردان حق (د خدای خلګ / الهي کسان، چي ځانونه یې د الله تعالی په لار کي وقف کړي وي).

**لنډیز:** ... هغه کسان چي ځانونه د الله تعالی په لار کي خیر ښېګنو وقف کړي وي او الهي کسان بلل کیږي، هغوی آن د خپلو دښمانو عیبونه هم نه افشا کوي. د خپلو دښمنانو د هلاکت او بربادۍ غوښتنه نه کوي، او د هغوی له غم او اندېښنو څخه بې غمه او ډاډه وي. هغوی ته څه هم د خلګو له خوا تکلیف او آزار ورسیږي او خلګ ورسره ظلم وکړي، بیا هم له خلګو څخه د انصاف غوښتنه نه کوي، بلکي یوازي پر الله تعالی باندي بشپړ توکل لري. نو څوک چي د مېړنیو خلګو پر تګلاره قدم کښېږدي، هغه بیا هیڅکله په خپلو خواهشاتو نه پسې کیږي. نو ته هم خپل خواهشات پرېږده او د مېړنیو پر لار روان سه.

# در بیان فقر

## د فقر په بیان کي

فقر میدانی چه باشد ای پسر | باتو گویم گر نداری زان خبر

فقر پېژنې چي څه وي؟ اې هلکه! | تا ته وایم که چیري نه لرې له دې څخه خبر

گرچه باشد بینوا در زیر دلق | خویش را منعم نماید پیش خلق

که چیري وي بې سامانه په لاندي کي د وړیو | ځان شتمن ښکاره کوي په مخ کي د خلګو

گرسنه باشد ز سیری دم زند | دوستی با دشمنان خود کند

وږی وي (خو) له موړ والي څخه ساه وهي | دوستي له دښمنانو سره خپل کوي

| گرچه باشد لاغر وزار وضعیف | وقت طاعت کم نباشد از حریف |
|---|---|
| که څه هم وي خوار او عاجز او کمزوری | په وقت کي د طاعت کم نه وي تر حریف |

**د لغاتو حل:** فقر (غربت / نېستي)؛ مُنعم (هغه چي نعمت ورکول سوی، مراد يې شتمن او بډای دئ).

**لنډيز:** دا باب د فقر او غربت په بيان کي دئ، مصنف رحمة الله علي فرمايي چي ايا پوهېږې چي فقر څه دئ؟ غوږ ونيسه زه يې درته وايم، فقر دا دئ چي څوک بې سازه او بې سامانه وي او د وږيو په زړو جامو کي ګرځي، خو بيا هم د خلګو په مخ کي ځان شتمن او بډای ښکاره کوي. که څه هم وږی وي خو ځان موړ ښيي او له دښمنانو سره هم دوستي کوي. که څه هم کمزوری، عاجزه او ناتوانه وي، خو بيا هم په طاعت او عبادت کي تر نورو کم نه وي...

| خون دل پر دارد ودست تهی | می نماید در نزاری فربهی |
|---|---|
| وينه د زړه يې پوره وي او لاس يې خالي وي | ښکاره کوي په ډنګروالي کي چاغ والی |
| ای پسر خود را به درویشان سپار | تا نگهدارد ترا پروردگار |
| اې هلکه! خپل ځان و ملنګانو ته وسپاره | تر څو وساتي تا خدای تعالی |
| با فقیران هر که همدم میشود | در سرای خلد محرم میشود |
| له فقيرانو سره چي هر څوک ملګری کيږي | په کور کي د همېشتوب عزتمن کيږي |

**د لغاتو حل:** خلد (همېشتوب / تل پاتي والی)؛ محرم (د احترام وړ / عزتمن).

**لنډيز:** ... که څه هم لاس يې خالي وي او هيڅ نه لري، خو بيا يې هم زړه له وينو ډک وي، يعني داسي ښکاره کوي لکه هر څه چي لري، په ډنګروالي او کمزوری کي ځان چاغ او څواکمن ښيي. نو ته هم خپل ځان دا ډول الهي کسانو او ملنګانو ته وسپاره، تر څو الله تعالی دي ساتنه او حفاظت وکړي. څکه څوک چي له فقيرانو او درويشانو سره ملګری وي، هغه به تل پاتي کور (جنت) کي عزتمن وي.

# در بیان انتباه از غفلت

## له غفلت څخه د بیداریدلو په بیان کي

| | |
|---|---|
| در بلا یاری مخواه از هیچکس | زانکه نبود جز خدا فریادرس |
| په تکلیف کي ملګري مه غواړه له هیڅ چا څخه | ځکه چي نه وي ماسېوا له خدای پاکه څخه فریاد منونکی |
| از خدای خویشتن غافل مباش | غافلانه در رهِ باطل مباش |
| له خدای خپل څخه غافل مه اوسه | ناخبره په لاره کي د باطل مه اوسه |
| جائی گریه ست اینجهان در وی مخند | چشم عبرت برکشاؤ لب به بند |
| ځای د ژړا دئ دا جهان په دې کي مه خانده | سترګي د عبرت خلاصي کړه او شونډي وتړه |
| همچو مور از حرص هر سوئ مرو | پند ناصح را بگوش جان شنو |
| په مثال د میږي له حرص څخه هري خوا ته مه څه | پند د ناصح په غوږ د روح سره واوره |

**د لغاتو حل:** انتباه (ویښ والی / بیداري)؛ غفلت (ناخبري)؛ فریادرس (فریاد منونکی / مرستندوی).

**لنډیز:** دا باب له غفلت او بې خبرۍ څخه د بیداریدلو او ویښېدلو په بیان کي دئ، مصنف رحمة الله علیه فرمايي چي په ستونزو او تکالفو کي له الله تعالی پرته له بل هیچا څخه مرسته او کومک مه غواړه، ځکه یوازني فریاد اوریدونکی او مرستندوی الله تعالی دئ. له خالق او مالك څخه غافل او ناخبره مخ اوسه او په ناخبرۍ کي پر باطله لار مه روانیږه. دا دنیا د ژړا او خوشینۍ ځای دئ، په دې کي مه خانده، د عبرت سترګې پرانیزه او خوله بنده ولره. د میږي په څېر له حرص او سرابنتوب څخه هري خوا ته مه ځغله، زما دا نصیحت د زړه په غوږو واوره او تل یې یاد وساته...

| | |
|---|---|
| ای پسر کودک نهٔ بازی مکن | کار با شیطان بانبازی مکن |
| اې هلکه! کوچنی نه یې لوبي مه کوه | کار له شیطان سره په سیالۍ مه کوه |

نفس بدرا درگنه یاری مده — عمر برباد از تبه کاری مده

نفس بد لره په گناه کې کومک مه ورکوه — عمر برباد له تباه کارۍ څخه مه ورکوه

هرکجا تهمت بود آنجا مرو — راه حق را همچو نابینا مرو

هر چیرې چې تهمت وي هغه ځای ته مه ځه — په لاره د خدای په مثال د ړانده مه ځه

دشمنی داری ازو ایمن مباش — زیر سقف بیستون ساکن مباش

دښمن چې لرې له هغه څخه بې غمه مه اوسه — لاندې تر بام بې ستنې ناست مه اوسه

**د لغاتو حل:** کودک (کوچنی / ماشوم)؛ بازی (لوبې / ساتېرى)؛ یاری (مرسته / کومک).

**لنډیز:** ... نو اې انسانه! تر ابده لا ماشوم نه یې، لوبې او بازۍ پرېږده، او له شیطان سره په سرکښیو او نافرمانیو کې سیالي مه کوه. پر گناه باندې له خپل اماره نفس سره مرسته مه کوه، او غلطو او ناسمو کارونو سره خپل عمر مه بربادوه. په کوم ځای کې تهمتونه ویل کېږي، هلته مه ځه، او د الله تعالی په لاره کې د ړانده په څېر یوې او بلې ته خوا ته مه ځه، بلکې سیخ سیده پر مستقیمه لار روان اوسه. ته ډېر سخت دښمن لرې، له هغه څخه بې غمه مه اوسه، او بې ستنې او بې پایې چت لاندې مه پاته کېږه...

دررهِ فسق وهوا مرکب متاز — خویشتن را سخرهٔ شیطان مساز

په لاره کې د فسق او خواهشاتو آس مه ځغلوه — خپل ځان ټوکه د شیطان مه جوړوه

چون سفر درپیش داری زادگیر — عمرخودرا سربسر برباد گیر

کله چې سفر په مخ کې لرې توښه واخله — عمر خپل پر له پسې برباد مه نیسه

ای پسر اندیشه از اغلال کن — نفس بدرا از لکد پامال کن

اې هلکه! اندېښنه د ځنځیرونو د دوږخ وکه — نفس بد له لغتو څخه پایماله کړه

تانسوزی سازگاری پیشه کن — ازعذاب وقهرحق اندیشه کن

تر څو ونه سوځې جوړښت عادت کړه — له عذاب او قهر څخه د خدای اندېښنه وکړه

**د لغاتو حل:** تاز (ځغاسته / منډه وهل)؛ مرکب (سپرلی، لکه آس، اوښ، خر....)؛ سخره (ملنډه / مسخره).

**لنډیز:** ... د فسق او بدکارۍ په لاره کي آس مخ ځغلوه، یعني په ګناهونو کي وړاندي والی او مسابقه مه کوه، او خپل ځان دي د شیطان ټوکه او مسخره مه جوړوه. دا چي په مخ کي ډېر لوی سفر لرې، نو توبه در سره واخله، بې ځایه دي عمر مه بربادوه. اې غافل انسانه! د دوږخ له هغو ځنځیرونو څخه وېرېږه چي له اور څخه جوړ سوي دي او د انسانانو په غاړه کي اچول کیږي، او خپل نفس تر پښو لاندي پایماله کړه. تر څو په دوږخ کي ونه سوځې، له شریعت سره موافقت او برابرتیا د ځان عادت وګرځوه، او د الله تعالی له قهر او غضب څخه په خوف او ډار کي اوسه...

| | |
|---|---|
| جمله را چون هست بر دوزخ گذر | جائی شادی نیست با چندین خطر |
| تولو لره چي کله دي پر دوږخ باندي تېرېدل | ځای د ښادۍ نه دئ له دومره خطرونو سره |
| آتشي در پیش داری ای فقیر | هیچ خوفت نیست از نارِ سعیر |
| اور په مخ کي لرې اې فقیره! | هیڅ بېره ستا نه سته له اور څخه د دوږخ |
| عقبه در را هست و بارت بس گران | نگذرد بارت بسعی دیگران |
| غونډۍ په لاره کي ده او بار ستا ډېر دروند دئ | نه تېرېږي بار ستا په کوښښ د نورو خلګو |
| داری اندر پیش روز رستخیز | از خدایت نیست امکان گریز |
| لرې په مخ کي ورځ د قیامت | له خدای څخه ستا نه سته امکان د تېښتي |

**د لغاتو حل:** سعیر (دوږخ / له دوږخونو څخه دیوه نوم یې سعیر دئ)؛ ګریز (تېښته / پټېدل).

**لنډیز:** ... دا چي ټول انسانان به خامخا پر دوږخ سربېره یعني پل صراط باندي تېرېږي، نو دا چي دومره خطرونه په مخ کي لرو نو دا ځای د خوشحالۍ نه دئ. په مخ کي له ستر اور سره مخ کېږې، ایا د ستر دوږخ له سوځوونکي اور څخه هیڅ نه بېرېږې؟ په لاره کي غرونه او غونډۍ مخي ته راځي او د ګناهونو بار دي ډېر دروند دئ، د افسوس ځای خو دا دئ چي دا بار د نورو خلګو په مرسته نه لېږدول کیږي، یوازي به یې ته خپله تر منزله رسوې. په مخ کي د قیامت سخته او خوفناکه ورځ لرې او له الله تعالی څخه د تښتېدلو او پټېدل هیڅ امکان نه سته...

| | |
|---|---|
| ای پسر راه شریعت پیش گیر | زودتر ترک هوای خویش گیر |
| اې هلکه! لار د شریعت په مخ کې ونیسه | ډېر ژر پرېښول د خواهشاتو خپلو ونیسه |
| ای برادر باش در فرمان حق | تا بیابی جنت و رضوان حق |
| اې وروره! اوسه په حکم کې د خدای پاک | ترخو ترلاسه کړې جنت او رضا د خدای پاک |
| گردن از حکم خدایت بر متاب | تا نمانی روز محشر در عذاب |
| غاړه له حکم څخه د خدای ستا مه پېچه | تر څو پاته نه سې په ورځ د محشر په عذاب کې |
| تا بیابی در بهشت عدن جای | شفقتی بنمائ با خلق خدای |
| تر څو پیدا کړې په جنت کې د عدن ځای | شفقت ښکاره کړه پر خلکو باندې د خدای پاک |

**د لغاتو حل:** شریعت (الهي قانون / اسلامي تګلاره)؛ رضوان (رضامندي / خوښي).

**لنډیز:** ... نو د شریعت تګلاره انتخاب کړه او ژر تر ژره نفساني خواهشات تر پښو لاندې کړه. د الله تعالی له حکم او فرمان سره سم او موافق اوسه، تر څو د الله تعالی رضامندي او جنت ترلاسه کړې. هیڅ وخت د الله تعالی له حکم او فرمان څخه غاړه مه غړوه، تر څو د محشر پر میدان له عذاب څخه خوندي پاته سې. که غواړې چې په عدن کې ځای ترلاسه کړې، د الله تعالی پر مخلوقاتو باندې شفقت او مهرباني ولره.

| | |
|---|---|
| تا وهندت جای در دار السلام | با فقیران روز و شب میده طعام |
| تر څو چې درکړي تا ته ځای په دار السلام کې | و فقیرانو ته ورځ او شپه ورکوه ډوډۍ |
| شاد گرداری درون خسته را | باز یابی جنت در بسته را |
| خوشحاله که چېرې لرې زړه زخمي | خلاص به پیدا کړې جنت دروازه تړلې |
| هر که آرد این نصیحت را بجای | در دو عالم را حقش بخشد خدای |
| هر څوک چې راوړي دا نصیحت پر ځای | په دوو عالمونو کې هوساینه ده ته بخښي خدای پاک |

| یا الهی | رحم کن | بر ما | همه | عفو کن | جمله گناه | ما | همه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اې مهربانه خدايه! | رحم وکړه | پر موږ | ټولو | معاف کړه | ټوله ګناهونه | زموږ | ټولو |

**د لغاتو حل:** دار السلام (د سلامتۍ او عافيت کور، مراد يې جنت دئ)؛ طعام (خواړه / ډوډۍ).

**لنډيز:** ... که غواړې چي الله تعالی درته په همېشني کور (جنت) کي ځای درکړي، نو شپه او ورځ له فقيرانو او بې چارګانو سره مرسته او کومک کوه. په دنيا کي پر ستونزو او کړاونو سربېره که بيا هم زخمي او دردېدلی زړه په صبر او ايمان سره خوشحاله وساتې، نو د جنت تړلي دروازې به دي پر مخ خلاصي سي. کوم څوک چي دا ګټور او فائدمن نصيحت عملي کړي، نو په دواړو جهانونو کي به الله تعالی آرامي او هوساينه ور په برخه کړي. اې مهربانه خدايه! پر موږ رحم وکړه او ټوله ګناهونه راوبخښه...

| عاجزیم | وجرمها | کرده | بسی | نیست مارا | غیر تو | دیگر | کسی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عاجزه يم | او ګناهونه مو | کړي دي | ډېر | نه سته موږ لره | ماسېوا ستا څخه | بل کوم | څوک |

| گر بخوانی | ور برانی | بنده | ایم | هرچه حکم تست | زان خورسنده | ایم |
|---|---|---|---|---|---|---|
| که چيري درغواړې | او که شړې | بندګان | يو | هر څه چي حکم ستا دئ | په هغه خوشحاله | يو |

| رحمت حق | باد | بر جان | کسی | کین نصائح را | بخواند | او بسی |
|---|---|---|---|---|---|---|
| رحمت د خدای پاک دي | وي | پر روح | د هغه چا | چي دا نصيحتونه | ووايي | هغه ډېر |

| رحمتی ماند | بسی | از ذو الجلال | بر روان پاک | آن | صاحب کمال |
|---|---|---|---|---|---|
| رحمت دي وي | ډېر | له ذو الجلال څخه | پر روح پاک باندي | د هغه | خاوند د کمال |

**د لغاتو حل:** جرمها (جرمونه / خطاوي / ګناهونه)؛ خورسنده (خوشحاله / داده).

**لنډيز:** ... موږ عاجزه بندګان يو او ګناهونه مو تر اندازې زيات دي، له تا پرته بل هيڅ خواخوږی او غمخور نه لرو. که مو در غواړې او که مو شړې، په هر حالت کي ستا بندګان يو، ته چي زموږ په حق کي هر ډول حکم او پرېکړه کوې، موږ خوشحاله او راضي يو. پر هغه چا دي چي د الله تعالی بې شمېره رحمتونه وي چي دا نصيحتونه لولي او عملي کوي يې. او پر هغه باکمال شخص باندي دي د الله تعالی

زیات رحمتونه او لوړېنې وي چې...

کين همه دُرها به نظم آورده هست | غوطها در بحر معنی خورده هست

چې دا ټولې ملغرې يې په نظم کې راوړې دي | غوټې يې په درياب کې د معنی خوړلې دي

يادگاری در جهان بگذاشته | هيچ پندی را فرو نگذاشته

يادگار يې په دنيا کې پرېښی دئ | هيڅ نصيحت يې کښته نه دئ پرېښی

اهل دين را اينقدر کافی بود | اهل دنيا را همين وافی بود

خاوند د دين لره همدومره بس وي | خاوند د دنيا لره هم همدومره کافي وي

هر که اينها را بداند عاقلست | وانکه اينها کاربندد کاملست

هر څوک چې دا وپېژني عاقل دئ | او هغه چې په دې عمل وکړي کامل دئ

در جوار انبيا دار السلام | همنشين اوليا باشد مدام

په ګاونډ کې د انبياؤ په دار السلام کې | ملګری د اولياؤ دې وي همېشه

**د لغاتو حل:** غوط (غوټه / ډوبېدل)؛ کافی (بس / پوره)؛ اهل دنيا (د دنيا خاوند، مراد يې اوسېدونکي دي).

**لنډيز:** ... چې دا پاشلې ملغلرې د نظم په ښکلې او منظم تار پېيلې دي او په معنی کې يې له ډېر زوړ فکر او سوچ څخه کار اخيستی دئ. په دنيا کې يې خپل يادګار پرېښی دئ او هيڅ نصيحت او لارښوونه يې داسې نه ده پرېښې چې په کتاب کې يې نه وي راوړې. څوک چې د دين څښتن او با ايمانه مسلمان وي، د هغه له پاره همدومره نصيحت بسنه کوي.

# قطعه در دعا

## قطعه په دعاء کې

يا رب آنساعت که جان بر لب رسد | جسم پژمرده بتاب وتب رسد

اې ربه! هغه ساعت چې روح شوندو ته راورسېږي | جسم مرژواندی په تاب او تب ورسېږي

شربت شهد شهادت نوشیم | خلعت راه سعادت پوشیم

شربت د خواږه د شهادت راباندي وچیښه | جامه د لاري د نېکمرغی راباندي واغونده

چون ندارم در دو عالم جز تو کس | هم تو می باشی مرا فریادرس

کله چي نه لرم په دوارو جهانونو کي بې له تا هیڅوک | نو هم ته به يې ما لره فریاد منونکی

**د لغاتو حل:** قطعه (ټوټه / یوه وړه او کوچنۍ لیکنه)؛ پژمرده (نیم ژواندی / مړ ژواندی).

**لنډیز:** اې مهربانه پالونکې! کله چي مي روح تر شونډو راورسیږي او نیم ژواندی بدن کي په بې قرارۍ او نا آرامیو کي راګیر سي. په ما د شهادت خواږه شرب وچیښه او د نېکمرغی په جامه مي پټ کړه. څکه چي له تا پرته په دوارو جهانونو کي بل فریاد اورېدونکی نه لرم، نو همدا ته مي فریاد واوره او رحم وکړه.

# تاریخ وفات از مصنف

## د مصنف رحمة الله علیه د وفات نېټه

شیخ عطار حق فرید الدین | آفتاب سپهر دانش ودین

شیخ عطار د حق فرید الدین | لـــمر د علم او دین

عمر او یک صد وچهارده سال | بود از لطف ایزد متعال

عمر د هغه یو سل او څوارلس کاله | وو له مهربانی څخه د خدای متعال

سال ترحیل آن مهٔ دوران | قبلهٔ اهل جنت ست بدان

کال د وفات دغه میاشت ګرځېدونکې | قبله د خاوندانو د جنت ده پوه سه

# صد پند لقمان

## بصاحزاده ذو الاحترام والتکریم

خپل د قدر او درناوي وړ زوی ته د لقمان حکیم سل نصیحتونه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

د زیات مهربان پوره رحم لرونکي الله په نامه

اول آنکه ایجان پدر خدای عزوجل را بشناس. وهرچه از پند و نصیحت گوئی

اول دا چي اې د روحه د پلار الله تعالی وپېژنه. او هر څه چي له پند او نصیحت څخه وایې

نخست خود بر آن کار کن. سخن باندازهٔ خویش گوئی. قدر مردم بدان. حق همه

لومړی خپله پر هغه عمل وکړه .خبري پر اندازه خپله وایه. قدر د خلګو وپېژنه. حق د ټولو

کس را بشناس. راز خود نگهدار. یار را وقت سختی بیازمای. دوست را

کسانو وپېژنه. راز خپل وساته. ملګری په وخت کي د سختۍ امتحان کړه. دوست

بسود و زیان امتحان کن. از مردم ابله و نادان بگریز. دوست زیرک و دانا گزین.

په ګټه او تاوان سره امتحان کړه. له خلګو بې عقلو او ناپوهو څخه وتښته. دوست هوښیار او پوه غوره کړه.

درکار خیر جد و جهد نمای. بر زنان اعتماد مکن. تدبیر با مردم مصلح و دانا کن.

په کار کي د خیر هڅه او کوښښ کوه. پر ښځو باور مه کوه. مشوره له خلګو نېکو او پوهو سره وکړه.

سخن بحجت گوئی. جوانی را غنیمت دان. بهنگام جوانی کار دو جهانی راست کن.

خبري په دلیل سره وایه. خواني غنیمت وګڼه. په وخت کي د خوانی کار د دواړو جهانونو سم کړه.

یاران ودوستدارانرا عزیز دار. بادوست ودشمن ابروه کشاده دار. مادر وپدر را

ملګري او دوستان هغه عزتمن ولره. له دوست او دښمن سره ورین تندی ولره. مور او پلار

غنیمت دان. استاد را بهتر از پدر شمر. خرچ را باندازه دخل کن. در همه کار

غنیمت وګڼه. استاذ دپر ښه تر پلار وشمېره. مصرف په اندازه د دخل کړه. په ټولو کارونو کي

میانه رو باش. جوانمردی پیشه کن. خدمت مهمان بواجبی ادا کن. در خانهٔ که

میانه روی اوسه. خوانمردي عادت کړه. خدمت د مېلمه په په واجبي سره اداء کوه. په کوم کور کي چي

در آئی چشم وزبان ودست رانگهدار. جامه وتن راپاک دار. باجماعت یار باش.

راسې سترګي او ژبه او لاس وساته. کالي او بدن پاک ولره. له ټولي سره ملګری اوسه.

فرزند را علم وادب بیاموز واگر ممکن باشد تیرانداختن وسواری بیاموز.

زوی ته علم او ادب ور زده کړه او ممکن وي غشی ویشتل او پر آس سپرېدل ور زده کړه.

دین را برائ آن جهان ودرم را برای این جهان نگهدار. از کفش و موزه که پوشی

دین له پاره د هغې دنیا او پیسې له پاره د دې دنیا وساته. له څپلیو او موزو څخه چي اغوندې

ابتدا از پائ راست کن وبدر آوردن از پای چپ گیر. با هر کس کار باندازه او

شروع له ښې راسته څخه کوه او په کښلو کي يې له ښې چپه څخه نیسه. له هر چا سره کار په اندازه د هغه

کن. بشب چون سخن گوئی آهسته ونرم گوئی وبروز چون گوئی بهر سو نگاه کن.

کوه. په شپه کي چي کله خبري وایې، کرار او په نرمی یې وایه او په ورځ کي کله وایې و هر طرف ته نظر کوه.

